# د افغانستان تاریخي
# پیښلیک



لومړی ټوک

له تاریخ دمخه بیا د ۱۳٤۱ش تر پایه

د کلونو په ترتیب


مؤلف

علامه عبدالحی حبیبي


۱۳۵۳ش

# فهرست

# پیل

## د لوی ښښتن په نامه

د افغانستان د اوسني جمهوریت تاسیس او د افغان اولس د مترقي ژوندانه پیلامه خو د ۱۳۵۲ لمریني کال د چونگاښ په شپږویشتمه د سه شنبې په ورځ (۱۷ جولاي ۱۹۷۳) ټینگه سوه چي راتلونکي وختونه به یې د افغانستان په نیکمرغي او لوړتیا ډېر روښانه او د ویاړ وړ وي.

مگر دا لوی ملت او دا هیواد خو یو روڼ تاریخ هم لري، چي په دې کتاب کي یې ما د سیاسي او اجتماعي تاریخ پېښلیک یا نیټه لیک، له تاریخه دمخه بیا د ۱۳٤۱ ش کال تر پایه پوري د کلونو په ترتیب سره را ټول او لنډ کړي دي.

دا یوازي سیاسي او د جگړو پېښ لیک ندي، بلکه د لوی افغان اولس د اجتماعي ژوندانه، یاندي، پوهني، ژواک (کلتور) او د هنر (آرټ) پیښني هم لري، او د خلکو د ژوندانه اړخونه گرده ښیي، او تر میلاده دمخه له پنځوس زرم کال مو دغسي کال په کال، تر اوسني زماني را رسوي او د هر کال د اوریدلو وړ پیښني، په لنډه توگه څرگندوي.

د دې کتاب دوهم ټوک به هم پر خپل وخت ترتیب او خپور سي.

امید لرم چي د افغانستان آینده تاریخ به د جمهوریت په سیوري کي تر پخوا لا روڼ او د اجتماعي سر لوړي او هوسایي سره وي.

کابل، جمال مینه، د وري دریمه ۱۳۵۳.

عبدالحي حبیبي



# د افغانستان تاريخي پيښليک

# Chronology

## (۱)

## تر تاريخ دمخ

**پنځوس زره کاله تر ميلاد دمخه (قبل الميلاد=ق،م) تر ٤٠ زرو پوري:**

په دره دادل، دره چخماخ، هزار سم، دره کور کي د بکرۍ لرغونی دوره (ماوستيرين).

**د لس زره پنځه سوه اتيايم ق،م شاوخوا:**

په قره کمر (خلم) کي د ډبري د منځنۍ دورې آثار.

**د اته زره شپږسوم ق،م کال شاوخوا:** په آق کپروک کي د آږدهار او آس د آثارو سره د ډبري نوې دوره چي خاورين لوښي لا نسته.

**د اوه زره دوم سوم ق،م کال شاوخوا:** په آق کپروک کي د ډبری نوې دوره د خاورينو لوښو سره.

**د اوه زرم ق،م کال شاوخوا:**

په آق کپروک، ديمراسي، منډي گک، سيستان کي د صيقلي ډبري او خاورينو لوښو او فلز دوره (کلکوليتک).

**پنځه زره تر دريږ زره کاله ق،م:**

د مفرغ دوره په آق کپروک، ديمراسي، منډي گک، سيستان کي د انځور سوو کودرو دوره په منډي گک او ناد علي کي. د بلوچستان په سيد کلا او قلعه گل محمد او قندهار د منډي گک په لاندي برخه کي د لرغونيو کرونکو ځاي.

**د دري نيم زره کاله ق،م شاوخوا:**

په دره کور کي د ډبري نوې دوره او د وزې پرسۍ دوره.

**دونيم زره کاله ق،م:**

آريايي خلک په آريانا ويجه کي، د آريک ژبي دوره.

**د دوو زرو کالو ق،م شاوخوا:**

د آريائي لېږد (هجرت) لومړۍ څپه، د آس د سپرلو دوره.

# ۲
# تاريخي دوره

**د يونيم زرو کالو ق،م شاوخوا:**

د ويدي مدنيت دوره، په ريګويد کي د پکهت (پښتون) او نورو افغاني قبيلو ذکر، د افغانستان د ځينو غرو او رودو نومونه په ريګويد کي.

**د يوزر دوه سوم کال ق،م شاوخوا:**

د اوستايي مدنيت دوره، د بخدي زراعتي او ښاري ژوند، د پيشدادي شاهي رژيم، د فر دوره، د بخدي واره او يما او لوړ بيرغونه، د بيو راسپ سهاک يرغل.

**د زرم کال ق،م شاوخوا:**

په آق کپرک، ديمراسي، منډي ګک، نادعلي او نور سيستان کي د مفرغ او د اوسپني د استعمال لرغونې دوره، د آريايي لېږد دوهمه څپه له شمالي افغانستان د آمو له سيمو تر هندوکشه او جنوبي ځنډو ته.

**د ۶۰۰ ق،م شاوخوا:**

د زردشت پاڅېدنه، د ښې منني او ښې کړني او ښې وه يني دوره، شپاړس آريايي سيمي، په بخدي او آريانا کي د کاوي (کيان) شاهي کهول، اوستائي پهلوانان، د اوستا لرغوني کتاب ګيتونه، د اهوره مزده منته، د اهريمن غندنه.

**٦٥٠ ق،م شاوخوا:**

له ٦٥٥ تر ٦٣٣ ق،م پوري فره اوتس د ديوکس زوي دوهم مادي پادشاه تر باختر او آمو پوري سيمي ونيولې.

**٥٦٦-٤٨٦ ق،م:**

د ګوتمه بوده ژوندون.

**٥٥٩-٣٣٠ق،م:**

د مخامنشي امپراتورۍ اقتدار.

**٥٣٩-٥٣٠ ق،م:**

کوروش (سيروس) د کمبوجيه زوي د مخامنشي کهول اوم پاچا (٥٥٠-٥٢٩ ق،م) ټول افغانستان ونيوئ.

**٥٢٢-٤٢١ ق،م:**

په اراکوزي (ارغنداو) او مرګيان (مرو) کي پر هخامنشيانو باندي ښورښت. د لومړي داريوش مخامنشي شهنشاهي (٥٢٢-٤٨٦ ق،م)

**٥٢٠-٥١٨ ق،م:**

د لومړي داريوش ډبرليک په بيستون کي چي په هغه کي د افغانستان د سيمو نومونه ياد سوي دي.

**٥١٧-٥١٢ ق،م:**

د سند تر غاړو پوري د هخامنشيانو رسيدنګ.

**۵۱۷-۵۱۲ ق،م:**

د سند تر غاړو پورې د هخامنشيانو رسيدنګ.

**٤٦٥-٤٢٤ ق،م:**

د لومړي اردشير د خشيارشا د زوي شاهنشاهي.

**٤٨٦-٤٠٤ ق،م:**

خشيارشا او دوهم داريوش هخامنشي پاچهانو مستقيماً پر ګندهارا حکومت لاره چې شرقي پايتخت ئې کسپا تورس (پېښور) او پوکيلاوتس (چارسده) وه.

**٣٣٤ ق،م:**

د مقدوني اسکندر د يرغلونو پيل پر آريانا باندي.

**٣٣٠ ق،م:**

اسکندر په اريانا کي آريه (هرات) د رنګيانه (سيستان) اراکوزيه (ارغنداو) ونيول (اکتوبر).

**٣٢٩ ق،م:**

د اراکوزيه اسکندريه (قندهار) ودانول (جولائي) ممنن د ارغنداو د سيمي والي سو.

اسکندر کابل هم وينوي (نومبر ٣٢٩ق،م) او د پسرلی په پاي کي ئې په هوپيان کي (د قفقاز اسکندريه) ښار ودان کئ.

ساتي بارزانس د هرات ملي سردار اسکندر ته پورته سو، مګر ژر مړ کړ سو او اسکندر د قفقاز له اسکندريې څخه رهي سو تر هندوکش واوښت باختر ئې ونيوئ او تر آمو هم واوښت سغديانه ئې ونيوله (٣٢٨ ق،م).

**٣٢٧ ق،م:**

د باختريانو مقاومت د اسکندر په مقابل کي ختم سو او اسکندر روښانه د هوخيار لور باختري ملکه واده کړه (د ٣٢٧ ق،م مارچ).

اسکندر تر هندوکش او کابل تېر سو، د کنړ او باجوړ له لاري د اباسين سيمو ته ورسېد. د ٣٢٦ ق،م کال په فروري تر اټک واوښت.

**٣٢٦ ق،م:**

اسکندر د تکسيلا ښار ونيو او د جيلم څنډو ته ورسېدي (مئي) د جولائي په مياشت پوروس (فور) د هند پاچا ورته ايل سو اسکندر د اباسين پر شرقي سيمو باندي سي سي کوتوس والي کئ او شرقي سيمي ئې نيکاتور ته ورکړې.

**٣٢٥ ق،م:**

په جولائي کي اسکندر ديبل (اوسنی کراچي ته نژدې) ورسيد او د ګدروزيا (اوسنی بلوچستان) له خوا پارس ته ولاړ.

**٣١٧ ق،م:**

ايوداموس يونانی حکمران د هند پاچا پوروس وواژه. د اباسين پر څنډو يوناني حکمراني ختمه سوه.

**۳۱۱ ق.م:**

سیلیوکوس نیکاتور (د اسکندر یوناني جنرال) او د بابل حکمران (۳٦٤-۳۲۱ ق،م) آریانا ونیوله.

**۳۰۵ ق.م:**

سیلیوکوس د کابل له خوا د اباسین سیمي ته ولاړ، او د هندي پاچا چندره گوپته سره ئې صلح وکړه.

کندهاره، اراکوزیه، گدروزیه، پاروپامیزاد ئې چندره گوپته ته پرینښوول، او دیودوتس ئې پر باختر حکمران کي او د هندیانو نفوذ تر منځني افغانستانه را ورسید.

**۳۰۰ ق،م:**

د چندره گوپته مرگ او د ده د زوي بیندوساره دوستانه روابط د گندهاره او پاروپامیزاد له خوا له سیلیوکوس سره.

**۲۹۲ ق،م:**

انتوهید د لومړي سیلیوک زوي د مشرق حکمران سو.

**۲۷۳ ق،م:**

بیندوساره مړ سو او د ده زوي اشوکا پاچا سو.

**۲٦۰ ق،م:**

اوشکا د بودا دین ومانه او خپرولو ته ئې ملا وتړله، او په افغانستان کي تر قندهار خپور کئ.

**۲۵٦ ق،م شاوخوا:**

دیودوتوس په باختر کي د یونانیانو مستقل سلطنت جوړ کئ، د گریکو باختري مدنیت خپریدنه.

**۲۵۰ ق،م:**

په قندهار کي د اشوکا ډبرلیک په یوناني او آرامي ژبو. د اشوکا د کهول (موریا) سیاسي نفوذ پرې سو، خو د بودا دین په افغانستان کي تر لسو پېړیو پوري پاته سو، د یوناني مدنیت او خط نفوذ په اراکوزیه کي.

**۲۵۰-۲۳۰ ق،م:**

په باختر کي د دوهم دیودوتوس د لومړئ دیوودتوس د زوي پاچهي.

**د ۲۲۰ ق.م شاوخوا:**

ایوتیدیموس د سغد حکمران د باختر مستقل پاچا سوتر ۱۹۰ق،م پوري.

**د ۲۰۸ ق،م شاوخوا:**

دریم انتیوکوس پر پارت حمله وکړه او په هریرود کي ئې د ایوتیدیموس سره هم جنگ وکئ او دی ئې مات کئ. درنگیانه او اراکوزیه ئې ونیول.

**۲۰۷-۲۰٦ ق،م:**

انتي اوهید باختر کلا بند کئ.

**۱۹۰ق،م:**

دیمتریوس د ایوتیدیموس زوي د باختر پاچا سو، د ده سپه سالار مناندر تکسیلا او هند د گجرات تر څنډو پوري ونیول، او تر ۱۰۰ ق،م پوري د ده کهول په هند کي حکمرانان وو، دیمتریوس تر اراکوزیا پوري ونیول.

**۱۸۱ ق،م:**

ايوکرتيديس د (بازيلوز کيکاليوس) په لقب د باختر پاچا سو او د باختر د يوناني پاچهانو دريم کهول ئې جوړ کئ تر ۱۵۵ق،م پوري.

**د ۱۷۵ ق،م شاوخوا:**

ديمتريوس له هندوستانه باختر ته را ستون سو او د ده زوي دوهم ديمتريوس د باختر پاچا ومگر د دوي کهول ايوکراتيديس ورک کئ.

**د ۱۳۵ق،م شاوخوا:**

لومړی مهراد پارتي پاچا د باختر سلطنت وځابه، او مرکز ئې له باختره کاپيسا د کابل شمال ته را نقل سو.

**۱۳۰ ق،م:**

يو-يه-چي قبيلې د آمو په شمال کي وي، چانگ-چه-ين د چين له خوا د هون د امپراتور دربار ته استازي راغئ.

**۱۲٤ ق،م:**

پر اشکاني دوهم ارتبان باندي د تخاريانو برى، سکا قبيلو پر هند يرغل وکئ او د انډوسيتهين حکومت ئې هلته جوړ کئ. دوهم مهرداد د ارتبان زوي اشکاني لوي پاچا پر سکايانو باندي بري وموند، باختر او سيستان او شمالي هند ئې ونيول.

**د ۱۲۰ ق،م شاوخوا:**

په سيستان او اراکوزيه کي د پهلوا له قبيلې څخه د ونونيس سلطنت.

**۷۸-۷۵ ق،م:**

مايوس سکايې د اراکوزيه (ارغنداو) او سند سيمي ونيولې، او سکه ئې ووهله، او تر تکسيلا پوري لاس وغځاوه.

**د ۷۰ ق،م شاوخوا:**

يو-يه-چي يعني کوشانيان تر آمو را واوښتل او د تخاريانو په کومک ئې باختر ونيو.

**د ۵۰ ق،م شاوخوا:**

د باختري يونانيانو مستقل سلطنت تر دوي نيمى پيړئ ورسته د سکا، سيتي، تخاري قبيلو په يرغلونو ختم سو. د سکايي پاچهانو ازيس، ازيسس دوره.

**۳۰-۲۰ ق،م:**

د سکا او تخاريانو جگړې د پارفيان له اسکانيانو سره.

**۲۹-۲۸ ق،م:**

د پارفيان پاچا دوهم فرهاد د سکايانو په جنگ کي وواژه سو او دوي درنگيانه ونيوله، چي هم د دوي په نامه سکستان سو.

# ۳
# تر میلاد وروسته
# (م)

**۴۰-۷۸م:**

لوي کوشانشاه کوجوله کره کدفيزيس د کوشانيانو شهنشاهي په آريانا کي جوړه کړه.

**۱۹-۴۸ م:**

د پهلوا قبيلې گندوفاريس له سيستانه تر سند او پنجابه ونيول، او د ده دربار ته د حضرت مسيح شاگرد سنت توماس راغئ او ده مسيحي دين ومانه او په افغانستان کي لومړئ پلا د مسيحي دين اغيزه ښکاره سوه.

**۵۰م:** د گندوفاريس لوي سلطنت د ده د زامنو تر منځ وويشل سو.

**۷۸-۱۱۰ م:**

ويمه کدوفيزيس د لومړي کدفيزيس زوي د کوشاني کهول دوهم لوي پادشاه خپل سلطنت د گنگا تر څنډو پوري ورساوه.

**۱۲۵ يا ۱۴۴ م:**

کنيشکه لوي کوشانشاه د دنيا څلورمه لويه امپراتوري جوړه کړه، د دوبي مرکز ئې د کاپيسا بگرام او د ژمي دا پېښور ؤ. د گريکو بوديک گډ هنر خپريدنه.

**۱۵۰ م شاوخوا:**

د بودايي دين اوم واسو ميشره گندهاري په مشري د بودايي ۵۰۰ پوهان لو جرگه د کنيشکه په فرمان په کشمير کي جوړه سوه، دهينه يانه کوچني مذهب پر ځاي مهايانه لوي مذهب غوره سو. او د کنيشکه په روزنه بودايي دين د ارغنداو تر څنډو او شمالاً تر سير دريا پوري خپور سو. د بغلان مهادژ اومندر د کنيشکه په فرمان جوړ سو، د پېښور د بودا د کچکول مندر په شاجي ډيري کي جوړ سو. د بگرام د شترک پر غونډئ د شا–لو–کيا معبد جوړ سو.

**د ۱۵۱م شاوخوا:**

د دنيا لويه څلورمه کوشاني امپراتوري د گنگا له څنډو د خراسان تر پايه او له بحيره عرب څخه تر سير دريا او ختنه د کنيشکه تر فرمان لاندي جوړه سوه او په همدغه وخت کي کنشکه مړ سو.

**۱۵۴-۱۶۰م:**

د واسيشکه د کنيشکه زوي او دوهم کنيشکه دوره، د بغلان د مهادژد مندر په يوناني خط د تخاري ژبي ډبرليک.

**د ۱۶۹م شاوخوا:**

مهاراجه ديوه پتره هوويشکه د کنيشکه زوي.

**۱۸۰م:**

د خوات په خروشتهي لرغون ليک کي د هوويشکه لوي پاچا يادونه. د افغاني کوشاني مدنيت او کلتور جوړيدنه.

**۱۸۲-۲۲۶م:**

د هوويشکه مړينه او د واسوشکه (واسو ديوه) پاچهي.

**۲۲۶-۲۵۱م:**

د ساسانيانو شهنشي.

**۲٤۱م:**

د لومړی شاپور ساساني پاچا یرغلونه تر اباسینه، له ۲٤۱م تر ۳٦٥م پوري د ساساني اقتدار اوږدیدنه، په بامیان کي په ساساني ډول د یوالي انځور. د هډې د ستوپو هنر د ماني دین جوړښت.

**۲٦۰-۲۷۳م:**

د لومړي ساساني شاپور د نقش رستم په ډبرلیک کي د ابگان (افغان) او پسکي باوره (پېښور) یادونه. د کوشانیانو د امپراتوري سقوط.

**د ۳۰٥ شاوخوا:**

کیداره (قیدار) کوشاني شهزادگان له کابله تر کشمیره. د هفتلیانو ظهور او راوتل.

**۳۸٥م:**

شاپور ساساني د گرومباتس هفتلي پاچا سره روغه وکړه. هفتلیان د جنوب خوا ته راوخوځیدل.

**۳٦۷م:**

کیداره په گندهاره کي سکه ووهله.

**د ۳۷٥م شاوخوا:**

پیرو شاه د کیداره زوي.

**د ۳۸۰م شاوخوا:**

ورهران کیداري پاچا.

**٤۲٥م:** پر باختر د هفتالیانو برى. شیر په بامیان کي.

**٤٥۹-٤۸٤م:**

پیروز د بهرام ساساني زوي د کیداریانو سره په شخړو بوخت ؤ او کنگخاس کیداري ته یې خپله خور ورکوله خو هغه و نه منله. د کیداریانو پایتخت کاپیسا او بیا پېښور و.

**٤٦۰م:**

د هفتالیانو بشپړ اقتدار پر ټول افغانستان او شمالي هند.

**٤۸٤م:**

د افغانستان د هفتلي دولت مقابله له ساساني شاهانو سره. خشونور هفتالي لوی پاچا ساساني پیروز مات کړ او په جنگ که وواژه سو. د پیروز لور خشونور وکړه. شیري بامیکان په بامیان او خودویه که کابلشاه په کابل کي.

**٤۸۸م:**

ساساني کواذ د ایران پر تخت کښینوست او هفتالیانو ته یې ججه ورکوله.

**٤۹۹م:**

کواذ چي هفتالیانو ته یې پناه راوړې وه د دوي په مرسته بیا د پارس تخت ونیوځ.

**٥۰۰م:** تورهمن هفتالي زاولي پاچا ټول افغانستان او شمالي هند ونیول، هندي پایتخت یې سکله (د پنجاب اوسني سیالکوټ) و. سپاله پتي کابلشاه.

**٥٤۰م:**

مهیره کوله د توره من زوي پر ټول افغانستان او شمالي هند پاچهي کوله په هند کي د ده سخت جنگونه او په ٥٤۲م کي د ده مړینه.

**٥٥۰ شاوخوا:**

په هندي کتاب بهریته سمهیته (۱۱ر

٦١) او (١٦ ر ٣٨) د وهرهه ميهيره تاليف کي او-هـ-گه-نه (افغان) ياد سوي دی. پدمه کابلشاه.

**٥٦٨م:**

د هفتليانو د لوی دولت سقوط. د نيزکانو او پيغوانو او رتبيلانو او کابلشاهانو اقتدار.

**٥٨٨-٥٨٩م:**

د بهرام چوبين جنگ له ترکانو سره.

**٦٠٠م په افغانستان کي ملوک طوايف:**

د روزگان، جغتو، گومل، کوشاني او هفتلي شاهزادگان. د غزني لويکان، کابلشاهان، د زابل رتبيلان، نيزکان، پيغوان، سوريان، د باميان شيران، د غرستان شاران، تگينان. په شمالي افغانستان کي دري ژبه، په غربي افغانستان کي پهلوي ژبه، په شرقي افغانستان کي د دري شرقي لهجه (تخاري)، د پهلوي، يوناني، سره داناگري ليک د ودونو رواج، د بودايي او زردشتي عقايدو گډون. په غور او کسي غره کي د پښتو څرک.

**٦٣٠م:**

هيون تسنگ چيني گرزندوي له سمرقنده په ٢٠ مارچ خلم او په ٢٠ اپريل بلخ او په ٣٠ اپريل باميان ته راغي او تر دسمبر پوري له اباسين څخه تير سو. دی د هند له خوا بيرته پر افغانستان راغي او په ٢٠ جون ٦٤٤م د او-پو-کين (افغان) سيمه د بنو او غزني تر منځ يادوي او دا د نقش رستم تر ډېرليک او بهريته سمهيته وروسته د افغان دريم ذکر دئ.

هيون تسنگ په هم دغه کال (٨ ستمبر ٦٤٤م) بدخشان ته ورسيد او په ١٢ ستمبر تر پامير تير او يارکند او ختن ته ولاړ.

# ٤
# اسلامي دوره
## خلافت

**٦٣٩-٦٤٢م ١٨-٢٢ق:**

احنف د قيس زوی په ختيځ تميمي د يزگرد په تعاقب د طبسين له لاري خراسان ته راغي او هرات ئې ونيو.

د رتبيلانو کهول په زابلستان کي تر ۲۵۸ ق پوري.

د لويکانو کهول په غزني او گرديز کي تر ٤٠٠ق.

**٦٤٢م ٢٢ق:**

عبدالله بن عامر د کرمان له خوا د حضرت عمر فاروق په امر پر سيستان راغئ او د ده اسلامي لښکر تر قندهار او سنده ورسيده.

**٦٤٤م ٢٤ق:**

د اسلامي لښکرو او رتبيلانو مقابله په سيستان او هلمند او زابل کي.

**٦٤٥م ٢٥ق شاوخوا:**

د عبدالله بن عامر عربی لښکرو کابل کلابند کئ. دلته کابلشاهانو اقتدار لاره.

**٦٤٨م ٢٨ ق:**

عمر بن عثمان د خراسان حکمران.

**٦٤٩م ٢٩ق:**

عربي سپه سالار مجاشع بن مسعود جنوبي افغانستان او گرمسير ونيوي او ربيع بن زياد سيستان لاس ته راوړ.

**٦٥٠م ٣٠ق:**

عبدالله بن قيس د خراسان حکمران سو، عبدالرحمن بن سمره د هلمند سيمي ونيوې او په زمينداور کي د زون (زور) معبد ونړاوه.

**٦٥١م ٣١ق:**

يزدگرد په مرو کي ماهوي سوري ته پناه راوړه او د يوه ژرنده گري په لاس مړ سو. له ده سره د ساساني کهول پاچهي سوه. او اسلامي حکمران احنف بن قيس پر مرو باندي بري وموند.

**٦٥٢م ٣٢ق:**

باذان د هرات او فوشنج او بادغيس باچا د عربي حکمران عبدالله بن عامر سره د روغي معاهده وکړه او يو مليون درهمه ئې ورکړه.

احنف بن قيس بلخ او طخارستان او سمنگان او گوزگانان او تالقان ونيول. دغسي هم خالد بن عبدالله هرات او بادغيس او غور او سرخس او ټول خراسان ونيو، که څه هم هراتي قارن ولاړ سو خو عبدالله بن خازم دی وځابه.

**٦٥٣م ٣٣ق:**

اپرويز د سيستان د زرنج پاچا عربو ته تسليم سو او دوي د اسلام خپرولو ته دلته ملا وتړله.

عبدالرحمن بن سمره د حضرت عثمان په فرمان د سيستان والي سو، او د اسلام د تبليغ له پاره ئې حسن بصري او نور فقيهان

له ځانه سره راوستل، د زرنج د مسجد آدینه محراب ده جوړ کړ.

**د ٦٥٥، ٣٥ق شاوخوا:**

په غور او مرو کي د ماهوي سوري پاچهي.

**٦٥٦م ٣٦ق:**

ثاغر بن دعور عربي سالار تر قیقان (د بلوڅو قلات) پوري ولاړ او عبدالرحمن بن سمره کابل ونیو، او کابلشاه ایل سو.

په غور کي د شنسپ بن خرنک امارت.

خلید بن کاس د حضرت علي له خوا د خراسان حکمران سو.

**د ٦٦٠م٤٠ ق شاوخوا:**

سرود کرکوي د دری ژبي پخوانی شعر.

**٦٦١-٧٤٩م ٤١-١٣٢ق:**

د عربي اموي خلافت دوره، قیس بن هیشم سلمي د بادغیس له لاري بلخ ته ورسید او د نوبهار معبد ئې وران کړ. عطاء خشک د بلخ پر رود دري پلان جوړ کړه.

**٦٦٤م ٤٤ق:**

عبدالرحمن بن سمره بیا کابل ونیو. ابو رفاعه تمیم بن اسید (صحابي) په کابل کي شهید سو (؟).

مهلب بن ابي صفره د کابل او پیښور له خوا تر بنه او لاهور (د اباسین تر غاړي) پوري ولاړ، او د ملتان له خوا ئې د بلوڅو قندابیل او قیقان (قلات) ونیول.

**له ٦٦٧ څخه تر ٧٢٧م ٤٧ تر ١٥٦ق پوري:**

په سیستان او زابلستان او جنوبي افغانستان کي د عربو او رتبیلانو آخري جنګونه او ټول افغانستان پر سمو سیمو تر اباسین پوري د اسلام خپریدنګ.

**٦٦٧م ٤٧ق:**

خلید بن قره یربوعي د حضرت علي له خوا او بیا خلید بن عبدالله حنفي د خراسان حکمران سو.

**٦٧١م ٥١ق:**

ربیع بن زیاد حارثي د خراسان حکمران سو.

**٦٧٣م ٥٣ق:**

د عبدالله بن زیاد او د عباد بن زیاد یرغلونه پر هلمند او قندهار. د قندهار د جګو تیش خولیو تقلید او هغه (عبادیه) بلل.

**٦٤٧م ٥٥ق:**

عرب لومړي پله تر دریاي آمو تیر سول.

**٦٧٦م ٥٦ق:**

سعید بن عثمان بن عفان د خراسان حکمران.

**٦٧٧م ٥٨ق:**

عبدالرحمن بن زیاد بن ابي سفیان د خراسان حکمران.

**٦٨٠م ٦٨ق:**

سلم بن زیاد د خراسان حکمران ؤ او د کابل خلکو سر واخیست او یزد بن زیاد ئې مړ کړ نو طلحة الطحات ورته را ولیږل سو.

**۶۸۱-۶۸۳م ۶۲-۶۴ق:**
سلم بن زياد د خراسان حکمران ؤ او عربو پر ماوراء النهر لومړی حمله وکړه.
**۶۸۳-۶۸۸م ۶۴-۶۹ق:**
عبدالله بن خازم پر خراسان او عبدالعزيز بن عبدالله پر سيستان وگمارل سوه. رستم بن مهر هرمزد مجوسي متکلم په سيستان کي و.
**۶۹۰-۶۹۱م ۷۱-۷۲ق:**
بگير بن وشاح پر خراسان حکمران سو.
**۶۸۹-۷۰۴م ۷۰-۸۵ق:**
موسی بن عبدالله بن خازم په ترمذ کي حکمران و.
عبيدالله بن ابي بکره د سيستان والي سو او هلته د رتبيل او سيستانيانو سره د ده لښکر تباه سول چه (جيش الفنا) ئې وبلل.
**۶۹۱م ۷۲ق:**
وکيع بن عميره د عبدالملک اموي خليفه له خوا پر خراسان وگمارل سو، ده عبدالله بن خازم پخواني حکمران وواژه، او د امويانو اقتدار په خراسان کي ټينگ سو.
**۶۹۷م ۷۸ق:**
مهلب بن ابي صفره د حجاج له خوا بلخ ته راغئ.
**۶۹۹م ۸۰ق:**
جيش الطواويس (آراسته لښکر) د عبدالرحمن بن محمد سره پر سيستان راغلل او ټول زابل او کابل ئې ونيول.

شاد يبغو په تخار کي.
د امام ابو حنيفه نعمان بن ثابت تولد.
**۷۰۱م ۸۳ق:**
د مهلب بن ابي صفره وفات د مرو په زاغول کي.
**۷۰۳م ۸۵ق:**
مفضل بن ابي صفره د خراسان امير بادغيس ونيوئ. رتبيل د زابل پاچا عبدالرحمن عربي ياغي حکمران ونيو او حجاج ته ئې وسپاره.
**۷۰۶م ۸۶ق تر ۷۱۵م ۹۶ق:**
قتيبه بن مسلم د خراسان والي سو او ټول خراسان او ماوراء النهر ئې فتح کړه. په ۸۶ق کال کي صالح بن عبدالرحمن سيستاني کاتب ديوان او دفتر له پهلوي څخه عربي ته را واړاوه.
**۷۰۸م ۹۰ق:**
قتيبه عربي حکمران اشکمشت په درشيان کلي کي لومړی مسجد جوړ کئ.

**۷۰۹م ۹۱ق:**
قتيبه پر تخارستان حمله وکړه او د نيزک لښکر ئې په تالقان کي مات کړه.
**۷۱۱م ۹۳ق:**
محمد بن قاسم سند فتح کئ.
**۷۱۲م ۹۴ ق:**
عربو خوارزم او چغانيان ونيول او شرقي ترکانو سمرقند واخيست.

**۷۱۳م ۹۵ق:**

د قتيبه لښکر بيونگ شاش او فرغللی ته. په بخارا کي لومړی مسجد جوړ سو. محمد بن قاسم ملتان ونيو.

**۷۱۵م ۹٦ق:**

په خراسان او ماوراء النهر کي د قتيبه بن مسلم باهلی تر قيادت لاندي ٥٤ زره تنه عربي لښکرو چي د ۷ زرو عجمي مواليو قوماندان ئې حيان خراساني ؤ او ده خلک پر عربو پارول.

قتيبه له اموي خلافته ياغي سو او په فرغانه کي د وکيع په وسيله وواژه سو.

**۷۱۷-۷۲۰، ۹۹-۱۰۲ق:**

په خراسان کي د آل علي (رض) د شيعيانو غورځنگونه او د حضرت يحيی بن زيد راتگ. جراح بن عبدالله حکمي د خراسان حکمران سو.

**۷۱۸م ۱۰۰ق:**

ابو مسلم عبدالرحمن د مرود ماخان د بنداد هرمز زوي وزيږيدي. د علي بن مجاهد کابلي لوی محدث او فقيه ژوند. وجوړ لويک په غزنه کي، هوپه باميان کي.

د آل عباس لومړنی دعوت خراسان ته را ورسيدئ.

**۷۲۰-۷۲۱م ۱۰۲-۱۰۳ق:**

پر خراسان د سعيد بن عبدالله حکمراني او د دهقانانو غورځنگ.

**۷۳٤م ۱۰٦ق:**

د بلخ په بروقان کي د اعرابو خانه جنگي. د خالد بن عبدالله قسري حکمراني له ۱۰٥ تر ۱۲۰ق پوري. د ضحاک بن مزاحم بلخي مفسر او محدث وفات. د شيخ سعيد مقبري وفات او ښخيدل په بلخ کي.

**۷۲٥م ۱۰۷ق:**

اسد بن عبدالله د خراسان حکمران په غور او غرجستان کي د هغه ځاي پاچا نمرون مسلمان کئ. له بروقانه بيرته مرکز بلخ ته را نقل سو، او دا ښار بيا ودان سو. يزيد بن عريف پر سيستان حکمران او معمر بن عبدالله د سيستان قاضي سو.

**۷۲٦م ۱۰۸ق:**

د بلخ د عربي حکمران اسد بن عبدالله په غندنه کي د بلخيانو يو دري شعر.

**۷۲۷-۷۲۹م ۱۰۹-۱۱۱ق:**

اشرس بن عبدالله سلمی د خراسان حکمران ؤ، او رباطونه جوړ سول. بو حرير بن عبدالله لوي محدث او عابد د زرنج قاضي سو.

**۷۲۹م ۱۱۱ق:**

عبدالله بن ابي برده د زرنج لويه مصلا په در پارس کي جوړه کړه.

**۷۳۳م ۱۱٥ق:**

په خراسان کي کاختي.

**۷۳٥-۷۳۸م ۱۱۷-۱۲۱ق:**

پر خراسان د اسد بن عبدالله حکمراني. دی په بلخ کي مړ سو.

**۷۳٥م ۱۱۷ق:**

د ابو عبدالله نافع کابلي محدث او

فقيه وفات.

**٧٣٦-٧٩٧م ١١٨-١٨١ق:**

د لوي محدث او عالم عبدالله بن منارک مروي د ژوند دوره.

**٧٣٦م ١١٨ق:**

د مرجئه فرقي د مشر حارث بن سريج قيام.

په بلخ کي د اسد آباد جوړونه د مکحول بن سهراب کابلي فقيه او محدث وفات.

**٧٣٨-٧٤٨ ١٢١-١٣١ق:**

پر خراسان د نصر بن سيار حکمراني.

**٧٤١، ١٢٤ق:**

ابو مسلم کوفي ته ولاړ او په مکه کي د امام ابراهيم عباسی مريد سو، او د آل عباس دعوت شروع سو.

**٧٤٣م ١٢٥ق:**

په بلخ کي د لوي مسجد جوړول. امام يحيی د زيد زوي د جوزجان د ارغوي په کلي کي د شعبان په مياشت په جنگ کي د نصر بن سيار لښکر وواژه.

**٧٤٥-٧٤٦م ١٢٨-١٢٩ق:**

په مرو کي د حارث بن سريج بل بغاوت او د ده مرگ. جهم بن صفوان خراساني د جهميه مذهبي ډلي مشر چي په دغه غورځنگ کي شريک ؤ وواژه سو.

**٧٤٦م ١٢٩ق:**

عبدالله بن معاويه د ابو طالب له کهوله چي په مداين او اصفحان کي را ولاړ سوي ؤ، تر ماتي وروسته خراسان ته راغي، او په هرات کي ووژل سو، همدلته ښخ دئ.

**٧٤٧-٧٥٥م ١٣٠-١٣٧ق:**

پر خراسان د ابو مسلم د اقتدار دوره.

د بلخ د هندوان کلا جوړول د ابو مسلم له خوا.

د مرو په ماجان کي دارال اماره جوړول.

د نشاپور د لوي مسجد بنا.

په غور کي د امير پولاد بن شنسب امارت.

**٧٤٨م ١٣٧ق:**

ابو اسحاق ابراهيم بن ميمون مروزي خراساني محدث وواژه سو.

**٧٤٩-٨٢٨م ١٣٢-٢٠٥ق:**

د عباسيانو د خلافت دوره او پر افغانستان باندي د دوي نيغ حکم، ابو مسلم په کوفه کي د عباسي کهول خلافت اعلان کئ ١٣٢ق.

د ابو مسلم سره د غور د امير پولاد ملگري ١٣٠ق.

**٧٥٠، ١٣٣ق:**

ابو مسلم په مرو کي د عبدالرحمن بن مسلم په نامه سکه ووهله.

د عطا بن ابي مسلم خراساني محدث او مفسر وفات په بيت المقدس کي (ولادت ٥٠م).

**٧٥١م ١٣٤ق:**

مسلمانانو چيني اسيران راوستل او له دوي څخه ئې د کاغذ جوړول زده کړه.

تگين شاه د خراسان شاه.

**۷۵۲م ۱۳۵ق:**

مقاتل بن حيان بلخي محدث او مفسر په ګرديز کي وفات او ښخ سو.

د عطا بن ميسره بلخي محدث وفات په بيت المقدس کي.

**۷۵۲م ۱۳٦ق:**

ابو مسلم د حج په سفر ولاړ.

**۷۵۵م ۱۳۷ق:**

خليفه منصور دوانيقي ابومسلم وواژه او په خراسان کي فيروز سنباد زردشتي د ده په کسات کي د هرات له اهروانه کلي څخه را ولاړ سو، خو جهور بن مرار عجلي د بغداد د خلافت له خوا د ده شپيته زره اتباع او دئ ووژل.

**۷٦۵-۷۷۰م ۱۳۹-۱۵٤ق:**

جهان پهلوان امير کروړ د امير پولاد غوري زوی د شنسب سوري له کهوله خپله پښتو حماسه (قديم ترين شعر) ووايه.

**۷۵۷م ۱٤۰ق:**

په مرو کي د سپين کاليو خلکو بلوا د سعيد جولاه په مشري او د ابو داؤد خالد مړينه.

**۷۵۸م ۱٤۱ق:**

په خراسان کي د راونديانو بلوا د ابو مسلم د وژلو په کسات کي.

**۷۵۸-۷۵۹م ۱٤۱-۱٤٦ق:**

براز بنده د سپين بيرغ سره د عباسي کهول څخه سر واخيست، خو د جنګ پر ډګر په ٦ ربيع الاول ۱٤۱ق وواژه سو.

په سيستان کي د حضين بن رقار ولاړيدنګ.

د بلخ د قاضي متوکل بن حمران شهادت په بلخ کي.

**۷٦۰م ۱٤٦ق:**

د ابو مجاهد علي بن مسلم کابلي مشهور فقيه او عالم او دري قاضي او د ابو حنيفه د شيخ د ژوند وخت.

**۷٦۱م ۱٤٤ق:**

له متصور خليفه څخه د بست او قندهار خلک ياغي سول او د زهير بن محمد ازدي سره ئې سخت جنګونه وکړه.

ابو عثمان عمرو بن عبيد کابلي محدث او مفتي او شيخ معتزله او مفسر وفات سو.

**۷٦۷م ۱۵۰ق:**

مقاتل بن سليمان مروزي چه د قرآن تفسير ئې په بلخ کي ليکلي ؤ تر دنيا تير سو.

ابو حاتم بلخي او کنکه له هندي څخه کتاب السموم په پهلوي را واړاوه.

استاد سيس هروي له بادغيسه د حريش سيستاني په ملګري را ولاړ سو، عربي لښکرو اويا زره تنه د سيس ملګري ووژل، دی په بغداد کي ووژل سو، مرجيله ښکلي لور ئې هارون خليفه وکړه چه د مأمون مور وه.

**٦۹۹-۷٦۷م ۸۰-۱۵۰ق:**

عباسي واليانو په نشاپور کي په خپل نامه سکه ووهله.

روسي سوداګرانو د بيز نتين او بغداد

او پارس او کرمان او جنوبي افغانستان له لاري د سند او هند او چين تجارت کاوه.

**۷٦۷م ۱۵۰ق:**

ابوالجارو د زياد بن منذر خراساني شيعي فقيه او د حضرت امام محمد باقر د تفسير راوي وفات سو.

په سيستان کي د محمد بن شداد لغيري او آذرويه بن مرزبان زردشتي ولاړيدنګ.

د معن بن زايده راتګ او تر رخج (ارغنداو) پوري پر مختګ.

سيستانيانو په ۱۵۱ق د ده نس ور څيري کئ.

**۷۲۹م ۱۵۲ق:**

په ويهند کي د بدهـ د معبد پر ځاي مسجد جوړ سو.

**۷٤٤م ۱۵۸ق:**

د مقاتل بن سليمان بلخي محدث وفات په آبادان کي.

**۷۷۵م ۱۵۹ق:** په سيستان کي د خارجي نوح ولاړيدنه او د حمزه بن مالک په لاس محو کيدل.

امام حسين بن واقد د مرو قاضي او ابو غانم يونس مروزي قاضي مړه سول.

**۷۷٦م ۱٦۰ق:**

يوسف البرم خارجي په ميمنه، مرغاب او پوشنج کي را ولاړ سو عربي حکمران يزيد بن مزيد ئې ونيوي، او په بغداد کي وواژه سو.

خاقان لويک په ګرديز کي.

امير ناصر بن امير کروړ سوري په غور کي.

**۷۷۷م ۱٦۱ق:**

د هاشم بن حکيم (مقنع) ولاړيدنه (د مرو د کازه له کلي څخه) په هرات او بادغيس او مرو کي د ده د سپين کاليو انقلابيانو ښورښتونه، چي ديرش زره تنه ئې په ماوراء النهر کي ووژل سوه (۱٦۳ق ۷۷۹م).

**۷۷۸م ۱٦۲ق:**

ابراهيم بن ادهم بلخي مشهور صوفي او زاهد د روم په سوفتن کي مړ سو.

**۷۷۹م ۱٦۳ق:**

د امام ابراهيم بن تهمان باشاني لوي هروي محدث په مکه کي وفات.

د ابو معاذ بکير نشاپوري قاضي او مفسر وفات.

د شيخ ابو بکر يعقوب قاري وفات او ښخيدل په بلخ کي.

**۷۸۰م ۱٦٤ق:**

د غزني په درب باميان کي د لويکانو د بت خانې پر ځاي مسجد افلح جوړ سو.

**۷۸۰-۷۸۳م ۱٦٤-۱٦۷ق:**

د مسيب بن زهير حکمراني او د مسيبي سکې رواج.

بشار بن برد تخاري مشهور شعوبي شاعر (تولد ئې ۹۵ق) د المهدي خليفه په حکم تر وهلو لاندي مړ سو ۱٦۷ق.

د آمو په بيانان کي د فضل آباد جوړول

۱۷۶ق.

المهدي خليفه خپل استاځی کابل شاه خنجل (خنگل) ته واستاوه (۱٦٤ق).

**۷۸۲م ۱٦٦ق:**

د فضل بن سليمان په حکم د هرات مځکي مساحت سوې.

د هرات دحله فروشانو بازار يزيد بن جرير بجلي جوړ کئ.

**۷۸۳م ۱٦۷ق:**

د محمد بن ميمون مروزي محدث او عالم وفات.

**۷۸۵م ۱٦۹ق:**

تميم بن سعيد د سيستان حکمران پر بست او رخج تر ارغنداوه حمله وکړه او رتبيل ورور ئې ونيو.

د نصر صيقل بن عبدالکريم بلخي لوي فقيه وفات.

**۷۸٦م ۱۷۰ ق شاوخوا:**

امير بنجي نهاران قسيم امير المؤمنين په غور کي امير او شيس بن بهرام د غور سپه سالار سو.

**۷۸۷م ۱۷۱ق:**

جعفر بن محمد پر خراسان حکمران سو او د ده زوي عباس کابل ونيو او د شاه بهار معبد ئې وران کئ.

د بلخ د قاضي عمر بن ميمون رماح وفات به بلخ کي.

**۷۸۹م ۱۷۳ق:**

عباس بن جعفر د خراسان حکمران سو، او د سيستان او هلمند خلک د حضين په مشري وښوريدل.

د ابو عصمه نوح بن يزيد مروي قاضي د حنفي فقه د جامع وفات.

**۷۹۰م ۱۷٤ق:**

خالد عطريف د خراسان حکمران د (غطريفي) درهم سکه ووهله.

د سقيق بن ابراهيم بلخي زاهد شهادت په واشگرد کي.

**۷۹۲م ۱۷٦ق:**

داؤد بن بشر سيستاني د سيستان والي سو. ده د حضين سيستاني ښورښت په سيستان کي آرام کئ.

حسن شير باميان.

**۷۹۳-۷۹۵م ۱۷۷-۱۷۹ق:**

برمکي فضل د بلخي يحيي زوي د خراسان حکمران سو او نيم مليون د (خراسان لښکر) ئې ودراوه. د بخارا نوي مسجد ئې جوړ کئ. باميان ئې ونيوي او د سرخ بت او شابهار معبدونه ئې وران کړل. حسن ئې د خپلو نيکونو په لقب (شير باميان) هلته مقرر کئ.

**۷۹۳م ۱۷۸ق:**

فضل د يحيی برمکي زوي د نوبهار يوه څنډه ونړوله او پر ځاي ئې د بلخ مسجد جوړ کئ.

**۷۹٦م ۱۸۰ق:**

علي بن عيسی ماهان د خراسان والي ؤ.

د ابو عاصم محمد بن فضل فقیه او محدث وفات.

**۷۹۷م ۱۸۱ق:**

د عبدالله بن مبارک مروزي امام او محدث وفات.

**۷۹۸-۸۲۸م ۱۸۲-۲۱۳ق:**

امیر حمزه بن عبدالله سیستاني په خراسان کي د خارجیانو په مرسته پورته سو. هارون الرشید د ده مقابلي ته خراسان ته راغي. حمزه له نشاپوره تر سند پوري سیمي ونیولې او په ۲۱۳ق ووژل سو.

**۷۹۸م ۱۸۲ق:**

د وسیم بن جمیل بلخي شیخ او محدث وفات او ښخیدل په بلخ کي.

**۸۰۲م ۱۸۷ق:**

د فضیل بن عیاض مروي د خراسان د لوي صوفي په کونه کي وفات.

د جعفر بن یحیي برمکي لوی وزیر وژل په بغداد کي (تولد ئې ۱۵۰ق).

**۸۵۰م ۱۹۰ق:**

عایذ بن حبیب هروي محدث او د امام احمد شیخ وفات سو.

د یحیی بن خالد برمکي بلخي د بغداد د وزیر وفات (ولادت ۱۲۰ق).

**۸۰۲م ۱۹۱ق:**

هرثمه بن اعین د خراسان والي سو.

فضل بن موسي مروي محدث وفات سو.

**۸۱۸م ۱۹۳ق:**

عباس بن جعفر د خراسان والي سو، هارون الرشید د ربیع الاول په میاشت په طوس کي مړ او ښخ سو.

په همدغه کال د مامون په ستاینه کي عباس مروزي دري قصیده وویله (؟) او ابو سهل نصیر مروزي عالم وفات سو.

په همدغه کال د مامون په ستاینه کي عباس مروزي دري قصیده وویله (؟) او ابو سهل نصر مروزي عالم وفات سو.

علي بن عیسی بن ماهان د بلخ علي آباد جوړ کي.

فضل بن یحیي برمکي په حبس کي مر سو.

**۸۰۹-۸۱۸م ۱۹۴-۲۰۳ق:**

مامون خلیفه په خراسان کي و.

د ابو حفص عمر بن هارون بلخي عالم او شقیق بن ابراهیم بلخي زاهد او فقیه د وفات کال ۱۹٤ق.

**۸۱۱م ۱۹٦ق:**

د مامون او امین په جنگ کي د طاهر پوشنگي لښکرکشي او د بغداد نیول.

د امام بخاري محمد بن اسماعیل زیږیدنه.

د عمر بن هارون بلخي محدث او مفتي وفات او ښخیدل په بلخ کي.

**۸۱۲م ۱۹۷ق:**

سامان خداة بلخي چه زردشتي و، د مامون الرشید پر لاس مسلمان سو. اسد د ده زوي د مامون په دربار کي و.

**۸۱٤م ۱۹۹ق:**

په بست کي د خاش حرب بن عبيده ولاړ سو.

د خراسان د لوي قاضي ابو مطيع حکم بن عبدالله بلخي د فقه الاکبر د راوي او د حفص بن عبدالرحمن بلخي د نشابور د قاضي وفات.

کابلشاه د خپل دربار يو عالم او منجم ذوبان حکيم د مامون الرشيد دربار خراسان ته واستاوه.

د ابو معاذ خالد بن سليمان امام وفات او ښخيدل په بلخ کي.

# ۵
# ښپلواک خراسان
# ۲۰۰ق

**له ۸۱۸-۸۱۵م ۱۰۰ تر ۲۰۰ق:**

په خراسان کي د عربي اشرافيت پر خلاف د شعوبيه وو پيدا کيدل.

د عربي ژبي رواج.

په سيستان او خراسان کي د اموي او عباسي خلافت پر خلاف د خوارجو خپريدنه.

په دري ژبه د عربي لغاتو ننوتل.

د خراسان په ښارو کي د معتزله وو خپريدنه.

دلته ابو مسلميه فرقه پيدا سوه، چي ابو مسلم ئې د الوهيت درجي ته ورساوه.

**۸۱۵-۹۰۰م ۲۰۰-۲۸۵ق:**

د حديث د صحاحو تأليف د خراسان د پوهانو له خوا او د دې علم تشکيل او په خراسان کي د علم حديث او حنفي فقه رواج.

**۸۱۵م ۲۰۰ حدود:**

چغان خدات د آمو پر شمالي غاړو حکمران و.

د موسى بن سليمان جوزجاني حنفي فقيه د السير الصغير د مؤلف وفات.

محمد بن خاقان د گرديز کوشاني شهزاده.

لکتور مان کابلشاه.

امير بنجي نهاران په غور کي.

حمزه شارى امير المومنين د سيستان خارجي قائد د گرديز کلا جوړه کړه.

د کراميانو د مذهبي فرقې پيدا کېدنه.

د خراساني او عربي فرهنگ سره گډيدنه او د يوه (خراساني اسلامي) کلتور پيدا کيدنه.

د حنظله بادغيسي د دري شاعرئ دوره.

د ابوسليمان موسي جوزجاني عالم وفات.

**۸۱۶م ۲۰۱-۲۰۲ق:**

په خراسان کي وچ کالي او کاختي.

د قاسم بن زريق بلخي فقيه وفات او ښخېدل په بلخ کي.

په ټول افغانستان کي د بريد (پست) لاري او پړاوونه جوړيدل.

په خراسان کي د عيارانو د ډلو جوړښت چي جوانمردان او فتيان ئې هم بلل.

**۸۱۷م ۲۰۲ق:**

فضل بن سهل خراساني وزير د مرو په يوه حمام کي وواژه سو (ولادت ئې په سرخس کي ۱٤٥ق).

خواجه قطب الدين محمد زخبند د هرات په ښار کي وفات او ښخ سو.

**۸۱۸م ۲۰۳ق:**

د نصر بن شميل مروي د نحو د امام او محدث وفات.

د امام علي رضا (رض) وفات او ښخيدنه په طوس کي (دو شنبه د شوال ۷) ولادت ئې په مدينه کي ۱٥۳ق.

امام علي رضا په هرات کي سکه ووهله (د مشهد موزيم).

**۸۱۹-۸۲۱م ۲۰٤-۲۰٦ق:**

د غسان بن عباس حکمراني د آمو پر سيمو او د نوح بن اسد ساماني روزنه په سمرقند کي او په خراسان کي د ايله جراي لښکرو بلوا په ۲۰٦ق.

**۸۲۰م ۲۰٦ق:**

داؤد بن بانيجور تخاري د بصرې عامل و.

**۸۲۱-۸۲۲م ۲۰۵-۲۰۷ق:**

طاهر د حسين پوشنگي زوي په خراسان کي مستقل دولت جوړ کړ او په جمعه ۲٤ د جمادي الاخري ۲۰۷ق ئې استقلال اعلان کړ او مړ سو.

**۸۲۱م ۲۰٦ق:**

د اسحاق بن بشر بن محمد بلخي بخاری مورخ د کتاب الفتو د مؤلف وفات په بخارا کي. ولادت ئې په بلخ کي.

**۸۲۲-۸۲۸م ۲۰۷-۲۱۳ق:**

طلحه د طاهر زوي په خراسان کي پاچا و.

**۸۲٦م ۲۱۱ق:**

د ابو بکر ابراهيم بن رستم مروزي حنفي فقيه وفات.

د ابو معاذ فضل بن خالد مروزي نحوي وفات.

**۸۲۷م ۲۱۲ق:**

د محمد بن يوسف فريابي محدث او عالم وفات. تولد ئې ۸۲۷م ۱۲۰ق.

**۸۲۸-۸٤٤م ۲۱۳-۲۳۰ق:**

له طاهريانو څخه د دريم پاچا عبدالله بن طاهر پاچهي. ده په ۲۱۳ق زردشتي کتابونه وسوځل.

**۸۲۹م ۲۱٤ق:**

د شداد بن حکيم بلخي قاضي او حنفي فقيه وفات او ښخېدل په بلخ کي.

**۸۳۰-۲۱۵ق:**

د مکی بن ابراهيم بلخي محدث او عصام بن يوسف بلخي فقيه او محدث. او يحيی بن نصر مروي محدث وفات.

**۸۳۵م ۲۲۱ق حدود:**

د احمد بن عبدالله حبش مروزي لوي منجم د ژوندانه عصر او پر زيج شهريار باندي د ده څېړني.

د محمود وراق د دري قديم شاعر او سعيد اخفش اوسط بلخي د سيبويه د شاګرد وفات.

**۸۳۷م ۲۲۳ق:**

د ابو عبيد قاسم بن سلام هروي لوي محدث او فقيه او مؤلف وفات په مکه کي (ولادت ئې په هرات کي ۱۵۷ق).

**۸۳۹م ۲۲۵ق:**

د فرغانې سخته ريږدل (زلزله).

**۸٤۰م ۲۲٦ق حدود:**

عمران بن موسی بن يحيي برمکي د سند امير ؤ د ده پلار موسی هم د سند امير و چه په ۲۲۱ق مړ سو او دئ ئې پر ځاي کښېنوست.

د ليث بن مساور د بلخ د قاضي او فقيه وفات او په بلخ کي ښخيدنګ.

**۸٤۱م ۲۲۷ق:**

د سعيد بن منصور جوزجاني بلخي محدث او مفسر وفات په مکه کي (رمضان).

د بشر حافي بن جارث مروي صوفي او محدث وفات په بغداد کې.

افشین د شمالي شرقي خراسان یو مشر، د عباسي دربار سپه سالار ووژل سو.

**۸٤٤م ۲۳۰ق:**

د ابو الینبغی عباس بن طرخان دري بیتونه د سمرقند په مرثیه کې.

د زکریا بن یحیي بلخي د الایمان د مؤلف او محدث وفات.

**۸٤٤-۸٦۲م ۲۳۰-۲٤۸ق:**

د دوهم طاهر د عبدالله زوي طاهري څلرم پاچا و.

**۸٤٦م ۲۳۲ق:**

داؤد بن الیاس د پانیجور کهول د شمالي هندوکش پاچا سکه ووهله.

ابو الولید احمد بن ابي رجا عبدالله هروي لوي محدث په هرات کې وفات او ښخ سو.

**۸٤۷م ۲۳۳ق:**

د یحیي بن معین سرخسي مشهور محدث او رجالي پوهاند وفات (د ده تولد ۷۷٤م ۱٥۸ق).

د ابو علي حسین بن ولید نشاپوری (کمیل) لوي محدث وفات ۲۳۳ق.

**۸٤۷-۸۷۲م ۲۳۳-۲٥۹ق:**

داؤد بن الیاس د آل بانیجور څخه د بلخ او تخار او هندوکش د سیمو پاچا.

**۸٤۹م ۲۳٥ق:**

د سریج بن یونس مروزي محدث او مفسر او فقیه وفات.

**۸٥۲م ۲۳۸ق:**

د اسحاق بن ابراهیم (ابن راهویه) لوي مروي محدث او فقیه وفات.

**۸٥٥م ۲٤۰ق:**

د محمد بن عمر وراق ترمذي بلخي صوفي د ژوند وخت.

د امام قتیبه بن سعید بغلاني لوی محدث وفات او ښخېدل په بغلان کي (ولادت ۱٤۸ق په بلخ کي).

**۸٥٥م ۲٤۱ق:**

د لوي مروي عالم او د مذهب خاوند امام احمد بن حنبل وفات (تولد ۷۸۰م ۱٦٤ق)

د ابو قدامه عبیدالله بن سعید سرخسی محدث وفات.

**۸٥٦م ۲٤۲ق:**

الیاس د ساماني اسد زوي په هرات کي مړ سو.

د محمد بن اسلم طوسي مفسر او محدث د الایمان و الاعمال د مؤلف وفات.

**۸٥۷م ۲٤۳ق:**

د هاشم بن بانیجور تخاري د وخش د حکمران وفات.

**۷۷۷-۸٥۹م ۱٦۰-۲٤٤ق:**

د احمد بن منیع بن عبدالرحمن بغوي مرورودي محدث د ژوند دوره.

د محمد بن ابان بلخي محدث وفات په بلخ کي ۲٤٤ق.

د قاضي ابو مطیع بلخي وفات به بلخ کي.

د محمد بن مالک بلخي فقيه وفات او ښخېدل په بلخ کي.

**۸٦۱-۸۷۸م ۲٤۷-۲٦٥ق:**

د يعقوب ليث صفاري پاچهي پر افغانستان او ايران باندي.

د احمد بن يعقوب بلخي عالم وفات او ښخېدل په بلخ کي ۲٤۷ق.

**۸٦۱م ۲٤۷ق:**

په ۲٥ محرم يعقوب ليث صفاري په زرنج کي پاچا سو.

**۸٦۲-۸۷۲م ۲٤۸-۲٥۹ق:**

محمد د دوهم طاهر زوي د خراسان پادشاه ؤ.

هوي-چاو-کور-يائی راهب باميان ته راغئ ۸۷۲م.

**۸٦٤-۹۹۰م ۲٥۰-۳۸۰ق:**

په چغانيان او تخار او د آمو په سيمو کي د آل محتاج د اقتدار دوره.

**۸٦٤-۱۰۱۹م ۲٥۰-٤۱۰ق:**

په جوزجان کي د فريغون کهول پاچهي، د دوي اقتدار تر غور او هلمند پوري و.

**۸٦٤م ۲٥۰ق حدود:**

د بسام کورد خارجي او د محمد بن مخلد قديم دري شعرونه په سيستان کي.

احمد د چغان خدات له کهوله په چغانيان کي حکمران و.

د بيټ نيکه (شيخ بيټنی) د پښتو مناجات دوره (يو قديم شعر).

د کلر کابلشاه ژوند.

له خراسانه تر اباسين پوري له آمو څخه بيا تر بحيرهٔ عرب پوري د بغداد د خلافت ټول مالي عايدات ٤٥ مليونه درهمه وو. چي ټول نزدې و ۲٥٥ مليون افغانيو ته کيږي.

د ابو حاتم سهل بن محمد سيستاني د عربي ژبي د عالم وفات (۲٤۸ق؟).

د آل شاکر خراساني منجمانو او مهندسانو د ژوند دوره.

د آل اماجور مشهورو هراتي منجمانو او د زيج د مصنفانو د ژوند دوره.

د خالد مروزي د کهول د مهندسانو او منجمانو او رصديانو د ژوند دوره.

**۸٦٥م ۲٥۱ق:**

يعقوب ليث صفاري په سيستان کي عمار خارجي وځابه.

ايوب بن حسن نشاپوري فقيه وفات سو.

د محمد بن ازهر خراساني فقيه د الا ختيارات د مؤلف وفات.

محمد بن طاهر پوشنگي د کابل پيلان او خوشبويه شيان د مستعين خليفه دربار بغداد ته واستول.

**۸٦٤-۹۱۲م ۲٥۰-۳۰۰ق حدود:**

په کوه سليمان (کسي غره) کي د کيس عبدالرشيد درې زامن (غرغښت، بيټنی، سړه بن).

**۸٦٥م ۲٥۱ق:**

کوشان گومل بغپور شاه بوسر (د خاقان له کهوله) په پختيا کي.

**۸٦٦م ۲٥۲ق:**

يعقوب ليث صفاري پاچا ته صالح بن حجر د رتبيل تربور د ارغنداو په کوهژ (کوهک) کي ياغي سو، يعقوب دی په ۲٥۳ق وواژه.

د زيار بن ايوب طوسی محدث او گرزندوي وفات (ولادت ١٦٦ق).

**۹٦۷م ۲٥۳ق حدود:**

امير سوري په غور کي. يعقوب ليث صفاري رخج، والشتان، بست، هرات ونيول.

**۸٦۹م ۲٥٥ق:**

د شمر بن حمدويه هروي د عربي ژبي عالم او د کتاب الجيم د خاوند وفات.

د محمد بن کرام سيستاني د کراميانو د مذهب مؤسس په بيت المقدس کي او د محمد بن علي حکيم ترمذي په ترمذ کي وفات.

د ابو حاتم سهل بن محمد سجستاني عالم وفات (ولادت ئې ۱۷۲ق).

**۳۱ اگست ۸۷۰م ۳۰ رمضان ۲٥٦ق:**

امام محمد بن اسماعيل بخاري د صحيح بخاري خاوند د سمرقند په خرتنگ کي وفات او هم ئې هورې ښخ کئ.

**۸٦۹م ۲٥٦ق:**

يعقوب ليث پر فيروز بن کنک کابلشاه باندي برى وموند.

**۸۷۰م ۲٥۷ق:**

يعقوب ليث صفاري کابل ونيو او د کابل بتان ئې د بغداد د المعتمد خليفه دربار ته واستول.

ابو داود سليمان بن اسحاق سجستاني صاحب السنن وفات په بصره کي.

**۸۷۱م ۲٥۸ق:**

ابو منصور افلح د محمد بن خاقان لويکي زوي په گرديز کي يعقوب ليث ته غاړه کښيښوه، لس زره درهمه حجه ئې د کاله ومنله.

يعقوب ليث له داؤد بن الياس بانيجوري څخه بلخ ونيو.

**۸۷۲-۸۹٥م ۲٥۹-۲۸۲ق:**

دريم طاهر د محمد زوي د طاهريانو آخرنی پاجا به نشاپور کي.

**۸۷۳م ۲٥۹ق:**

يعقوب ليث صفاري پر محمد بن طاهر پوشنگي برى وموند او هغه ئې زنداني کئ.

د ابراهيم بن يعقوب جوزجاني لوي محدث وفات.

**۸۷۳-۸۷۸م ۲٦۰-۲٦٥ق:**

ابو داؤد محمد بن احمد بن بانيجور د بلخ او تخار او جوزجان او ترمز پاچا و، په ۲٦۰ق ئې سکه وهلې ده.

**۸۷۳م ۲٦۰ق:**

يعقوب ليث صفاري به پنجهير کي سکه ووهله.

**۸۷۳م ۲٦۰ق شاوخوا:** محمد بن وصيف سگزی د يعقوب ليث د دربار سرمنشي په دري ژبه يوه قصيده د پاچا په ستاينه کي وويله.

**۸۷۳م ۲٦۰ق:**

ابو محمد فضل بن شاذان نشاپوري شيعي عالم کلام او دامام رضا د شاکرد او لوی مؤلف وفات.

**۸۷٤-۸۹۲م ۲٦۱-۲۷۹ق:**

نصر د احمد ساماني بلخي زوی د شمالي افغانستان او ماوراء النهر ساماني اول پاچا و.

**۸۷۵م ۲٦۱ق:**

د امام مسلم بن حجاج قشيري نشاپوري د صحيح مسلم خاوند وفات د نشاپور په نصر آباد کي (۲۵ رجب).

د بايزيد طيفور بن عيسی بسطامي مشهور خراساني صوفي وفات په بسطام کي.

په نشاپور کي د احمد بن عبدالله خجستاني راولاړيدل.

د محمد بن فضيل بلخي عابد وفات او تدفين په بلخ کي (ولادت ۱۷۱ق).

**۸۷۸-۹۰۰م ۲٦۵-۲۸۷ق:**

د عمرو ليث صفاري د پاچهۍ دوره.

**۸۷۸، ۲٦۵ق:**

يعقوب ليث صفاري په دو شنبه ۱٤ شوال په جنديسابور کي په قولنج مړ سو.

خواجه علي بن موفق لوی شيخ او صوفي په هرات کي وفات او ښخ سو.

**۸۷۹م ۲٦٦ق:**

احمد بن عبدالله خجستاني په خراسان کي ښورښت وکړ خو عمرو ليث دی په ۲٦۷ق مات کړ.

احمد بن عبدالله خجستاني د خراسان امير، د بيهق د سبزوار مسجد او منبر جوړ کي.

**۸۸۰م ۲٦۷ق:**

د ابو بکر نصر بن يحيی شاذان بلخي محدث او فقيه وفات.

**۸۸۱م ۲٦۷ق:**

د امام ابو الحسن احمد بن سيار مروزي محدث او شافعي فقيه وفات.

د احمد بن عبدالله خجستاني وژل.

د نصر بن يحيي بلخي فقيه او عالم زاهد وفات او ښخيدل د بلخ په نوبهار کي.

**۸۸۲م ۲٦۹ق:**

محتاج د احمد زوي د چغان له پښته په چغانيان کي د آل محتاج موسس سو.

د محمد بن فروخ بلخي زاهد وفات او ښخيدل په بلخ کي.

**۸۸٤م ۲۷۱ق:**

د حمدون قصار نشاپوري د ملامتيانو د شيخ وفات په نشاپور کي.

**۸۸۵-۹۰۵م ۲۷۲-۲۹۳ق:**

بيگ بن عباس بن بانيجور تخاري د ختل حکمران ؤ.

حارث بانيجوري تخاري په ختل کي سکه ووهله.

**۸۸٦م ۲۷۲ق:**

د ابو معشر جعفر بن محمد بلخي منجم وفات په واسط کي.

د بغداد د خليفه فرمان د عمرو ليث پر خلاف.

**۲۲ فروري ۸۸۹م ۱٦ شوال ۲۷۵ق:**

د امام ابو داؤد سليمان بن جارود سجستاني د صحيح سنن د خاوند وفات په بصره کي.

**۸۹۰م ۲۷۸ق:**

د سید ابو عبدالله محمد مختار بن احمد هروي وفات او ښخیدل په هرات کي.

**۸۹۲-۹٤۸م ۲۷۹-۳۳۷ق:**

اسمعیل بن احمد ساماني دوهم پادشاه.

**۸۹۲م ۲۷۹ق:**

د عمرو لیث سلطنت پر خراسان ومنل سو.

د محمد بن سلمه بخلي عابد وفات.

**۸۹۲-۹۰۰م ۲۷۹-۲۸۸ق:**

د ابو جعفر احمد بن محمد بن احمد بن بانیجور د حکمراني دوره، ده په ۲۸۸ق په اندراب کي سکه ووهله.

**۸۹۳م ۲۸۰ق:**

د ابوبکر احمد نسایي خراساني محدث د التاریخ الکبیر خاوند وفات.

د احمد بن طاهر ابن طیفور خراساني مرورودي مورخ د تاریخ بغداد د مؤلف وفات (تولد ئې ۲۰٤ښ).

**۱ نومبر ۸۹۲م دوشنبه ۱۲ د رجب ۲۷۹ق:**

د امام ابو عیسی محمد بن عیسی ترمذی د جامع صحیح خاوند وفات په ترمذ کي.

**۸۹۳م ۲۸۰ق:**

د افلح بن محمد د گردیز د لویک او سامند کابلشاه د ژوند وخت.

د علي بن عبدالله بن هیصم هروي عالم او ادیب وفات.

د عثمام بن سعید د ارمي سیستاني او هروي لوي محدث وفات په هرات کي (ولادت ئې ۲۰۰ق).

د محمد بن اسماعیل سلمي ترمذي محدث وفات.

د محمد بن عمر بلخي شافعی د العالم و المتعلم د مؤلف وفات (مشهور په وراق).

اسماعیل ساماني د خلافت له درباره د ماوراء النهر او بلخ په امارت ومنل سو.

**۸۹۵م ۲۸۲ق:**

د طاهریانو سلطنت چه له ۲۰۵ق څخه شروع سوي و، پر دریم طاهر باندي په نشاپور کي ختم سو.

**۸۹٦م ۲۸۳ق:**

عمرو لیث د بست د اورد سیمي یو بت د بغداد خلیفه المعتضد ته واستاوه.

**۸۹۸م ۲۸۵ق**

د محمد بن اسحاق بن سعید سعدي هروي شافعي محدث او فقیه د کتاب الضیاع د مؤلف وفات.

**۸۹۹م ۲۸٦ق:**

ابو العباس احمد بن محمد سرخسي لوی خراساني فیلسوف او ریاضي پوهاند د یعقوب کندي شاگرد وواژه سو (په ابن الطیب مشهور و).

د علي بن عبدالعزیز بن مرزبان بغوي محدث د المسند الکبیر د مؤلف وفات.

**۹۰۰م ۲۸۷ق:**

عمرو لیث صفاري د ۷۰ زرو سپرو سره په

بلخ کي د اسماعيل ساماني سره وجنګيدئ خو ونيول سو او بغداد ته واستول سو، چي هلته ئې مړ کئ.

د ابو سعيد يحيي بن منصور زاهد د هرات د جامع امام وفات (شعبان).

ابو عمران سيمجور دواتي (د سامانيانو سر منشي) د خراساني سيمجوريانو د کهول موسس او د ري حکمران و په ٣١٤ق.

ابو الفضل بلعمي د امير اسماعيل ساماني وزير سو.

**٩٠١م ٢٨٩ق:**

عمرو ليث صفاري پاچا په بغداد کي وواژه سو.

اسماعيل ساماني پاچا د خراسان په امارت هم ومانه سو.

د حسين بن محمد بن زياد نشاپوري محدث وفات.

**٩٠١-٩٠٨م ٢٨٩-٢٩٦ق:**

طاهر بن محمد بن عمرو ليث د سيستان پاچا و.

**٩٠١-١١١١م ٢٨٩-٥٥٠ق:**

د غرستان (غرجستان) د شارانو کهول د حکمرانۍ دوره.

**٩٠٦م ٢٩٠ق:**

د هرات د امام زاهد او محدث ابو سعيد مهين وفات او ښخئيدل په هرات کي.

مسعودي مروزي د دري لرغوني شاعر د شاهنامې نظم کونکي د ژوند وخت.

د منصور بن اسحاق سجستاني فقيه او اصولي وفات.

**٩٠٣م ٢٩١ق:**

کملو کابلشاه و.

د محمد بن ابراهيم پوشنګي فقيه او محدث وفات په نشاپور کي (ولادت ٢٠٤ق).

**٩٠٥م ٢٩٢ق:**

د احمد بن علي بن سعيد مروزي د دمشق د قاضي وفات (ولادت ٢٠٢ق).

د محمد بن احمد هروي فقيه او محدث وفات.

**٩٠٦م ٢٩٤ق:**

د محمد بن نصر مروزي فقيه او محدث وفات په سمرقند کي (ولادت ئې ٢٠٢ق).

د عبدالله بن محمد بن علي... بن زبير بلخي محدث او مؤرخ وژل په بغداد کي.

**٩٠٦م ٢٩٣ق:**

د عبدالله بن محمد عيسى مروزي محدث او د شافعي مذهب خپروونکي او لوي مفتي وفات په مرو کي (ولادت ئې ٢٢٠ق).

**٩٠٧-٩١٣م ٢٩٥-٣٠١ق:**

د احمد د اسمعيل زوي ساماني دريم پاچا سلطنت.

د امام ابوبکر محمد بن اسماعيل مهران نشاپوري لوي محدث وفات.

**٩٠٨-٩١٠م ٢٩٦-٢٩٨ق:**

ليث بن علي بن عمرو ليث (شير لباده) د سيستان پادشاه و.

**٩٠٩م ٢٩٧ق:**

ابو محمد هاشم سرواني د پښتو قديم شاعر

په بست کې مړ سو (ولادت ئې په سروان کې ۲۲۳ق).

لیث بن علي د سیستان امیر د ساماني قائد حسين بن علي مرورودي په امر ووژل سو او پر ځاي ئې معدل بن علي کښېنوست خو دی هم په ۲۹۸ق هرات ته نفي سو.

فضل د سهل زوي (ذوالر یاستین) د کابل شاه، تخت او تاج په مرو کې مامون خلیفه ته را وړل او هغه تاج په کعبه کې وځړول سو.

مهراب د دوهمي کوشاني کهول له کابلشاه و.

**۹۱۰-۹۸۸م ۲۹۸-۳۸۸ق:**

په خراسان کې د دواتي سیمجوري کهول اقتدار.

د احمد بن مسروق طوسي صوفي وفات په بغداد کې (ولادت ۲۱٤ق).

د ذکریا بن یحیی نشاپوري(بزاز) فقیه او محدث وفات.

د محمد بن علي بن طرخان بلخي محدث وفات (ولادت ۲۲۱ق).

**۹۱۱م ۲۹۹ق:**

ابو علي معدل بن علي بن لیث د سیستان صفاري پنځم پاچا په هرات کې نفي البلد و.

**۹۱۲م ۳۰۰ق:**

د ابو علي حسين بن احمد سلامي بیهقي د کتاب ولاة خراسان او نورو کتابو د مؤلف وفات.

د ابو العباس جنود مروزي د دري قدیم شاعر د ژوند عصر.

ابو سعد مظفر د محتاج زوي او ابوبکر محمد بن مظفر په ساماني دربار کې چغاني امیران وو.

ابو حفص حکیم بن احوص سغدي د دري قدیم شاعر شهرود د موسیقي آله اختراع کړه.

ابو حفص عمرو بن یعقوب بن محمد بن عمرولیث د سیستان صفاري شپږم پاچا په سیستان کې.

**۹۱۳-۹٤۲م ۳۰۱-۳۳۱ق:**

دوهم نصر د احمد زوي ساماني څلرم پاچا په خراسان او ماوراء النهر کې.

د جعفر بن محمد فریابي مشهور قاضي او محدث وفات (ولادت ئې ۲۰۷ق).

**اگست ۹۱۵م ۱۳ صفر ۳۰۳ق:**

د احمد بن علي نسایی د سنن نسایي خاوند وفات په رمله کې.

**۹۱۷م ۳۰۵ق:**

د محمد بن محمد بن سلام حنفي بلخي فقیه وفات.

**۹۱۹م ۳۰۷ق:**

په خراسان کې د احمد بن سهل د بغاوت کښېنول.

د عبدالرحمن بن حسن نشاپوري محدث او د مسند د خاوند وفات.

**۹۲۲م ۳۱۰ق:**

جعفر بن احمد بن محمد بانیجوري په ۳۱۰ق په ختل کې حکمران و ده په ۳۱۰-۳۱۲-۳۱۳ق سکه وهلې ده.

ابو عبدالله محمد بن احمد بن نصر جیهاني ساماني وزیر خپل جغرافي کتاب، المسالک و

الممالک، تأليف کړ چي اوس نسته.

د لوي خراساني محدث عبدالله بن محمد بغوي د معجم الصحابه د خاوند وفات (د ده تولد ۲۱۰ق ۸۲۵م).

**۹۲۳-۹۶۳م ۳۱۱-۳۵۲ق:**

د عبدالله بن عروه هروي محدث وفات او ښخيدل په هرات کي.

د امير ابو جعفر احمد بن محمد بن خلف بن ليث صفاري اوم پاچا سلطنت.

**۹۲٤م ۳۱۲ق:**

د ابراهم بن سرى هروي محدث د جزاء الا عمال د مؤلف وفات.

د حسن بن علي طوسي محدث وفات په طوس کي (ولادت ۲۲۲ق).

**۹۲۵م ۳۱۳ق:**

د محمد بن اسحاق خراساني نشاپوري محدث او مؤرخ وفات (ولادت ۲۱٦ق).

**۹۲۸م ۳۱٦ق:**

د محمد بن عقيل بن ازهر بلخي د تاريخ بلخ د مؤلف وفات.

د امام عبدالله بن داؤد سجستاني حنبلي پوهاند وفات.

د عبدالله بن سليمان سجستاني محدث او مفسر وفات په بغداد کي (ولادت ۲۳۰ق).

**۹۳۰م ۳۱۸ق:**

د نصر ساماني د ورونو ياغي توب.

**۹۳۱م ۳۱۹ق:**

د ابو القادم عبدالله بن احمد کعبي بلخي لوى معتزلي عالم او د کعبيه ډلي پيشوا وفات.

د محمد بن فضل بلخي لوي صوفي وفات په سمرقند کي.

**۹۳۲م ۳۲۰ق حدود:**

بهيم د يو کابلشاه په گندهارا کي د ابراهم بن محمد بيهقي د المحاسن و المساوي د مؤلف د ژوند وخت.

**۹۳۳م ۳۲۱ق:**

ابو بکر محمد بن مظفر بن محتاج چغاني د ټول خراسان سپه سالار او حکمران د ساماني دربار له خوا چي په ۳۲۹ ق وفات سو.

**۹۳٤م ۳۲۲ق:**

د ابو زيد احمد بن سهل لوي متکلم او فيلسوف او د صور الاقاليم د مؤلف وفات (ولادت ئې ۲۳۵ق).

**۹۳۵م ۳۲۳ق:**

د موسى بن عباس بن محمد جويني نشاپورى لوي محدث وفات په جوين کي.

**۹۳٦م ۳۲۵ق:**

د ابو الحسن شهيد بن حسين جهودانکى بلخي شاعر او متکلم وفات.

**۹۳۷م ۳۲٦ق:**

د احمد بن عصمة صفار بلخي فقيه وفات او ښخيدل په بلخ کي.

**۹۳۸-۹۵۵م ۳۲۷-۳٤٤ق:**

د ابو علي احمد بن محمد بن مظفر بن محتاج چغاني د اقتدار وخت (متوفي ۳٤٤ق).

**۹۳۸م ۳۲۷ق:**

د ابو علي جيهاني وزارت په ساماني دربار کي.

**۹۳۹م ۳۲۸ق:**

د ابو بکر محمد بن سعيد بلخي فقيه وفات او ښخيدل په بلخ کي.

**۹۴۰م ۳۲۹ق:**

د ابو عبدالله جعفر بن محمد رودکي د دري د مشهور شاعر وفات (مولد ئې د سمرقند په بنج کي په ۲۵۰ق) د محمد بن احمد مروزي (ابن الوراق) فقيه د بيان السنه د مؤلف وفات.

**۹۴۰م ۳۳۰ق:**

د ابو الفضل محمد بن عبدالله بلعمي مروي د سامانيانو د وزير وفات (د دري تاريخ طبري مترجم).

**۹۴۱م۳۳۰ق حدود:**

د ابو شعيب صالح بن محمد هروي دري لرغونی شاعر وفات.

**۹۴۲م ۳۳۱ق:**

په ماوراء النهر کي د شيعه وو بلوا او د نصر ساماني عزل.

ابو يعقوب اسحق بن احمد سکزی اسماعيلي داعي د کشف المحجوب ليکوال به بخارا کي ووژل سو.

**۹۴۲-۹۴۵م ۳۳۱-۳۴۳ق:**

د لومړي نوح د نصر زوي ساماني پنځم پاچا د امارت دوره.

**۹۴۴-۹۴۶م ۳۳۳-۳۳۵ق:**

ابو علي ابراهيم بن سيمجور د هرات او نشاپور والي و (متوفي ۳۳۶ق).

**۹۴۴-۹۴۷م ۳۳۳-۳۳۶ق:**

ابو العباس فضل بن محمد بن مظفر چغاني د ساماني لښکر سپه سالار و چي په ۳۳۶ق په بخارا کي بندي سو.

**۹۴٤م ۳۳۳ق:**

د بو شکور بلخي لوي دري شاعر د ژوند وخت. د عبدالله بن محمد ترخان بلخي محدث او رجالي عالم وفات. د محمد بن احمد اسکاف بلخي عالم وفات او ښخيدنگ په بلخ کي.

**۹۴۵م ۳۳٤ق:**

د ابو علي چغاني ياغي توب، دئ په ۹۴۷م مات کړ سو. د ابو اسحاق احمد بن محمد بن ياسين حداد هروي محدث او مورخ او د تاريخ هرات د مؤلف وفات.

د وزير الحاکم الشهيد ابو الفضل محمد بن حکم سرخسي بلخي وژنه. دې د مختصر کافي مؤلف دی.

**۹۴۸-۹۹۸م ۳۳۷-۳۸۹ق:**

د ابو حارث محمد بن احمد امارت په جوزجان کي. دی د فريغونيانو دوهم پاچا دئ چه د حدود العالم کتاب د ده په نامه ليکل سوی دئ.

**۹۴۸م ۳۳۸ق:**

ابراهيم بن سيمجور مړ سو او پر ځاي ئې منصور د قراتگين زوي د خراسان سپه سالار سو (د ساماني پاچا له خوا).

**۹۵۱م ۳٤۰ق:**

د خراسان حکمران منصور بن قراتگين مړ سو، او پر ځای ئې ابو علي چغاني له ساماني درباره مقرر سو.

ابو المظفر عبدالله بن احمد بن محمد بن

مظفر چغاني امير له آسه ولويد او مړ سو.

ابو منصور بن احمد بن محمد بن مظفر د چغانيان امير و.

**٩٥١م ٣٤٠ق حدود:**

د ابو عبدالله محمد بن حسن معروفي بلخي شاعر د ژوند حدود.

**٩٥٢م ٣٤١ق:**

د ابو الحسن حکيم کسايي مروزي د دري قديم شاعر د ژوند وخت.

د شرح المرزني د مؤلف شافعي فقيه ابراهيم بن احمد مروزي وفات.

**٩٥٣م ٣٤٢ق:**

د ابو بکر محمد بن داؤد نشاپوري صوفي د اخبار الصوفيه د مؤلف وفات.

د محمد بن داؤد صوفي نشاپوري د کتاب الشيوخ د مؤلف وفات.

**٩٥٤-٩٦١م ٣٤٣-٣٥٠ق:**

د لومړي عبدالملک د نوح زوي ساماني شپږم پاچا د امارت دوره.

**٩٥٤م ٣٤٣ق:**

له ساماني درباره څخه بکر بن مالک فرغاني د خراسان حکمران او ابو منصور محمد بن عزيز وزير و.

**٩٥٥م ٣٤٤ق:**

ابو احمد خلف بن احمد (ابن بانو) د سيستان صفاري اتم پاچا سلطنت (وفات ئې ٣٩٩ق).

د ابو علي چغاني او ستوق بغرا خان مړينه.

د محمد بن محمد بن يوسف طوسي شافعي فقيه او محدث او د خراسان د مفتي وفات (ولادت ٢٥٠ق).

**٩٥٦م ٣٤٥ق:**

د خراسان حکمران بکر بن مالک فرغاني وواژه سو.

**٩٥٧م ٣٤٦ق:**

ابو الحسن سيمجوري په خراسان کي د نوح ساماني په فرمان سپه سالار او حکمران سو.

د ابو العباس احمد بن محمد د کتاب المدخل د مؤلف د وفات کال.

د ابو منصور محمد بن عبدالرزاق خراساني سپه سالار په نامه د منثوري ابو منصوري شاهنامې تاليف، چي د محمد بن عبدالله معمری په ښوونه وليکله سوه.

**٩٥٩م ٣٤٨ق:**

د ابو منصور يوسف بن اسحاق وزارت په سامانه دربار کي.

**٩٦٠م ٣٤٩ق:**

د شيخ محمد بن عبدالله الحاکم نشاپوري لوی محدث وفات په نشاپور کي (تولد ئې ٢٧٧ق).

ابو منصور بختگين د خراسان قائد وفات سو.

ابو منصور محمد بن عبدالرزاق د خراسان سپه سالار او حکمران و. چه وروسته امير حاجب الپ تگين د اول عبدالملک ساماني پاچا له خوا د خراسان سپه سالار او حکمران سو.

**۹٦۱م ۳۵۰ق:**

الپ تگین، منصور بن نوح ساماني پاچا ته یاغي سو، او غزني ته راغي، او هغه ئې له لویک څخه ونیوه ۳۵۱ق.

**۹٦۱-۹۷٦م ۳۵۰-۳٦٦ق:**

د لومړي منصور د نوح زوی ساماني اوم پاچا د امارت دوره چي وزیر ئې ابو علي محمد بلعمي سو.

**۹٦۱م ۳۵۰ق حدود:**

د ابو المؤید بلخي شهنامه او د ده عجایب البلدان په دري نثر تالیف سول.

رابعه د کعب قزداري یا بلخي لور د دري قدیمه شاعره په دغو وختو کي وه.

د سیستان د پاچا خلف بن احمد صفاري په امر یو د قرآن لوی تفسیر سل ټوکه په ۲۰ زره دیناره مصرف تالیف سو.

د ابو عبدالله محمد بن صالح ولواجي (تخارستاني) د دري قدیم شاعر د ژوند وخت.

د ابو سلیمان محمد بن معشر بستي ژوند چي د اخوان الصفا له مؤلفینو څخه دئ.

منصور بن افلح لویکي په غزنه او گردیز کي حکمران و.

جیه پاله کابلشاه په گندهارا کي.

**۹٦۲م ۳۵۱ق:**

الپ تگین غزني ونیو.

ابو منصور عبدالرزاق په خراسان کي یاغي سو.

ابو الحسن سیمجوري د خراسان حکمران سو.

د علج بن احمد سجزي محدث او فقیه د مسند الکبیر مؤلف وفات سو (ولادت ۲٦۰ق).

**۹٦۳-۹٦۹م ۳۵۲-۳۵۹ق:**

امیر طاهر بن محمد بن طاهر (د مور له خوا صفاري) د سیستان امیر و.

**۹٦۳م ۳۵۲ق:**

د الپ تگین د غزني د حکمران وفات چي اسحاق زوي ئې پر ځاي کښېنوست.

**۹٦٤م ۳۵۳ق:**

اسحاق د الپ تگین زوی له غزني څخه بخارا ته وتښتید او لویک دی مات کړ.

**۹٦٤م ۳۵۳ق:**

خلف بن احمد د سیستان پادشاه حج ته ولاړ.

**۹٦۵م ۲۲ شوال ۳۵٤ق:**

د ابو حاتم محمد بن حبان بستي د سمرقند د قاضي او لوي عالم او مؤلف وفات په بست کي (ولادت په بست کي ۲۷۰ق) قبر ئې هم په بست کي و.

**۹٦۵م ۳۵۵ق:**

اسحاق د الپ تگین زوی د غزني حکمران مړ سو، او بلکاتگین ئې پر ځاي کښېنوست او په ۳۵۸ ق ئې په غزني کي سکه ووهله او په ۳٦۵ق مړ سو.

د خواجه ابو احمد ابدال چشتي وفات (د ده تولد ۲٦۰ق ۸۷۳م دئ) او به چشت کي ښخ دئ.

**۹٦۵م ۳۵۵ق حدود:**

د ابو جعفر خازن خراساني لوی منجم او رياضي پوهاند د ژوند وخت.

**۹٦٦م ۳۵٦ق:**

د امام فقيه ابو علي حامد بن محمد رقاع هروي وفات او ښخيدل په هرات کي.

**۹٦۸م ۳۵۸ق:**

د شيخ ابو حامد بن احمد شارکي هروي محدث او مفسر وفات او ښخيدل په هرات کي.

**۹٦۹م ۳۵۹ق:**

مکتوم بن حرب په اندراب کي سکه ووهله.

**۹٦۹-۹۸۳م ۳۵۹-۳۷۳ق:**

امير حسين د طاهر زوی د سيستان امير و.

**۹۷۰م ۳٦۰ق حدود:**

ابو علي محمد بن عبدالله بلعمي وزير (متوفي ۳٦۳ق) تاريخ طبري په دري ژبه ترجمه او لنډ کړ.

د همدغه کال په شاوخوا کي د منصور بن نوح ساماني په امر يوې ډلي پوهانو تفسير طبري په دري ترجمه کړ.

**۹۷۱م ۱۰ محرم ۳٦۱ق:**

د سلطان محمود زيږيدنه.

**۹۷۲م ۳٦۲ق:**

د شيخ خراسان اسماعيل بن عبدالله بن محمد بن ميکال سر منشي او د نشاپور د ميکالي خاندان د مشر وفات په نشاپور کي (تولد ئې ۲۷۰ق).

د احمد بن عامر بن بشر مرورودي شافعي فقيه او د بصري د قاضي وفات.

د ابو جعفر محمد بن عبدالله هندواني بلخي فقيه وفات او په بلخ کي ښخيدنګ.

**۹۷۴م ۳٦٤ق:**

د ابو علي بلعمي وزير او د يوسف بن اسحاق وزير مړينه.

د بلکاتګين اقتدار په غزني کي.

**۹۷۵م ۳٦۵ق:**

پيري تګين په غزني کي.

**۹۷۵-۹۸٤م ۳٦۵-۳۷٤ق:**

په اندراب کي د سهلان بن مکتوم د امارت دوره چي سکه ئې هم وهلې ده.

ابو منصور محمد بن احمد دقيقي بلخي لوی شاعر مقتول سو ۳٦۵ق (؟).

ابو علي يا ابوبکر لويک په غزنه او ګرديز کي.

**۹۷۳-۹۷٦م ۳٦۵-۳٦٦ق:**

د امير پيري تګين حکمراني پر غزني باندي. (د غزنويانو څلرم پاچا).

**۹۷٦-۹۹۷م ۳٦٦-۳۸۷ق:**

په غزني کي د امير سبکتګين ناصر الدوله حکمراني (د غزنويانو پنځم پاچا).

**۹۷٦-۹۹۷م ۳٦٦-۳۸۷ق:**

دوهم نوح د منصور زوی ساماني اتم پادشاه.

**۹۷٦م ۳٦٦ق:**

د لوګر په چرخ کي د غزني د آخري لويک او کابلشاه په ګډه د سبکتګين سره جنګ او د

دوي ماته.

**۹۷٦م ۲۷ شعبان ٦٦ ۳ق:**

د ناصر الدين امير سبکتگين بن جوق قرابجکم بن قرا ارسالان جلوس په غزني کي او د آل ناصر د سلطنت پيل.

**۹۷۷م ۳٦۷ق:**

د ابو الجيش مظفر بن محمد خراساني بلخي متکلم مؤلف وفات.

**۹۸۰م ۳٦۹ق:**

د محمد بن سليمان بن محمد صعلوکي نشاپوري شافعي فقيه او مفسر او اديب وفات په نشاپور کي (ولادت ئې ۲۹٦ق).

**۹۸۰م ۳۷۰ق حدود:**

قراتگين په غزني کي.

د عبدالله ابو بکر بن احمد ازهري هروي د کتاب التهذيب خاوند او لوی لغوي وفات.

**۹۸۰م ۳۷۰ق:**

شيخ حميد لودي پښتون پاچا په ملتان کي او د ده روغه له سبکتگين سره (۳۸۲ق).

اسحاق بن محمد بن اسماعيل مشهور په حکيم سمرقندي عربي السواد الاعظم په ۲۹۰ق وليکئ او د ۳۷۰ق په شاوخوا کي په دري ژبه ترجمه سو. (د تهران طبع ۱۳٤۸ د عبدالحي حبيبي په اهتمام).

**۹۸۱م ۳۷۱ق:**

فردوسي د شاهنامې نظم شروع کئ.

شيخ ابو زيد محمد بن احمد مرغزي په هرات کي وفات او ښخ سو (۱۳ رجب).

**۹۸۲م ۳۷۲ق:**

د ابو الحسن سيمجوري پر ځاي تاش د خراسان سپه سالار سو.

عبدالله بن احمد عتبي د نوح بن منصور ساماني وزير قتل سو.

احمد بن جعفر بن احمد د آل بانيجور حکمران او ابو علي احمد بن محتاج مرستيال ئې په چغانيان کي.

يوه جوزجاني عالم د حدود العالم جغرافي کتاب په دري د جوزجان د امير محمد بن احمد فريغوني په نامه وکيښ او لومړي پلا ئې په اسلامي دوره کي د افغان ذکر وکئ.

**۹۸۳م ۳۷۳ق:**

د فقيه ابو الليث نصر بن محمد سمرقندي وفات او ښخدل په بلخ کي

**۹۸٤ م ۳۷٤ق:**

د ابو عمرو احمد بن محمد زوزنی (د هرات او نشاپور تر منځ) د عربي ژبی لوی عالم وفات.

د عبدالله بن موسی سلامي مورخ او اديب وفات په مرو کي.

**۹۸۵م ۳۷۵ق:**

د سلجوقيانو ظهور د بخارا په شاوخوا کي.

**۹۸٦م ۳۷٦ق:**

د عبدالله بن محمد بن عزير وزارت په ساماني دربار کي.

د معجم الشيوخ د مؤلف ابراهيم بن احمد مستملي بلخي وفات.

**۹۸۷م ۳۷۷ق:**

په خراسان کي ابو الحسن سيمجوري او

فايق پر تاش باندي بري وموند.

ابو الظفر طاهر بن فضل بن محمد بن مظفر د چغانيان امير د منجيک شاعر ممدوح مړ سو.

**۹۸۸م ۳۷۸ق:**

د ناصر الدوله ابو الحسن محمد بن ابراهيم بن سيمجور دواتي مړينه. د ده په نامه سکه هم وهلي سوې ده.

د ابو نصر سراج طوسی عبدالله بن علي د کتاب اللمع د خاوند او لوي صوفي وفات په طوس کي (رجب).

د محمد بن محمد کرابيسي نشاپوري محدث او قاضي وفات په بصره کي (ولادت ئې ۲۸۵ق). د خليل بن احمد سجزي د سمرقند د قاضي وفات.

د خواجه قربنج وفات په هرات کي او په گازرگاه کي ښخيدنه.

**۹۸۹م ۳۷۹ق:**

د ابو الحسن سيمجوري مړينه.

**۹۹۰م ۳۸۰ق:**

ابو بکر بن محمد بن ابراهيم بخاري کلا باذي د خراسان صوفي او د التعرف المذهب التصوف د مؤلف وفات، او ابو علي سيمجوري د خراسان حکمران سو.

ابو بکر ربيع بن احمد بخاري په طب کي د هداية المتعلمين کتاب په دري تاليف کئ.

**۹۹۰م ۳۸۰ق:**

د فخر الدوله ابو المظفر احمد بن محمد د چغانيان امير د فرخي د ممدوح د ژوند دوره.

شيخ رضی لودي د شيخ حميد وراره د پښتو قديم شاعر په کسي غره کي د اسلام تبليغ کاوه.

د محمد بن علي خسروي سرخسي او ابو محمد بديع بن محمد بلخي او د ابو الحسن علي بن محمد منجيک ترمذي د دري قديمو شاعرانو د ژوند دوره.

د ابو سليمان محمد بن طاهر منطقي سيستاني وفات.

د ابو الفضل احمد هروي رياضي دان او منجم وفات.

**۹۹۱م ۳۸۱ق:**

په لغمان کي د کابل رود پر غاړه د جيپاله کابلشاه ماته د سبکتگين له خوا. په دې سيمه کي د اسلام خپرونه. افغانان او خلجيان (غلجيان) د سبکتگين په لښکرو کي داخل سوه.

د احمد بن حسين بن مهران نشاپوري محدث وفات.

د محمد بن عبدالله هروي فقيه او مفسر وفات.

د طاهر بن فضل بن محمد بن محتاج چغاني امير او د دري ژبي شاعر د ژوند وخت.

د ابو الحسن محمد بن يوسف عامري نشاپوري (ابن ابي ذر) د کتاب السعادة و الاسعاد د مؤلف وفات.

**۹۹۲م ۳۸۲ق:**

د محمد بن احمد بن سليمان نوقاني سيستاني اديب او مؤلف وفات.

**۹۹٤م ۳۸٤ق:**

د هرات په جنګ کې د سبکتګین او محمود بری پر یاغي ابو علي سیمجوري باندي چي دوهم نوح ساماني امیر، پلار ته ناصر الدین او محمود ته د سیف الدوله لقب ورکي. او سبکتګین د خراسان په حکمداری تر کابله مقرر سو.

**۹۹٤م ۱۵ رمضان ۳۸٤ق:**

سبکتګین او امیر محمود په طوس کي ابو علي محمد مظفر دواتي مات کئ. هغه په ۳۸٦ق په خوارزم کي ونیول سو، په ګردیز کي بندي او په ۳۸۸ق مړ سو.

د محمد بن عمران مرزباني خراساني ادیب وفات په بغداد کي (ولادت ۲۹٦ق).

**۹۹۵م ۳۸۵ق:**

ابو الحسن بن ابو علي دواتي سیمجوري د سلطان محمود په لاس کنبیووت او په ګردیز کي بندي او مړ سو.

د ابو القاسم اسماعیل بن عباد طالقاني وزیر او لیکوال مړینه.

**۹۹٦م ۳۸٦ق:**

د قره خانانو او سبکتګین په ماوراء النهر کي مقابله.

د وزیر عبدالله بن عزیز معزولي او د وزیر ابو نصر احمد بن محمد مقرري.

**۹۹۷م ۳۸۷ق:**

امیر سبکتګین ٥٦ کلن پس له ۲۱ کاله سلطنته د بلخ او بامیان تر منځ د مدد موي په کلي کي وفات سو او په غزني کي خاورو ته وسپارل سو.

د محمد بن احمد بلخي خوارزمي مورخ د مفاتیح العلوم د مؤلف وفات.

امیر اسماعیل د سبکتګین زوی په غزني کي سکه ووهله (د غزنویانو شپږم پاچا) خو په دغه کال د غزني په جنګ کي سلطان محمود پر غالب سو.

د سهل بن محمد صعلوکي نشاپوري مفتي وفات.

**۹۹۷-۱۰۳۰م ۳۸۷-٤۲۱ق:**

د غزنویانو د اوم پاچا یمین الدوله سلطان محمود بن سبکتګین د پاچهي دوره.

**۹۹۷م ۳۸۷ق:**

د وزیر ابو نصر مړینه.

د وزیر ابو المظفر محمد بن ابراهیم برغشي مقرري.

د خوارزمشاه مامون مړینه او د علي بن مامون جلوس.

**۹۹۷-۹۹۸م ۳۸۷-۳۸۹ق:**

د دوهم منصور د دوهم نوح زوي د ساماني نهم پادشاه امارت.

**۹۹۷م ۳۸۷ق:**

د ابو الوفا محمد بن یحیي بوزجاني نشاپوري لوی خراساني ریاضي پوهان وفات (تولد ئې ۳۲۸ق).

**۹۹۸م ۳۸۸ق:**

د ابو سلیمان احمد بن محمد خطابي بستی د معالم السنن د مؤلف وفات په بست کي

(ولادت ۳۱۹ق).

د عماد الدوله ابو علي محمد مظفر بن محمد بن ابراهيم دواتي د خراسان د لوی حکمران مړينه. دی سکه هم لري.

د ابو الوفاء محمد بن محمد بوزجاني مشهور رياضي پوهاند وفات په بغداد کي (ولادت ئې ۳۲۸ق).

سلطان محمود ټول شمالي افغانستان ونيو او ساماني دربار هم د ده پاچهي ومنله.

**۹۹۸م ذيقعده ۳۸۹ق:**

د القادر بالله خليفه له خوا د بغداد د استاځو راتگ بلخ ته او سلطان محمود ته د (يمين اللدوله او امين المله ولي امير المؤمنين) لقبونه ورکول.

**۹۹۸م ۳۸۹ق:**

پر ابو القاسم سيمجوري باندي په خراسان کي د بگتو زون بری.

د برغشي وزير تيښته.

د ارسلان خان علي مړينه.

سلطان محمود د ساماني منصور او عبدالملک پر سالارانو بگتو زون او فائق خاصه باندي بری وموند.

دوهم عبدالملک د دوهم نوح زوی ساماني لسم پاچا پر تخت کښينوست.

شار رشيد د غرستان پاچا سلطان محمود ته غاړه کښيښوده او خطبه يې د ده په نامه وويله.

**۹۹۸م ۳۸۹ق حدود:**

امام ابو الحسن محمد بن شعيب بيهقي شافعي فقيه د نشاپور د سيار په کوڅه کي مدرسه بيهقيه جوړه کړه.

مدرسه صاعديه په نشاپور کي (يا سعديه) د شهزاده نصر بن سبکتگين په همت جوړه سوه.

**۹۹۹-۱۰۰۱م ۳۹۰-۳۹۲ق:**

په لغمان او پېښور او ويهند کي د سلطان محمود بری پر جيپاله کابلشاه باندي.

**۹۹۹م ۳۹۰ق:**

په خشباجي (اوسني د مقر زرکشان) کي د طلا کان ښکاره سو.

**۹۹۹-۱۰۱۹م ۳۹۰-٤۱۰ق:**

اوگره بوت منجم د کابلشاه انند پاله په دربار کي د شکهت پرت کتاب تاليف کئ.

**۹۹۹م ۳۹۰ق:**

ابو يعقوب اسحاق بن احمد سگزی خپل کتاب کشدف المحجوب په دري ژبه د اسماعيلي فرقې پر عقايدو وکيښ.

**۱۰۰۰م ۳۹۱ق:**

ابو القاسم علي بن محمد بن ابراهيم سيمجوري دواتي د هرات والي د نصر بن سبکتگين سره په سرخس کي وجنگيد او ونيول سو.

د طاهر بن خلف صفاري د سيستان د امير وفات.

د ابو سليمان محمد بن طاهر سجستاني منطقي لوی فيلسوف وفات.

**۱۰۰۱م ۳۹۲ق:**

سلطان محمود خپل سفير د اوزگند ايلک خان ته واستاوه.

**۱۰۰۲م ۳۹۳ق:**

سلطان محمود په حصار طاق کې د سیستان پاچا خلف ابن بانو کلابند کړ او هغه یې جوزجان ته واستاوه. په سیستان کې قبجي حاجب حکمران کړ.

ابو القاسم منصور بن محمد هروي د سلطان محمود وزیر یو قرآن په کوفي نسخي خط د مشهد رضوي کتابخانې ته وقف کړ چې تر اوسه هلته سته.

**۱۰۰۳م ۳۹٤ق:**

د فریغونیانو د کهول څلرم پاچا فریغون د محمد زوی په جوزجان کې.

**۱۰۰٤-۱۰۱۰م ۳۹۵-٤۱۰ق:**

په ملتان کې د ابو الفتوح داؤد بن نصر لودي څلرم پاچا سلطنت.

**۱۰۰٤م ۳۹۵ق:**

د ابو منصور عماره بن محمد مروزي دري قدیم شاعر د ژوند وخت.

**۹۹۹-۱۰۰٤م ۳۹۰-۳۹۵ق:**

ابو ابراهیم منتصرد دوهم نوح زوی ساماني آخرنی پادشاه و چې په ۳۹۵ق ساماني پاچهي ختمه سوه.

**۱۰۰۵م ۳۹٦ق:**

سلطان محمود په ملتان کې پر ابو الفتوح داؤد بن نصر بن حمید لودي دوهم پاچا باندي حمله وکړه هغه ججه ومنله.

د محمد بن احمد بن محمد نشاپوري محدث وفات (ولادت ۳۳۳ق).

د ابو العباس احمد بن محمد زاهد نسوي او خراساني صوفي د طبقات الصوفیه د مؤلف وفات.

**۱۰۰٦م ۳۹۷ق:**

د ترکستان ایلک خان چې بلخ او هرات نیولي ؤ، سلطان محمود بیرته ځني ونیول، او په شرخیان کې ماته وکړه.

**۱۰۰۷م ۳۹۸ق:**

د اسماعیل بن حماد جوهري فارابي د الصحاح في اللغه د خاوند وفات.

**۱۰۰۸م ۳۹۹ق:**

سلطان محمود کابلشاه انند پاله په ویهند کې د اباسین پر غاړه مات کړ.

خلف بن احمد د سیستان صفاري پادشاه په جلا وطني کې وفات سو (رجب).

**۱۰۰۹م ٤۰۰ق:**

د ابو الفتح علي بن محمد بستي لوی منشي او شاعر وفات په اوزگند کې.

**۱۰۰۹م ٤۰۰ق حدود:**

عنصری د سلطان محمود د ملتان د فتوحاتو په شرح کې تاچ الفتوح نظم کړ.

فرخي د سلطان محمود د دربار شاعر دولت نامه د سلطان د فتوحاتو په بیان کې زر بیته نظم کړه.

په دري ادب کې د داستان سرایۍ رواج او د قصیده ویلو عروج.

شار ابو محمد بن محمد د غرستان شاه د سلطان محمود سره وجنگید او مړ سو.

د مرسل بن منصور لویکي د ژوند وخت.

ابو العباس فضل بن احمد اسفرايني د سلطان محمود وزير په بلخ کي يوه مدرسه جوړه کړه.

د حسين ابن سينا او د ابو عبيد عبدالواحد بن محمد جوزجاني د ابن سينا د شاګرد د ژوند وخت.

ابو الحسن محمد بن سليمان بيحقي مزيد التاريخ د غزنويانو پر احوال تاليف کړ.

د سلجوق د درو زامنو ميکائيل، اسرائيل، موسی يرغلونه او اقتدار د آمو پر سيمو او د خراسان پر شمال باندي.

د محمد بن حسين خراساني مشهور په ابو جعفر خازن د رياضي او فلکياتو پوهاند د ژوند وخت.

د محمد بن احمد بن محمد نوقاني سجستاني د العلم و العلماء د مؤلف او محدث وفات.

**۱۰۱۰م ٤۰۱ق:**

سلطان محمود ملتان ونيو او ابو الفتوح داؤد پښتون لودي پاچا ئې په غورک کي بندي کړ.

شمس الکفاة احمد بن حسن ميمندي د غزنوي سلطنت په وزارت وټاکل سو.

ابو العباس فضل بن احمد اسفرايني د سلطان محمود له وزارته معزول سو.

د امام ابو عبيد احمد بن محمد هروي د غريب القرآن د مؤلف وفات.

ابو العباس احمد اسفرايني د سلطان محمود وزير په شکنجه کي.

په خراسان کي وچ کالي او کاختي.

**۱۰۱۰-۱۰۲۵م ٤۰۱-٤١٦ق:**

شمس الکفاة احمد بن حسن ميوندي د سلطان محمود وزير و چي په ٤١٦ق معزول او په هند کي بندي سو (متوفا ٤٢٤ق).

**۱۰۱۱م ٤۰۲ق:**

د ايلک خان نصر او تغان خان استاځي سلطان محمود ته راغي.

تاهر تي د مصر ايلچي د الحاکم با مرالله اسماعيلي له خوا غزني ته را وليږول سو، خو په لار کي مړ کړ سو.

د جوزجان د پاچا ابو نصر ابو الحارث فريغوني وفات.

د يحيي بن عمار سيستاني لوی عالم او د خواجه عبدالله انصاري د مرشد وفات او د هرات په خيابان کي د ده ښخونه.

فردوسي د شاهنامې نظم تمام کړ.

د حنفي لوي فقيه او زاهد اسماعيل بن حسين بيهقي وفات.

**۱۰۱۱-۱۰۱۲م ٤۰۲-٤۰۳ق:**

سلطان محمود پنجاب او کشمير ونيول.

**۱۰۱۲م ٤۰۳ق:**

سلطان محمود غرجستان ونيوځ او د شارانو مستقله شاهي ئې ختمه کړه.

**۱۰۱۲-۱۳م ٤۰۳ق:**

د ايلک خان نصر مړينه او د ايلک احمد بن علي جلوس په ماوراء النهر کي.

**۱۰۱۳-۱٤م ٤۰٤ق:**

د وزير ابو العباس فضل اسفرايني مړينه.

په يارکند کي د قدر خان يوسف د غزني سره دوستانه روابط.

د امام سهل محمد صعلوکي لوی مفتي او عالم وفات په نشاپور کي.

**۱۰۱۴م ٤۰٥ق:**

وزير احمد ميوندي خوارزم شاه ته ووېل چي خطبه د سلطان محمود په نامه ووايي.

سلطان محمود د بست له لاري پر غور يرغل وکړ او د هغه ځاي امير محمد سوري ئې د آهنگران په کلا کي محصور او بندي کړ. امير محمد سوري په زهرو ځان وواژه.

امير بو علي د محمد سوري زوي د غور په منديش کي د سلطان محمود تابع امير سو. او مسجدونه، مدرسې او مانۍ جوړي کړې.

د ابو عبدالله محمد بن عبدالله حاکم نشاپوري محدث او د تاريخ نشاپور د موظف وفات (ولادت ئې ۳۲۱ق).

**۱۰۱٥-۱٦م ٤۰٦ق:**

خوارزم شاه مامون د سلطان محمود خور واده کړه.

د ابو علي حسن بن علي د قاق نشاپوري عالم او صوفي او واعظ وفات.

شار ابو نصر محمد بن اسد د غرستان پاچا په ٤۰٥ق د سلطان محمود په لاس بندي سو او په ٤۰٦ ق په هرات کي مړ سو.

**۱۰۱٦م ٤۰۷ق:**

د عبدالله بن محمد بن ابراهيم نشاپوري واعظ او مفسر وفات.

د سلطان محمود يرغلونه په پنجاب او کشمير باندي.

**۱۰۱۷م ٤۰۷ق شوال:**

د خوارزم خلکو مامون خوارزم شاه د سلطان محمود اخښي مړ کي. سلطان محمود خوارزم ونيو.

د عبدالملک بن محمد خرگوشي نشاپوري شافعي فقيه او واعظ وفات په نشاپور کي. ده په خرگوشي کوڅه کي يوه مدرسه او کتابخانه او روغتون جوړ کړی وو.

**۱۰۱۷م ٤۰۸ق:**

سلطان محمود ابو الحارث محمد بن علي بن مامون خوارزمشاه هيسته کړ او پر ځاي يې لوي حاجب التونتاش هلته د خوارزمشاه په ډول وگماره.

د جوزجان مقامي اميران فريغونيان ختم سول او د دوي سيمي د غزنوي سلطنت ضميمه سوې.

د ايلک خان لور د غزني وليعهد مسعود ته واده سوه.

سهزاده مسعود رسما د سلطان محمود وليعهد سو.

نظام الملک حسن بن علي طوسي وزير وزيږيد.

د ابو الخير خمار حسين بن سوار مشهور خراساني فيلسوف او عالم وفات (تولد ئې ۳۳۱ق).

**۱۰۱۸م ٤۰۹ق:**

سلطان محمود به غزني کي يو مسجد جامع او په هغه پوري نښتی يوه لويه مدرسه

جوړه کړه.

د امام ابو منصور ازهري هروي لغوي عالم وفات.

امام هیصم بن محمد بن عبدالعزیز ناوي هروي د قصص نابي مؤلف وفات سو.

**۱۰۱۸-۱۹م ۴۰۹-۱۰ق:**

سلطان محمود د هند قنوچ تر ګنګا پوري ونیول، او درې ملیونه درهمه غنیمت یې واخیست.

**۱۰۱۹م ۴۱۰ق:**

له هندوستانه د راستون کیدو پر وخت سلطان محمود له افغانانو سره ونښت.

**۱۰۱۹م ۴۱۰ق:**

حسن د ابو نصر احمد زوی د فریغوني کورنۍ آخر شهزاده.

**۱۰۱۹م ۴۱۰ق حدود:**

د ترو جنپاله کابلشاه د ژوند وخت.

د غرستان د پاچا شانورد شیر ژوند.

د امام ابو الطیب سهل بن سلیمان صعلوکي مشهور محدث او فقیه او د سلطان محمود د دربار ملا ژوند وخت.

امام قفال صغیر عبدالله بن احمد مروي شافعي (متوفا ۴۱۷ق) د مآثر محمودي کتاب وکیښ.

حاکم امام ابو سلیمان فندق بن ایوب بن حسن له والشتانه د سلطان محمود په حکم د نشاپور قاضي سو.

ابو بکر عبدالله بن یوسف سیستاني حصیري د سلطان محمود ندیم ؤ.

د ابو القاسم منصور بن حسن فردوسي طوسي وفات. دی د شاهنامې شاعر او د دنیا له لویو شاعرانو څخه دئ (تولد ئې ۳۳۰ق)

ابو سهل احمد بن حسن حمدوي د سلطان محمود او مسعود وزیر او د ري حکمران و تر ۴۳۰ق پوري.

**۱۰۲۰م ۴۱۱ق:**

د خرښبون بن سړه بن بن کیس وفات د کسي غره په جنوبي لمن کي. دا سړي د پښتنو مشر و او پښتو شعر یې سته.

سلطان محمود غور فتح کئ.

د شیخ الاسلام یونس بن طاهر نصیري بلخي عالم د کتاب بهجه د مؤلف وفات او ښخیدل په بلخ کي.

**۱۰۲۱م ۴۱۲ق:**

د ابو عبدالرحمن محمد بن حسین سلمي نشاپوري مشهور صوفي او د طبقات الصوفیه د مؤلف وفات په نشاپور کي (ولادت یې ۳۲۵ق).

د حافظ احمد بن محمد مالیني هروي محدث وفات په مصر یا په هرات کي.

د امیر نصر بن امیر سبکتګین د سلطان محمود کشر ورور وفات.

سلطان محمود د کشمیر لوهر کوټ کلا بند او فتح کئ.

**۱۰۲۲م ۴۱۳ق:**

سلطان محمود د هند ګوالیار او کالنجر ونیول.

د قاضي محمد بن فضل رواس (میرک بلخي) مفسر او عالم وفات او ښخیدل په بلخ

کي.

د محمد بن احمد جارودي هروي لوی محدث وفات.

**۱۰۲۳م ۴۱۳ق:**

د امام ابو محمد اسماعیل بن ابراهیم سرخسي لوی عالم وفات او د هرات د عیدگاه غربي خوا ته یې ښخیدل. دی د مناقب الشافعي مؤلف دي (ولادت یې تر ۳۲۰ق وروسته).

د ابو سعید احمد بن محمد سجزي لوی منجم او ریاضي پوهاند وفات.

محمد بن عثمان وراق او غزنوي مذهب یو خوشخطه قرآن وکیښ چي په ۴۱۴ق یې وقف کړ. (د مشهد رضوي کتابخانه).

د محمد بن آدم هروي متکلم او لغوي د دیوان متنبي د شارح وفات.

سلطان محمود تر کسی غره (کوه سلیمان) پوري د افغانانو سیمي تولي ونیولې.

**۱۰۲۴-۲۵م ۴۱۵-۱۶ق:**

سلطان محمود ماوراء النهر ونیو او د کاشغر د قدر خان سره یې معاهده وکړه.

**۱۰۲۴م ۴۱۵ق:**

اسماعیل د بیټنی زوي په کوه سلیمان، وازه خوا کي د پښتنو مشر و. د ده پښتو شعر سته.

سلطان محمود خپل وزیر احمد بن حسن میوندي عزل او مصادره او په هند کي بندي کړ.

ملا محمد غزنوي چي د سلطان محمود سره هند ته تللي و یو تاریخ یې وکیښ چه تر ۱۰۳۲ق پوري لا په هند کي ؤ.

د علي بن محمد هروي ادیب او نحوي د وفات وخت.

امام ابو اسحق ابراهیم بن محمد اسفرایني په نشاپور کي یوه مدرسه جوړه کړه.

**۱۰۲۵م ۴۱۶ق:**

سلطان محمود څلور زره کهوله سلجوقیان خراسان ته راوستل.

په دغه کال ده د جنوبي هند پر کاتیا وار حمله وکړه او د سومنات مندر یې وران کړ. گجرات یې هم ونیوه.

سلطان محمود په ماوراء النهر کي د قدر خان سره ولیدل.

د خواجه ابو عبدالله محمد طاقي سجزي وفات او ښخیدل په هرات کي.

د لوي محدث امام ابو عبدالله محمد بن یمان وفات او ښخیدل په هرات کي.

د فردوسي طوسي وفات په طوس کي.

سلطان محمود د سلجوق اسرائیل چي د سلجوقیانو مشر ؤ د هندوستان په کالنجر کي بندي کړ.

**۱۰۲۶م ۴۱۷ق:**

د عبدالله بن احمد قفال صغیر مروزي مشهور شافعي فقیه د مآثر محمودي د مؤلف وفات په سیستان کي (تولد یې ۳۲۷ق).

د خلیفه القادر بالله سفیر له بغداده سلطان محمود ته راغي.

بهیم پاله آخرني کابلشاه د گندهارا په شرق کي.

**۱۰۲۷م ۴۱۸ق:**

دوه تنه سفیران قلتنکا او قاشي د قتا خان

او يغر خان له خوا له خطا او ختن څخه د سلطان محمود دربار ته راغله.

د امام ابو اسحق ابراهيم بن محمد بن ابراهيم اسفرايني مشهور عالم وفات په نشاپور کي.

د سلطان محمود آخره حمله پر هند او د ملتان د جتانو ايلول.

عيسى بن عبدالله بلخي کاتب يوه نسخه خوشخطه قرآن وکيښ (د ميلان کتابخانه).



**۱۰۲۸م ۴۱۹ق:**

ابو علي حسن بن محمد نشاپوري (حسنک) د سلطان محمود وزير سو.

**۱۰۲۹م ۴۲۰ق:**

سلطان محمود ټول ايران ونيو او شهزاده مسعود يې په اصفهان کي خپل نائب وټاکه.

بوريحان بيروني خپل کتاب التفهيم لاوايل صناعة التنجيم د ريحانه بنت الحسن په نامه تاليف کئ.

د ابود العباس فضل بن عباس صاغاني محدث د ژوند وخت په بغداد کي.

د محمد بن عبدالله مسعودي مروزي شافعي فقيه د شرح مختصر المرزني د مؤلف وفات به مرو کي.

**۱۰۲۹-۱۱۰۶م ۴۲۰-۵۰۰ق:**

د صاعد د کهول د مشهورو پوهانو او قاضيانو د ژوند وخت په نشاپور او هرات کي.

**۱۰۳۰ پنجشنبه ۲۳ ربيع الاخر ۴۲۱ق:**

د سلطان محمود وفات او د غزني په باغ فيروزي کي ښخول. د ده عمر ۶۱ او پاچهي ۳۳ کاله وه. مملکت يې د هند له گنگا څخه تر دجلې پوري او د شمالي خوا له سير دريا څخه جنوباً د عربو تر بحيرې پوري پروت ؤ.

امير محمد د سلطان محمود زوي په غزني کي سکه ووهله (د غزنويانو اتم پاچا).

**۱۰۳۰-۱۰۴۰م ۴۲۱-۴۳۲ق:**

د ناصر الدين الله سلطان مسعود بن محمود د سلطنت دوره په غزني کي (د غزنويانو نهم پاچا).

**۱۰۳۰م رمضان ۴۲۱ق:**

القادر بالله خليفه له بغداده خپل عهد اولوا د مرسل بن منصور گرديزي په لاس سلطان مسعود بن محمود ته په نشاپور کي را وليږل او ده ته يې ناصر الدين الله لقب ورکئ.

**۱۰۳۰م ۴۲۱ق شوال:**

امير محمد د سلطان محمود زوي په تگين آباد کي ونيول سو او ړوند کړ سو.

سلطان مسعود خواجه احمد بن حسن ميوندي د هند له زندانه را وغوښت او وزير يې کي.

حسن ميکالي (امير حسنک) د سلطان محمود وزير په بلخ کي د سلطان مسعود په حکم په دار سو.

د ابو بکر محمد بن اسحاق بن ممشاد واعظ د کراميانو د رئيس وفات په نشاپور کي.

د علي بن احمد نسوي خراساني رياضي پوهاند او مهندس او منطقي د ژوند وخت.

**۱۰۳۱م ۲۲٤ق:**

سلطان مسعود کرمان او مکران ونيول. او استاځي يې کاشغر ته واستول.

امام يحيي بن عمار سجستاني هروي وفات او د هرات په خيابان کي ښخ سو.

**۱۰۳۱م ۲۳٤ق:**

سلطان مسعود هرات ته ولاړ او سپه سالار عبدوس يې د سلجوقيانو ترکمانانو مقابلې ته وټاکه.

امير ابو يعقوب يوسف بن سبکتگين د سلطان مسعود په حکم د سگاوند د کلا په حبس کي مړ سو.

**۱۰۳۲م ۲٤٤ق:**

د قدر خان مړينه، د ارسلان سليمان مړينه.

التونتاش خوارزم شاه بخارا ته لښکر بوت او مړ سو.

**۱۰۳۲-۱۰۳۵م ٤۲٤-٤۲۷ق:**

هارون د التونتاش زوی په خوارزم کي د غزني تر حمايت لاندي پر تخت کښېنوست.

**۱۰۳۳م ٤۲٤ق:**

د خواجه احمد بن حسن ميوندي د غزني د لوي وزير په هرات کي وفات (۲۰ محرم). احمد بن علي بن عبدالصمد وزير سو.

**۱۰۳۳م ٤۲٥ق:**

د مسعود لښکر کشي پر آمل، ساري، طبرستان.

عباس بن شيش د بو علي وراره د غور امير د منديش د ولايت په سنگه کلا کي يو رصد گاه جوړه کي.

د شيخ ابو الحسن علي بن جعفر خرقاني لوی صوفي وفات (سه شنبه ۱۰ محرم په عمر ۷۳کاله).

شيخ اسعد بن محمد سوري د پښتو شاعر د زمينداور په بغنی کي مړ سو.

ابو القاسم علي بن حاتم بيهقي چي د سلطان محمود په وخت کي مشرف و، د سلطان مسعود په فرمان صاحب بريد سو.

**۱۰۳٤م ٤۲٦ق:**

احمد ينالتگين په هندوستان کي ياغي سو، سلطان مسعود د ده مقابلې ته هندو سپه سالار تلک بن جهلن واستاوه.

هارون سلطان مسعود ته ياغي سو، د سلطان مسعود استاځی له کاشغره راغلل، د بغرا خان استاځی سلطان مسعود ته را ورسيدل.

د شافعی فقه د امام ابو علي حسين بن شعيب مروزي سنجي وفات.

**۱۰۳٥م ٤۲۷ق:**

احمد ينالتگين مات او په درياي سند کي ډوب سو.

سلجوقيان په خراسان کي.

د علي تگين زامنو استاځي مسعود ته راغي.

د ابو نصر محمد بن عبدالجبار عتبي د تاريخ يميني د ليکوال وفات.

**۱۰۳٥-۳٦م ٤۲۷-۲۸ق:**

سلطان مسعود په هند کي پر هانسي حمله وکړه او خپل زوي امير مجدود يې د لاهور حکمران وټاکه.

**۱۰۳۵-۱۰٤۱م ٤۲۷-٤۳۳ق:**

اسماعيل خندان د التونتاش زوى په خوارزم کي اقتدار وموند.

د محمد بن علي هروي لغوي او د مصر د مؤذن وفات (ولادت يې ۳۲۷ق).

**۱۰۳۷م ٤۲۸ق:**

د شيخ الرئيس بو علي حسين بن عبدالله ابن سينا بلخي لوى فيلسوف طبيب او د دري او عربي مؤلف وفات په همدان کي (تولد يې صفر ۳۷۰ق په بخارا کي).

د امام اسحاق بن ابراهيم بن محمد هروي عالم وفات او د هرات په نمازگاه کي ښخيدل.

د سلطان مسعود استاځي ترکستان ته ولاړل او د هغه ځاي استاځي مسعود ته راغلل.

سلطان مسعود په جوزجان کي علي قندوزي مات کي.

**۱۰۳۷-۳۹م ٤۲۹-۳۱ق:**

سلطان مسعود د سلجوقيانو سره په شمالي ولاياتو کي په شخړه بوخت و، دوى ته يې اورشوگاني ورکړې او د غور له خوا غزني ته راغي.

سلطان طغرل سلجوقي په نشاپور کي پاچا سو او خپل ورور ييغو يې د سيستان او پوشنگ او هرات حکمران کئ.

د ابو منصور عبدالملک بن محمد ثعالبي نشاپوري د يتيمة الدهر د ليکوال وفات (تولد يې ۳۵۰ق).

د ابو الحسن بن جلوغ فرخي سيستاني د دري لوى ستايوال بولله ويونکي شاعر وفات.

د اسحاق بن ابراهيم بن محمد قراب سرخسي هروي مورخ او محدث وفات (ولادت ۳۵۲ق).

**۱۰۳۸-۳۹م ٤۳۰ق:**

پر صغانيان د مسعود ژمني لښکر کشي.

ابو يعلي بيهقي حنيفي د ديوان انشا مشر خپل کتاب السيرة المسعوديه د سلطان مسعود غزنوي لپاره تاليف کي.

د ابو علي حسين بن شعيب سنجي مروزي شافعي فقيه او د فروعو د مؤلف وفات.

د مقامات بو نصر مشکان تاليف.

**۱۰۳۹م ٤۳۱ق:**

ابو نصر مشکان د سلطان محمود او مسعود د دربار لوي منشي وفات. ابو سهل زوزني صاحب ديوان رسالت سو.

د ابو القاسم حسن بن احمد عنصري بلخي د سلطان محمود د دربار لوي شاعر وفات.

**۱۰٤۰م ٤۳۲ق:**

سلجوقاينو شمالي ولايات او خراسان ونيول او په دندانقان کي سلطان مسعود مات کي.

**۱۰٤۰-۱۱۷۵م ٤۳۲-۵۵۲ق:**

د سلجوقيانو د سلطنت دوره پر افغانستان باندي.

د حسن بن محمد بن شعيب مرزوي شافعي فقيه وفات په ربيع الاول ٤۳۲ق.

**۱۰٤۰م ربيع الاخر ٤۳۲ق:**

سلطان مسعود خپل زوي مودود په غزني کي پريښود، پخپله د خزانو سره هندوستان ته

رهي سو.

**۱۰٤۰م ۱۱ جمادي الاول ٤۳۲ق:**

لښکرو په ماریگله کي سلطان مسعود ونیو او د ده پر ځاي يې د ده ړوند ورود محمد بیا پاچا کي.

وروسته سلطان مسعود د خپل وراره طاهر بن محمد په لاس مړ کړ سو.

**۱۰٤۰م جمادي الاخر ٤۳۲ق:** سلطان مودود له غزني څخه را ووت او د خپل ړانده اکا محمد سره يې په دنپور کي جنگ وکي.

محمد او د ده زوي طاهر يې ووژل او د دې برى په نسبت يې فتح آباد هلته جوړ کي.

**۱۰٤۰م ٤۳۲ق:**

امیر محمد د سلطان محمود زوي دوهمه پلا پاچا سو.

**۱۰٤۰-۱۰٤۹م ٤۳۲-٤٤۱ق:**

د غزنویانو د یوولسم سلطان مودود بن مسعود سلطنت په غزني کي.

**۱۰٤۰-۱۰٦۳م ٤۳۲-٤٥٥ق:**

د طغرل بیگ بن میکائیل د سلجوقي کهول لومړی پاچا سلطنت.

**۱۰٤۰م ٤۳۲ق:**

د قاضي صاعد بن محمد ابو العلا نشاپوري حنفي فقیه او د حنفیانو د رئیس وفات.

د ابو نظر عبدالعزیز بن منصور عسجدي د سلطان محمود د درباري شاعر وفات.

په دغه کال د ابو النجم احمد بن قوص منوچهری د سلطان محمود د دربار د شاعر وفات.

**۱۰٤۱م ٤۳۳ق:**

د سالم بن عبدالله هروي فقیه او متکلم د اللمع د مؤلف وفات.

د ابو سهل محمد بن علي هروي لغوي وفات ۳ محرم په مصر کي (ولادت رمضان ۳۷۲ق).

طغرل سلجوقي په نشاپور کي سکه ووهله.

سند پاله د جیه پاله لمسی آخرین کابلشاه د گندهارا په پاي کي.

**۱۰٤۲م ٤۳٤ق:**

ابو ابراهیم اسماعیل بن محمد مستملي په دري ژبه د تعرف شرح ولیکله.

د ابوذر عبدالله بن احمد انصاري هروي مالکي فقیه او محدث وفات په مکه کي.

**۱۰٤۳م ٤۳٥ق حدود:**

عبدالرزاق د احمد بن حسن میوندي زوي د سلطان مودود وزیر و.

د احمد بن حسین باخرزي د دمیة القصر د مؤلف وژل.

**۱۰٤٤م ٤۳٦ق:**

په ماوراء النهر کي شیعي غورځنگونه، د ابو الفضل عبیدالله بن احمد میکالي خراساني منشي او مؤلف امیر وفات (نوم يې عبدالرحمن هم راغلي دئ).

د غزني د وزیر احمد بن علي بن عبدالصمد وفات او د طاهر مستوفي وزیر کول.

**۱۰٥٤م ٤۳۷ق:**

امام عبدالکریم بن هوازن قشیري الرسالة القشیریه په تصوف کي په عربي وکښله. چي ابو

الفتوح عبدالرحمن بن محمد نشاپوري په کرمان کي په ۵۵۰ق په دري ترجمه کړه.

امام ابوالقاسم قشيري په نشاپور کي يوه مدرسه جوړه کړه.

ناصر خسرو بلخي خپل سفر له جوزجانه د حجاز خوا ته شروع کي (٦ جمادي الاخري) دی په جمادي الاخره کي د ٤٤٤ ق بيرته بلخ ته راغي.

**١٠٤٦م ٤٣٨ق:**

د امام ابو محمد عبدالله بن يوسف جويني شافعی فقيه او مفسر او اديب وفات په نشاپور کي.

د عبيدالله بن عبدالله هروي محدث او مورخ د ژوند وخت.

**١٠٤٨م ٤٣٩ق:**

د عبدالرحمن بن محمد سرخسي حنفي فقيه د بصری د قاضي وفات د تکملة التجريد خاوند.

د ملک ابدال (اودل) بن ترين د ابدالي افغانانو د يوه نيکه د ژوند وخت په کسي غره کي.

**١٠٤٨م ٤٤٠ق:**

د ابو ريحان محمد بن احمد بيروني لوی عالم او منجم د کتاب الهند او نورو ډيرو تاليفاتو د مؤلف وفات، او په غزني کي ښخيدل. ده تر ٤٢٧ پوري ٦٥ کتابونه تاليف کړي وو. تولد يې ٣٦٢ق.

د ابو سعيد فضل الله بن ابی الخير ميهني خراساني مشهور صوفي وفات.

د مشهور اديب علي بن حسن عميد قهستاني وفات.

**١٠٤٨-١٠٥٢م ٤٤٠-٤٤٤ق:**

پر غزني باندي د طغريل تغلب او د سلطان عبدالرشيد وژنه.

**١٠٤٨م ٤٤٠ق حدود:**

ابو منصور موفق بن علي الهروي په درمل پيژندنه کي کتاب الابنيه عن حقايق الادويه په دري ژبه تاليف کی چي يوه خطي نسخه يې په ٤٤٧ق کال اسدي طوسي وکښله (د ويانا کتابخانه) د منصور بن محمد هروي فقيه او شاعر او د هرات د قاضي او د منية الراضي د مؤلف وفات.

**١٠٤٩م ٤٤١ق:**

د غزنويانو دوولسم پاچا دوهم مسعود د مودود زوی په غزني کي سکه ووهله.

علي بن مسعود بن محمود په همدغه کال پاچا سو.

**١٠٤٩-١٠٥٢م ٤٤١-٤٤٤ق:**

د غزنويانو د څورلسم پاچا عبدالرشيد د سلطان محمود د زوي سلطنت په غزني کي.

**١٠٤٩م ٤٤١ق:**

د شيخ عمو مشهور صوفي احمد بن محمد بن حمزه وفات په هرات کي او په گازر گاه کي ښخيدل.

ابو معين ناصر بن خسرو قبادياني بلخي (حجت خراسان) له خپله سفره را ستون سو او د اسماعيلي مذهب تبليغ يې په بلخ او بدخشان کي شروع کي. د ده ډله ناصريه بلله کيده.

**۱۰۵۰م ۴۴۲ق:**

د سلجوقيانو او طغريل د غزنوي لښکر د مشر جنګونه او په دره خمار او بست کې د سلجوقيانو ماتې.

د عبدالسلام بن محمد بن هيصم کرامي وفات په هرات کې.

د حسن بن مظفر نشاپوري اديب او شاعر وفات.

**۱۰۵۰م ۴۴۲ق:**

ابو سعيد عبدالحي بن ضحاک بن محمود ګرديزي زين الاخبار په دري ژبه په غزني کې د سلطان عبدالرشيد په نامه وکيښ (د عبدالحی حبيبي طبع، تهران ۱۳۴۷).

**۱۰۵۲م ۴۴۴ق:**

عبدالرزاق بن احمد بن حسن ميوندي د سلطان فرخزاد له وزارته معزول او پر ځای يې خواجه حسن مهران وزير سو.

د خرخيز حاجب د غزني سپه سالار په خراسان کي د سلجوقيانو سره جنګونه.

د عبيد الله بن سعيد بن حاتم سجزي محدث وفات په مکه کي.

طغريل د سلطان محمود مريي د غزني تر نيولو وروسته ډير غزنوي شهزادګان مړه کړل او خلکو دی وواژه.

**۱۰۵۲-۱۰۶۰م ۴۴۴-۴۵۱ق:**

د غزنويانو شپاړسم پاچا فرخزاد د لومړي مسعود د زوی سلطنت.

**۱۰۵۳م ۴۴۵ق:**

يوه نامعلوم مؤلف تاريخ سيستان وليکي.

**۱۰۵۴م ۴۴۶ق:**

د ابو بکر احمد بن اسحاق صبغی نشاپوري شافعي عالم او فقيه وفات.

**۱۰۵۵م ۴۴۷ق:**

حکيم علي بن احمد اسدي طوسي د ګرشاسپ نامي شاعر د کتاب الابنيه عن حقايق الادويه خطي نسخه وکښله (د ويانا کتابخانه) مؤلف يې موفق الدين ابو منصور علي الهروي په دغه کال ژوندي و.

**۱۰۵۶م ۴۴۸ق:**

د حجة الاسلام ابو حامد محمد بن محمد غزالي طوسي زيږيدنه.

**۱۰۵۷م ربيع الاول ۴۴۹ق:**

د ابو النجم اياز اويماق وفات او ښخيدل په لاهور کي (؟).

د اسماعيل بن عبدالرحمن بن احمد صابوني نشاپوري فقيه او مفسر او واعظ وفات په نشاپور کي (ولادت يې ۳۷۳ق).

**۱۰۵۸م ۴۵۰ق:**

په خراسان کي د عربي نسخې او کوفي خط په هنري ډول سره ګښيږي (وامق عذاري عنصري د پروفيسور محمد شفيع کتابخانه، لاهور).

محمود وراق يو تاريخ د ۴۰۹ق تر واقعو پوري په غزني کي وکيښ.

امير محمد د عباس زوي په غور کي حکمران وو.

د شار ابراهيم بن اردشير د ژوند وخت.

د سهل بن مرسل لويکي د ژوند عصر.

**۱۰۵۸م ٤٥٠ق حدود:**

اسحاق بن ابراهيم بن منصور نشاپوري خپل قصص الانبياء په دري ژبه وکيښ.

محمد بن عمر رادوياني ترجمان البلاغه وکيښ.

د ابو حنيفه اسکافي مروزي دري شاعر د ژوند وخت.

د شيخ امام ابو بکر محمد بن امام احمد بن محمد حدادي شالنگي غزنوي وفات ٤٥٠ق. (قبر او شنخته يې په غزني کي سته).

د محمود بن عمر جوهري صايغ هروي دري شاعر د ژوند وخت.

**۱۰۵۹م ٤٥١ق:**

د غزنويانو او سلجوقيانو تر منځ معاهده.

سلطان ابراهيم د مسعود زوي غزنوي پاچا د سلجوقي داود او الپ ارسلان سره روغه وکړه او فقط شرقي افغانستان تر لاهوره غزنوي سلطنت ته پاته سو.

لومړئ پلا د سلطان لقب د سلطان ابراهيم غزنوي پر سکه ضرب سو.

**۱۰۵۹-۱۰۹۸م ٤٥۱-٤٩٢ق:**

د غزنويانو د اولسم سلطان ابراهيم د لومړي مسعود د زوري سلطنت.

**۱۰٦۰م ٤٥٢ق:**

د علي بن حسين مروزي حنفي فقيه وفات.

**۱۰٦۲م ٤٥٤ق:**

د زهير بن حسن بن علي سرخسي فقيه او مورخ او مفتي خراسان وفات.

د عبدالرحيم بن عبدالله صيرفي بلخي قاضي القضاة او شيخ الاسلام وفات او ښخېدل په بلخ کي.

**۱۰٦۳-۱۰۷۲م ٤٥٥-٤٦٥ق:**

الپ ارسلان د چغری بيگ داؤد زوي د ميکائيل لمسی سلجوقي دوهم پاچا.

**۱۰٦٤م ٤٥٧ق:**

پر ختل د الپ ارسلان يرغل.

**۱۰٦٥م ٤٥٨ق:**

د ابو بکر احمد بن حسين بيهقي شافعی فقيه او محدث او مؤلف وفات.

د قاضي ابو عاصم محمد بن احمد عبادي هروي عالم د طبقات الفقها او مبسوط مؤلف وفات.

حکيم ابو نصر علي بن احمد اسدي طوسي گرشاسپ نامه نظم کړه.

**۱۰٦٦م ٤٥٩ق:**

شرف الملک ابو سعد مستوفي په بغداد کي د امام ابو حنيفه پر مزار گنبده جوړه کړه.

د ابراهيم بن محمد توني هروي محدث وفات په هرات کي.

د شيخ يوسف بن محمد سمعان وفات او ښخيدل په چشت کي.

**۱۰٦۷م ٤٦۰ق:**

د شيخ الطايفه ابو جعفر محمد بن حسن طوسي د شيعه مشهور عالم او مؤلف وفات په بغداد کي. (تولد ئې په طوس کي ۳۸٥ق)

**۱۰٦۷م ٤٦۰ق حدود:**

منصور بن سعيد بن حسن ميوندي د سلطان ابراهيم د سپاه عارض سو.

د ابو بکر عتیق بن محمد هروي سور آبادي د دري تفسیر لیکوال د ژوند وخت.

قطب الدین حسن بن محمد د غور امیر و.

نظام الملک حسن بن علي طوسي د سلجوقیانو لوي وزیر په نشاپور، بلخ، هرات، مرو کې نظامیه مدرسې جوړې کړې.

د قاروت بن جغري بیگ داؤد سلجوقي د ژوند وخت چې د کرمان سلجوقیان د ده له پښته دي.

**۱۰۶۹م ٤٦۱ق:**

د ابو القاسم بن ابراهیم مروزي فوراني فقیه وفات.

**۱۰۶۹م ٤٦۲ق:**

د شافعي فقیه حسین بن محمد مرورودي وفات په مرو رود کې (۲۳محرم).

ناصر خسرو بلخي خپل کتاب جامع الحکمتین د بدخشان د امیر علي بن اسد بن حارث په خواهش تالیف کې.

**۱۰۷۰م ٤٦۳ق:**

د ابو علي حسان بن سعید منیعي نشاپوري فقیه او بډاي د مسجدو او رباط جوړوونکي وفات په مرو رود کې.

**۱۰۷۲م ٤٦٥ق:**

د الپ ارسلان پر ماورا النهر باندي یرغلونه او د ده مړینه.

شمس الملک بلخ او ترمذ ونیول.

د شیخ ابو القاسم عبدالکریم بن هوازن قشیري د خراسان د مشهور صوفي وفات په نشاپور کې.

د ابو بکر زین الدین اسماعیل وراق ازرقي هروي د دري مشهور شاعر وفات.

طاهر بن نصر بن احمد د سیستان پادشاه سو.

**۱۰۷۲-۱۰۹۲م ٤٦٥-٤٨٥ق:**

د ملکشاه د الپ ارسلان زوي سلجوقي دریم پاچا سلطنت.

**۱۰۷۳م ٤٦٦ق:**

د عثمان بن حسین وراق غزنوي په خط یو ډېر ښکلي منقش قرآن وکیښ سو چې د مشهد رضوي په کتابخانه کې سته.

موید الملک د نظام الملک زوي د هرات والي سو.

**۱۰۷٤م ٤٦٧ق:**

د عبدالرحمن بن محمد داودي پوشنګي فقیه او محدث وفات په پوشنګ کې. (ولادت یې ربیع الاول ۳۷٤ق).

ملکشاه ترمذ ونیو او د شمس الملک سره ئې روغه وکړه.

د ابو القاسم علي بن حسن باخرزي عربي شاعر او دمیة القصر د مؤلف وژل.

**۱۰۷٥م ٤٦٨ق:**

د ابو بکر محمد بن القاسم جویني (صفار نشاپوري) شافعي فقیه وفات.

**۱۰۷٦م ٤٦٩ق:**

سیف الدوله د سلطان ابراهیم غزنوي له خوا د هندوستان حکمران او له بغداده د صنیع امیر المومنین لقب ورکړ سو.

ابو بکر محمد بن احمد بن هیشم رود باري

بلخي د قرائت عالم خپل کتاب جامع القراآت په ٤٦٩ق د سلطان ابراهیم بن مسعود په نامه په غزني کي تالیف کي (١٧ محرم).

د عبدالله بن سعید بن حاتم سجزي محدث او د الابانه د مؤلف وفات.

**١٠٧٧م ٤٧٠ق:**

د ابو الفضل محمد بن حسین بیهقي د غزني د دربار منشي او د تاریخ بیهقي د مؤلف وفات په غزني کي (تولد یې د بیهقي په حارث آباد کي ٣٨٥ق).

انوشتگین چي د بلکاتگین مریي و په خوارزم کي د غرشاه په لقب د خوارزمشاهي دوهم کهول جوړ کي چه تر ٦١٧ ق پوري دغه کورنۍ حکمرانه وه.

د احمد بن عبدالملک نشاپوري د خراسان د محدث وفات.

د الشیخ العمید الجلیل سید ابو الفضل محمد بن علي طوسي وفات پنجشنبه ٩ رمضان ٤٧٠ق (قبر او شنخته یې په غزني کي سته).

**١٠٧٧م ٤٧٠ق حدود:**

د هیصم بن محمد ناوی (هروي) د دري قصص الانبیا د مؤلف د ژوند وخت.

**١٠٧٨م ٤٧١ق:**

د حسن بن علي بن محمد بلخي وخشي محدث او قاضي وفات (ولادت یې ٣٨٥ق).

**١٠٨٠م ٤٧٣ق:**

د ابو علي فضل بن محمد فارمدي طوسي مشهور عارف وفات.

**١٠٨٢م ٤٧٤ق:**

د قاضي القضات ابوبکر محمد بن عبدالملک اسکافي بلخي وفات او ښخیدنگ په بلخ کي.

**١٠٨٤م ٤٧٧ق:**

ابو علي فضل بن محمد فارمدي د خراسان مرشد وفات سو.

تکش په بلخ کي ولاړ سو ملکشاه دی په ترمذ کي ونیوي او ړوند یې کي.

د احمد بن محمد بن عبدالجلیل سجزي ریاضي پوهاند او منجم وفات.

بیبي د عبدالصمد هروي لور محدثه وفات سوه (ولادت یې ٣٨٧ق). عبدالاول هروي له دې څخه روایت کوي.

**١٠٨٥م ٤٧٨ق:**

د امام الحرمین ابو المعالي عبدالملک بن عبدالله جویني وفات چي د نشاپور نظامیه مدرسې مشر استاد و (ولادت یې په جوین کي ٤١٩ق).

**١٠٨٧م ٤٨٠ق حدود:**

د سلطان ابراهیم غزنوي د سلطنت اوږده د آرامي دوره او د خیر آباد، ایمن آباد د کلاو جوړول، مسجدونه او مدرسې او قصرونه آبادول.

د ابو حاتم مظفر بن اسماعیل اسفزاري مهندس او منجم وفات.

فاطمه د ابو علي دقاق لور د خراسان زاهده وفات سوه.

قتلمش د ارسلان پيغو زوي د اسرائيل لمسی چي د اناطول سلجوقيان د ده له پښته دي.

تتش د الپ ارسلان زوی چي د شام سلجوقيان ځني پيدا سول.

د عبدالله بن سعيد خوافي شاعر او منشي او حاسب د خلق الانسان د مؤلف وفات په بغداد کي.

**۱۰۸۸م ٤٨١ق:**

د ناصر خسرو بلخي شاعر او اسماعيلي مؤلف وفات د بدخشان په يمگان کي (تولد ۳۹٤ق قباديان).

د قاضي القضات خليل بن احمد شجري بلخي وفات.

د احمد بن عبدالصمد هروي محدث وفات.

د شيخ السلام ابو اسماعيل عبدالله بن محمد انصاري هروي وفات او ښخيدل د هرات په گازرگاه کي (تولد ۲ شعبان ۳۹٦ق) د طبقات الصوفيه او منازل السايرين او نورو ډيرو عربي او دري تاليفاتو خاوند.

په سيستان کي کاختي.

**۱۰۸۹م ٤٨٢ق:**

فقيه ابو جعفر محمد بن عبدالجبار بن محمد جوزجاني په ويهند کي يو ځا جوړ کي (ډېرليک ئې د پيښور په موزيم کي).

د فخر الاسلام علي بن محمد بزدوي حنفي مشهور فقيه د اصول الفقه د مؤلف وفات.

**۱۰۹۰م ٤٨٣ق:**

محمد بن ابو جعفر محدث او صوفي د بستان العارفين مؤلف وفات سو.

د شمس الائمه محمد بن احمد سرخسي مشهور فقيه او د مبسوط د مؤلف وفات.

تاج الدين ابو الفتح صفاري د سيستان پاچا سو.

**۱۰۹۲م ٤٨٥ق:**

نظام الملک طوسي وزير خپل کتاب سياست نامه يا سير الملوک په فصيحه دري ٥٠ فصله تاليف کي.

**۱۰۹۲-۱۰۹٤م ٤٨٥-٤٨٧ق:**

د سلطان محمود د ملکشاه زوي سلحوقي څلرم پاچا سلطنت.

**۱۰۹۲م ٤٨٥ق:**

نظام الملک ابو علي حسن بن ابو الحسن علي بن اسحاق طوسي د سلجوقيانو مشهور وزير او ليکوال (تولد ٤٠٨ يا ٤١٠ په طوس کي) وزارت له ٤٥١ق تر ٤٨٥ق پوري. په ۱۰رمضان ٤٨٥ق د بغداد پر لار د بو طاهر اراني په لاس ووژل سو.

**۱۰۹۳م ٤٨٦ق:**

د ابو عبدالله حسين بن احمد زوزني خراساني قاضي او لغوي د کتاب المصادر د مؤلف وفات.

**۱۰۹٤-۱۱۰٤م ٤٨٧-٤٩٨ق:**

برکيارق د ملکشاه زوي د سلجوقي پنځم پاچا سلطنت.

**۱۰۹٦م ٤٩٠ق حدود:**

د ابو الحسن علي بن عثمان هجويري غزنوي لوی صوفي د کشف المحجوب د مؤلف

وفات په لاهور کي.

محمد بن منصور مستوفي (متوفا ٤٩٤ق) په مرو کي يوه مدرسه جوړه کړه.

د عبدالرحمن بن علي بن ابي الصادق نشاپوري طبيب (بقراط ګاني) وفات.

د عبيدالله بن عبدالله حداد نشاپوري حنفي فقيه او محدث او قاضي وفات تر ٤٩٠ق وروسته.

د محمد بن احمد بن ابي سهل سرخسي حنفي فقيه او متکلم او د المبسوط د مؤلف وفات (٤٨١ق؟).

**١٠٩٧-١١٢٧م ٤٩١-٥٢١ق:**

د قطب الدين محمد خوارزم شاه سلطنت.

**١٠٩٧م ٤٩١ق:**

د علي بن سهل بن عباس نشاپوري مفسر وفات.

د عطاء بن يعقوب د غزنوي دربار کاتب او د عربي او دري د شاعر وفات.

د ابو الفتح عبدالرزاق منيعي بن حسان د خراسان د محدث او فقيه وفات.

سلطان سنجر سلجوقي د ملکشاه زوي هرات ته راغي.

**١٠٩٨-١١١٥م ٤٩٢-٥٠٩ق:**

د غزنويانو د اتلسم پاچا علاء الدين دريم مسعود سلطنت.

**١٠٩٩م ٤٩٣ق:**

قطب الدين حسين بن محمد د غور د شاهنشاهانو نيکه د وجيرستان په جنګ کي وواژه سو.

شيخ عبدالهادي د خواجه عبدالله انصاري زوی به هرات کي مقتول او په ګازرګاه کي ښخ سو.

**١١٠٠م ٤٩٤ق:**

د امام ابو الفرج عبدالرحمن احمد سرخسي شافعي فقيه وفات (زيږيدنه ٤٣٢ق).

**١١٠١م ٤٩٥ق حدود:**

امام غزالي په دري کيمياى سعادت وکيښ.

سرهنګ عميد محمد خطبيي هروي د غزني سپه سالار او وروسته د قزداد حکمران و.

**١١٠٢م ٤٩٦ق:**

دا ابو الفضل محمد بن محمد سهلکي بسطامي فخر الاسلام وفات.

**١١٠٤م ٤٩٨ق:**

درهم ملکشاه د برکيارق زوي د سلجوقي شپږم پاچا سلطنت.

**١١٠٦م ٥٠٠ق:**

د ابو نصر محمد بن احمد بن ابو جعفر هروي پير وفات او د هرات په خمچه آباد کي ښخيدل.

په غزني کي د سلطان علاءالدين مسعود د ماينې مهد عراق د سلطان سنجر د خور په توجه آرامي او د سلجوقيانو سره دوستي.

د طغاتګين غزنوي سالار فتوحات د هند تر ګنګا پوري.

ابو حاتم مظفر بن اسماعيل اسفزاري آسمان او رياضي پوهاند کائنات الجو کتاب وکيښ.

د شيخ علي قسوره بن محمد ګرديزي د

ژوند وخت.

امام ابو علي حسن بن علي قطان مروزي مشهور طبيب او عالم خپل کتاب کيهان شناخت وکيښ. (تولد ئې مرو ٤٦٥ق).

د ملک کرت د ژوند وخت په غور او هرات کي، د کرت د پاچهانو لوی نيکه.

محمد بن حسين بن عمر هروي تاريخ برامکه په دري ترجمه کي.

**١١٠٦م ٥٠٠ق حدود:**

عمدة الملک رشيد بن محتاج د سلطان ابراهيم غزنوي سپهبد او د مسعود سعد ممدوح و.

خواجه محمد بن بهروز احمد وزير و.

خواجه طاهر بن علي ثقت الملک د بو نصر مشکان وراره د غزني وزير خاص و.

قوام الملک نظام الدين ابو نصر فارسي د شهزاد شيرزاد سره د هند سپهسالار سو.

عميد الملک عمادالدوله ابو القاسم خاص د سلطان ابراهيم غزنوي د دربار مشر و.

منصور بن سعيد بن احمد بن حسن ميوندي د سلطان ابراهيم غزنوي صاحب ديوان عرض او عبدالحميد بن احمد بن عبدالصمد د سلطان ابراهيم غزنوي وزير سو.

د قاضي امين المله عبدالودود د عبدالمصد غزنوي زوي د ژوند وخت.

ابو نصر محمد بن عبدالحميد مستوفي د بهرامشاه غزنوي وزير و.

ابو محمد بن حسن قايني د بهرامشاه غزنوي وزير و.

خواجه اسماعيل شنيزي د حکيم سنايي مرشد او استاد د ژوند وخت (قبر ئې تر اوسته په شنيزکي سته).

علاءالدين ابو يعقوب يوسف او نجم الدين ابو المعالي احمد د قاضي القضات يوسف بن احمد حداد شالنگي غزنوي زامن په غزني کي علاما وه.

د شيخ السلام جمال الدين ابو نصر احمد بن محمد بن سليمان صغاني د ژوند وخت (قبر ئې په غزني کي سته).

د ابو سعد احمد بن ابو يوست هروي د کتاب (الاشراف علي غوامض الحکومت د مؤلف ژوند.

د ملک الجبال عزالدين حسين بن قطب الدين حسن غوري پاچا سلطنت په غورکي.

د عبدالرب بن منصور غزنوي فقيه او د ملتمس الاخوان د مؤلف د ژوند وخت.

د ابو العباس فضل محمد لوگري مرورودي مشهور فيلسوف د ژوند وخت.

د ډيرو ترکي لغاتو گډيدنه په دري او پښتو ژبو کي.

**١١٠٨م ٥٠٢ق:**

ثقه الملک طاهر بن علي د سليمان مسعود بن ابراهيم وزير و.

**١١٠٩م ٥٠٣ق حدود:**

جمال المعاشرين د غزني د قوال ژوند.

د زاهد بن محمد بن احمد سرخسي شافعي محدث وفات.

**۱۱۱۰م ۵۰٤ق حدود:**

د ابو الفرج بن مسعود روني د دري مشهور شاعر او د غزنویانو د ستاینکي وفات (تولد ئې د ٤۳۵ق حدود).

**۱۱۱۱م ۵۰۵ق:**

د حجة الاسلام ابو حامد محمد بن محمد غزالي طوسي وفات (تولد ئې ٤۱۵ق) دی د حیاء علوم الدین او نورو ډیرو تالیفاتو خاوند دی.

عثمان مختاري غزنوي شاعر خپله شهریار نامه په دري ژبه نظم کړه.

د جمال الحکماء ابو الحسن علي بن محمد د غزني د طبیب د ژوند وخت.

**۱۱۱۲م ۵۰٦ق:**

د امام زاهد سلیمان بن احمد صغاني قاضي وفات (قبر ئې په غزني کي سته).

نظامي عروضي سمرقندي د بلخ د برده فروشانو په کوڅه د امیر ابو سعید جره په کور کي د عمر خیام سره لیدنه وکړه.

قاضي حسن محمودي او قاضي حسین محمودي د احمد زامن د بلخ قاضیان مړه او په بلخ کي ښخ سول.

**۱۰۹۸-۱۱۱٤م ٤۹۲-۵۰۸:**

د غزني د یوه منار بنا د (السلطان الاعظم ملک الاسلام علاء الدوله و الدین ابو سعد مسعود بن ظهیر الدوله امیر المؤمنین ابراهیم خلاد الله ملکه) په نامه.

**۱۱۱۵-۱۱۱۷م ۵۰۹-۵۱۱ق:**

د غزنویانو د شلم پاچا ارسلان شاه د دریم مسعود زوي سلطنت.

**۱۱۱٦م ۵۱۰ق:**

د عبدالرحمن بن احمد خزاني شیعي نشاپوري عالم وفات.

د محمد بن منصور سمعاني مروزي محدث او فقیه وفات په مرو کي (ولادت ٤٦٦ق).

**۱۱۱۷-۱۱۵۷م ۵۱۱-۵۵۲ق:**

د غزنویانو د یوویشتم پاچا بهرامشاه د دریم مسعود زوی سلطنت.

**۱۱۱۵م ۵۰۹ یا ۵۱۷ق:**

د حکیم ابوالفتح عمر بن ابراهیم خیام نشاپوري لوي منجم او ریاضي پوهاند او شاعر وفات په نشاپور کي.

**۱۱۱۵م ۵۰۹ق:**

د غزنویانو د نونسم پاچا شیرزاد د دریم مسعود زوي جلوس په غزني کي.

د اسماعیل بن عبدالسلام بن عبدالرحمن بن حسن لغماني حنفي فقیه ژوند په بغداد کي.

علاءالدین مسعود غزنوي خیل ورور شیرزاد مړ کئ، او بل ورور بهرام شاه ئې سلطان سنجر ته پناه وروړه.

**۱۱۱٦م ۵۱۰ق:**

سلطان ارسلانشاه غزنوي یوه ماڼي په غزني کي جوړه کړه.

ملک الجبال عزالدین حسین د قطب الدین حسن زوی د غور امیر ؤ چي د ده اوه زامن پر غوري دولت قابض سوه.

**۱۱۱٦م ۵۱۰ق حدود:**

د ابو عبدالله احمد بن عمر خراساني د

الايشاح في القرائت الشعر د مؤلف د ژوند وخت.

خواجه صدر شمس الوزراء قطب الدين يوسف بن يعقوب د غزني سپه سالار او وزير و.

قاضي القضات يوسف بن احمد حدادي شالنگي غزنوي د سلطان مسعود د عهد د غزني قاضي القضات او وزير و.

موفق الدوله ابو طاهر خاتوني د سلجوقيانو وزير خپل مناقب الشعراء وکیښ.

د نصرين ابراهم هروي حنفي محدث د المسند د مؤلف وفات.

د عثمان بن عمر مختاري غزنوي د دري د مشهور شاعر د ژوند وخت.

**۱۱۱۷-۱۱۵۷م ۵۱۱-۵۵۲ق:**

سلطان سنجر د ملکشاه زوی د سلجوقي اتم لوی پاچا سلطنت.

بهرامشاه غزنوي پر خپله سکه باندي د سلطان سنجر سلجوقي نوم هم وکیښ.

**۱۱۱۷-۱۱۵۷م ۵۱۱-۵۵۲ق:**

د غزني د يوه منار بنا د (السلطان الاعظم ملک الاسلام يمين الدولت و امين المکه ابو المظفر بهرامشاه ختدالله تعالى ملکه) په نامه.

**۱۱۰٤-۱۱۱۷م ٤۹۸-۵۱۱ق:**

د سلطان محمد د ملکشاه زوي سلجوقي اوم پاچ ا سلطنت چي د عراق سلجوقيان د ده له پښته دي.

د محمد بن عمر ضرير بلخي مفسر او واعظ د دعوة الهند د مؤلف وفات او ښخيدل په بلخ کي ۵۱۱ق.

د قاضي القضات شيخ الاسلام بلخ محمد ابو القصير بلخي وفات.

**۱۱۱۸م ۵۱۲ق:**

د بهرام شاه غزنوي لښکرو په ملتان کي محمد باهليم د ده د زامنو سره مات کي او په سوالک کي د ناکورکلا جوړه کړه.

د سليمان بن ناصر نشاپوري شافعي متکلم، صوفي فقيه وفات.

د شمس الائمه ابو القاسم اسماعيل بن حسن بيهقي د مرود مدرسی د استاد وفات.

**۱۰٤۲-۱۱۱۹م ٤۳۳-۵۱۳ق:**

د شيخ الافاضل علي بن احمد بنجگردی نشاپوري اديب د ژوند دوره (وفات په نشاپور کي رمضان).

**۱۱۲۰م ۵۱٤ق حدود:**

طبيب شرف الزمان طاهر مروزي طبايع الحيوان تاليف کي.

د عبدالرحيم بن عبدالکريم بن هوازن قشيري نشاپوري صوفي او واعظ وفات په نشاپور کي.

د ناصر محمد عياضي سرخسي فقيه او محدث وفات په سرخس کي (ولادت ٤۳۹ق).

**۱۱۲۱م ۵۱۵ق:**

د غزنوي دورې د مشهور شاعر مسعود سعد سليمان وفات په غزني کي (تولد ئې لاهور د ٤٤۰ ق حدود).

**۱۱۲۱م ۵۱۵ق حدود:**

د ابو حاتم مظفر بن اسماعيل اسفزاري رياضي پوهاند او هيئت دان وفات.

د ابو المفاخر محمد بن منصور قاضي سرخس په نامه حکيم سنايي سير العباد الي المعاد نظم کي.

**۱۱۲۲م ۵۱٦ق:**

د علي بن احمد غزال نشاپوري نحوي او قاري وفات.

د ابو محمد حسين بن مسعود فراء بغوي شافعي فقيه او د مصابيح السنه د مؤلف وفات په مرورود کي (شوال).

برهان االدين ابو الحسن علي بن ناصر بريانگر غزنوي واعظ بغداد ته ولاړ.

**۱۱۲۳م ۵۱۷ق:**

د شيخ الاسلام محمد بن محمد ژالي بلخي وفات او ښخيدنگ په بلخ کي.

**۱۱۲٤م ۵۱۸ق:**

د احمد بن محمد ميداني نشاپوري اديب او لغوي د کتاب السامي في الاسامي د مؤلف وفات.

حکيم سنايي له سفره غزني ته را ستون سو.

محمد بن نصر هروي بشکاني د بغداد قاضي او فقيه په همدان کي وواژه سو (ولادت يې ٤۸۵ق).

شرف الدوله رضی الملک احمد د غزني سپه سالار و.

**۱۱۲٦م ۵۲۰ق:**

ابو الفتح اسعد بن محمد ميهني د بغداد د نظاميه مدرسې د استاد وفات. د مجدالدين احمد بن محمد غزالي طوسي وفات. دی د امام غزالي ورور دئ.

رشيد الدين ابو الفضل احمد بن محمد ميبذي د خواجه عبدالله انصاري تفسير کشف الاسرار وليکي.

**۱۱۲٦م ۵۲۰ق حدود:**

ابو نصر محمد بن عبدالحميد مستوفي د بهرامشاه غزنوي وزير و.

د امير العشراء محمد بن عبدالملک معزي نشاپوري د سلجوقيانو د دربار دري شاعر وفات.

**۱۱۲۷-۱۱۵٦م ۵۲۱-۵۵۱ق:**

د اتسز بن محمد خوارزم شاه سلطنت.

د علاء الدين حسين غوري او بهرام شاه غزنوي جنگ پر تگين آباد باندي چي غوري پاچا هغه ونيوي.

**۱۱۲۸م ۵۲۲ق:**

د حسن بن محمد بن خسرو بلخي حنفي عالم وفات.

**۱۱۲۹-۱۱۳۰م ۵۲٤-۵۲۵ق:**

حکيم سنايي غزنوي حديقه الحقيقه په دري ژبي نظم کړه او محمد بن علي الرفا سره را ټوله کړه لس زره بيته د بهرام شاه غزنوي په نامه.

**۱۱۳۰ يا ۱۱٤۰م ۵۲۵ يا ۵۳۵ق:**

د حکيم ابو المجد مجدود بن آدم سنايي د غزني د مشهور عارف او دري شاعر وفات (يکشنه ۱۱ شعبان ۵۲۵ق).

**۱۱۳۰م ۵۲۵ق حدود:**

امام برهان الدين ابو الحسن علي بن ناصر بريانگر غزنوي عالم په بغداد کي.

خواجه عميد احمد بن مسعود تيشه کن د

سلطان بهرام شاه غزنوي د دربار مشر و.

**۱۱۳۱م ۵۲۶ق:**

د خراسان د قاضي القضات احمد بن محمد بن صاعد وفات.

**۱۰۶۹-۱۱۳۳م ٤٦۱-۵۲۷ق:**

د مجد الدین اسعد بن ابي نصر میهني طوسي شافعي فقیه د ژوند دوره.

د خوانه قطب الدین مودو بن یوسف چشتي زاهد او صوفي وفات په چشت کې.

**۱۱۳۳م ۵۲۸ق:**

حکیم سنایي غزنوي طریق التحقیق تالیف کي (؟).

**۱۱۳۵م ۵۲۹ق:**

د عبدالغافر بن اسماعیل نشاپوري شافعي محدث او فقیه د السیاق في ذیل تاریخ نیسابور د مؤلف وفات په نشاپور کي (ولادت ئې ۸ ربیع الاخر ٤۵۱ همدلې).

**۱۱۳۵م ۵۳۰ق جمادي الاول:**

محمد بن اسماعیل غوري عالم په هرات کي وفات او ښخ سو (شنخته ئې سته).

**۱۱۳۵م ۵۳۰ق:**

ابو محمد بن قایني د بهرام شاه وزیر و په غزني کي.

د محمد بن حمویه جویني مفسر او صوفي او فقیه د لطایف الاذهام د مؤلف وفات (ولادت ٤٤۹ق).

**۱۱۳۷م ۵۳۲ق:**

د ابو العلا صاعد بن حسین بن اسماعیل بن صاعد د خراسان د قاضي وفات په نشاپور کي.

د شرف الدین ابو محمد بن علي بن ابو طالب حسیني بلخي وفات او ښخېدل په بلخ کي.

**۱۱۳۸م ۵۳۳ق:**

د ابو بکر محمد بن احمد خرقي مروزي لوی منجم او جغرافیا او ریاضي پوهاند مؤلف وفات.

د زاهر بن طاهر نشاپوري محدث وفات.

**۱۱٤۰م ۵۳۵ق:**

د شیخ الاسلام محمد بن حسین فلانسي د بلخ د جامع د امام وفات او په بلخ کي ښخیدنه.

**۱۱٤۱م شنبه ۷ شعبان ۵۳٦ق:**

د ابو یوسف اسماعیل بن عبدالرحمن بن عبدالسلام بن حسن بن عبدالرحمن بن ابراهیم بن بشیر بن منکو لغماني حنفي فقیه او په بغداد کي د امام ابو حنیفه د مدرسې د استاد وفات او هلته ئې ښخیده.

**۱۱٤۱م ۵۳٦ق:**

ابو المعالي نصرالله بن محمد د بهرام شاه غزنوي منشي او وزیر کلیه او دمنه کتاب په دري وکیښ.

د آدم بن اسد هروي د بلخ د نظامیه مدرسې د استاد وفات.

د عثمان بن معر غزنوي مقری عالم وفات او په بلخ کنبي ښخیدنگ.

د شیخ ابو نصر احمد بن ابو الحسن رامقي جامي مشهور په ژنده پیل وفات (ولادت ئې ٤٤۱ق).

د ابو الفتح مختار بن عبدالحميد فوشنجي مؤرخ وفات.

د امام ابو سعد اسماعيل بن عبدالواحد فوشنجي هروي وفات.

قاضي بهاء الدين عمر بن احمد محمودي د بلخ قاضي وو.

**۱۱٤۲م ۵۳۷ق:**

اتسز خوارزمشاه نشاپور ونيو د سلطان سنجر سلطنت بيا پر خراسان باندي.

د شيخ ابو حامد فريدالدين محمد بن ابراهيم عطار نشاپوري لوی صوفي تولد.

د نجم الدين ابو حفص عمر بن محمد نسفي حنفي عالم وفات په سمرقند کي (تولد يې ٤٦١ق). ده د اعتقاد اهل سنت رساله په ۵۳۵ق وکښه.

د عبدالحميد بن اسماعيل قيسي هروي حنفي فقيه او د روم قاضي وفات په قيسارکي.

د رئيس بلخ سيد محمد بن حسين حسيني وفات په بلخ کي.

**۱۱٤۳م ۵۳۸ق:**

خواجه فريد الدين محمد بن ابراهيم عطار خپل منطق الطير نظم کړ.

**۱۱٤۵م ۵٤۰ق حدود:**

د ابو الفضل محمد بن سليمان بن احمد صغاني د غزني د قاضي وفات (قبر ئې په غزني کي سته).

د عبدالرشيد بن ابي حنيفه او لوالجي بدخشي د فتاوي و لوالجيه د مؤلف وفات په لوالج کي (ولادت يې ٤٦٧ق).

ملک فخرالدين بن عزالدين غوري نونسم پاچا سکه ووهله او شغنان، تخار، درواز، وخش، بدخشان ئې هم ونيول.

د عميد محمد بن عثمان يميني غزنوي کاتب د بهرام شاه غزنوي د دربار شاعر د ژوند وخت.

شرف الدين محمد بن ناصر علوي غزنوي د بهرامشاه غزنوي د دربار شاعر و.

عبدالله محمد بن طيفور سجاوندي غزنوي تفسير سجاوندي مؤلف وفات سو.

د اديب صابر اسماعيل ترمذي دري شاعر وفات.

حور ملک د شارشاه بن ابراهم غرستاني لور سلطان حسين جهانسوز غوری وکړه.

**۱۱٤٦م ۵٤۱ق:**

قطب الدين محمد بن عزالدين د غور امير په غزني کي بهرام شاه وواژه او د غوريانو او غزنويانو د عداوت سبب سو.

**۱۱٤۷م ۵٤۲ق:**

ظهير الدين محمد بن مسعود غزنوي رياضي پوهاند کفاية التعليم په دري ژبه تاليف کي

**۱۱٤۸-۱۱٤۹م ۵٤۳-۵٤٤ق:**

د سلطان سيف الدين بن عزالدين غوري اتلسم پاچا د اقتدار وخت.

د اسعد بن محمد بن موسی فوشنجي محدث وفات به فوشنج کي (ذيقعده ۵٤۳ق).

**۱۱٤۹م ۵٤٤ق:**

بهاء الدين سام بن محمد چي د منديش په

سنگه کي امير و د فيروز کوه پر تخت کښېنوست.

**۱۱۴۹-۱۱۵۹م ۵۴۴-۵۵۴ق:**

د غوري څوارلسم پاچا بهاالدين سام بن عزالدين حسين سلطنت.

**۱۱۴۹-۱۱۵۶م ۵۴۴-۵۵۱ق:**

د سلطان علاءالدين حسين جهانسوز بن عزالدين د غوريانو د اولسم پاچا سلطنت.

**۱۱۴۹م ۵۴۴ق:**

سلطان سيف الدين سوري غوري په غزني کي د خپل وزير سيد مجدالدين موسوي سره د بهرام شاه په حکم د پل طاق پر سر وځړول سو.

د احمد بن علي بو جعفرک مقري بيهقي لغوي عالم وفات (تولد ۴۷۰ق).

**۱۱۵۰م ۵۴۴ق حدود:**

د حکيم ابو عمر عثمان بن عمر مختاري غزنوي د دري لوي شاعر وفات.

د محمد بن محمد رضی الدين سرخسی حنفی فقيه او مؤلف وفات په دمشق کي.

د امام فخرالدين رازي محمد بن عمر مشهور امام او مفسر زېږېدنه.

**۱۰۸۵-۱۱۵۱م ۴۷۷-۵۴۵ق:**

د عتيتو بن علي بن منصور مروي فقيه او اديب او حاسب د ژوند دوره په مرو کي په ۱۵ ذيقعده زېږېدلي او په ۲۷ شوال وفات سوی دئ.

**۱۱۵۰م ۵۴۵ق:**

غوري سلطان علاءالدين حسين غزني وسواځه او له دې جهته په جهانسوز مشهور سو.

**۱۱۵۱م ۵۴۶ق:**

غوري سلطان علاءالدين جهانسوز د بست ښار ونړاوه.

د بلخ د قاضي ابو سعد عمر بن علي بن حسين محمودي وفات او ښخيدل په بلخ کي (ولادت ۴۵۷ق).

د ابو الفتح محمد بن ابوالقاسم عبدالکريم شارستاني متکلم د داملل و النحل د مؤلف وفات (شارستان په خراسان کي نسا ته نژدې ؤ).

**۱۱۵۳م ۵۴۸ق:**

د عين الزمان حسن قطان مروزي بن علي طبيب او رياضي پوهاند د لوگري د شاگرد وفات په مرو کي (تولد ئې په مرو کي ۴۶۵ق).

د عبدالرحمن بن محمد خرکردي پوشنگي محدث وفات.

**۱۱۵۵م ۵۵۰ق حدود:**

د سلطان سنجر سلجوقي او سلطان علاءالدين حسين جهانسوز جنگ د اوبې په سه گوشه ناب کي چي جهانسوز ونيول سو او معاف سو.

د غوري ملک شهاب الدين محمد خرنک بن عزالدين حسين د اقتدار وخت.

ملک شجاع الدين علي بن عزالدين هم په دغه وخت کي د غور په جرماس کي حکمران ؤ.

امير فخرالدين خالد بن ربيع مکي د علاءالدين جهانسوز غوري د دربار شاعر او عالم د ژوند وخت.

شيخ تيمن په غور کي د پښتو شاعر و.

د محمود بن ابي الحسن بن حسين نشاپوري غزنوي مفسر او لغوي وفات.

د عبدالرحمن خازن مروزي حکيم او مهندس د زيج سنجري او ميزان الحکمه د مؤلف وفات.

**۱۱۵٦م ٥٥١ق:**

خطائيان او غزان راغلل او دولت سنجري ئې ونړاوه او سلطان سنجر يې ونيوي.

د اتسز لښکر کښې پر خراسان او د سلطان سنجر ايله کيدل.

د برهان الدين علي بن ناصر بريانگر غزنوي عالم وفات په بغداد کي.

**۱۱۵٦-۱۱۷۲م ٥٥١-٥٦٨ق:**

د ايل ارسالان بن اتسز خوارزم شاه سلطنت.

ملک سيف الدين بن علاءالدين جهانسوز غوري شلم پاچا سکه ووهله.

نظام الدين احمد بن عمر بن علي مشهور په نظامي عروضي سمرقندي د غوريانو د دربار ليکوال چهار مقاله يا مجمع النوادر تاليف کړه.

**۱۱۵۷م ٥٥٢ق:**

د ابو تمام محمد بن عبدالملک بن عبدالسلام بن حسين لغماني فقيه وفات (۱۱ رمضان) او د بغداد په باب الطاق کي ښخيدل.

د ناصر بن سلمان انصاري نشاپوري شافعي فقيه او محدث وفات په مرو کي.

د سلطان سنجر سلجوقي وفات.

د قاضي برهان الدين منصور بن ابو سعد محمد بن ابو نصر صاعدي د نشاپور د قاضي او حنفي امام وفات.

**۱۱۵۷-۱۱٦۱م ٥٥٢-٥٥٧ق:**

په غزني کي د محمودي کهول دوه ويشتم پاچا خسرو شاه بن بهرام شاه سلطنت.

**۱۱۵۸م ٥٥٣ق:**

د عبدالاول بن عيسى بن شعيب صوفي سنجري هروي محدث وفات.

د احمد بن علي ظهير بلخي حنفي فقيه او اصولي وفات.

د عبدالجبار بن عبدالجبار خرقي شافعي فقيه او محدث او مورخ وفات په مرو کي (ولادت يې د مرو په خرق کي ٤٧٧ق).

**۱۱۵۹م ۹شعبان ٥٥٤ق:**

د ابو عبدالله الضرير محمد بن عبدالرحمن بن حسن لغماني حنفي فقيه وفات او ښخيدل د بغداد د ابي حنيفه په محله کي.

**۱۱٦۰م ٥٥٥ق:**

دعبدالواسع بن عبدالجامع غرستاني جبلي شاعر وفات.

**۱۱٦۱م ٥٥٦ق:**

د اشرف الدين ابو محمد حسن بن محمد حسيني غزنوي (اشرف) د غزني د مشهور شاعر وفات.

د امام سيد ناصر الدين سمرقندي د تاريخ بلخ د مؤلف وفات او ښخېدل په سمرقند کي.

**۱۱٦۱-۱۱۸۷م ٥٥٧-٥٨٣ق:**

د غزنويانو د کهول د آخرني پاچا خسرو ملک بن خسرو شاه پاچهي.

**۱۱٦۲م ۵۵۸ق:**

محمد بن سام غوري د سلطان غياث الدين ورور د غور د استيه او کجوران حکمران سو.

**۱۱٦۲-۱۱۷٤م ۵۵۸-۵۷۰ق:**

زيد الدين آي آبه په خراسان کي.

**۱۱٦۲م ۵۵۸ق:**

د سلطان شمس الدين محمد بن فخرالدين مسعود غوري د اقتدار وخت.

**۱۱٦۲-۱۲۰۲م ۵۵۸-۵۹۹ق:**

د غور د يوويشتم لوی سلطان غياث الدين محمد بن بهاءالدين سام د سلطنت دوره.

**۱۱٦۳م ۵۵۹ق:**

د مولانا شهاب الدين عبدالله فامي هروي د تاريخ هرات ليکوال د ژوند وخت.

د قاضي حميدالدين محمود بن عمر بن احمد بلخي د مقامات حميدي د مؤلف وفات.

محمد د عبدالواحد زوی په هرات کي يو ښکلی برنجي لوښي جوړ کي (د ارمتياژ موزيم).

**۱۱٦٤م ۵٦۰ق:**

د ابو الفضل محمد بن طيفور سجاوندي غزنوي د کتاب وقوف مؤلف وفات.

د احمد بن محمد سجاوندي مورخ د ذخاير نثار في اخبار السيد المختار د مؤلف وفات.

**۱۱٦٤-۱۲۰۲م ٥٦۰-۵۹۹ق:**

ملک سيف الدين مسعود تمران د غوري د دربار لوی امير و.

**۱۱٦٤م ۵٦۰ق حدود:**

فخر الملک شرف الدين فرداري د غور د سلطان غياث الدين محمد سام وزير و.

ملک الکلام فخرالدين مبارکشاه د غوري دربار شاعر د غوريانو منظومه نسب نامه وکښله.

**۱۱٦۵م ۵٦۲ق:**

قره ختائيانو بلخ او اندخود ونيول.

د ضياء الدين عمر بن محمد بسطامي بلخي محدث او مفسر او صوفي وفات (ولادت ٤۷۵ق).

د ابو سعيد عبدالکريم بن محمد منصور مروزي سمعاني محدث او د کتاب الانساب د مؤلف وفات په مرو کي (ولادت ۵۰٦ق).

**۱۱٦۵م ۵٦۲ق شاوخوا:**

تاج الدين حرب بن محمد د سيستان پادشاه و (متوفا ٦۱۲ق).

**۱۱٦۸م ۵٦۲ق:**

امام يوسف بن عبيدالله اندخودي تفسير ينابيع العلوم په فارسي شروع کي (د کابل خطي نسخه).

**۱۱٦۹م ۵٦۵ق:**

د ابو الحسن علي بن زيد بيهقي (ابن فندق) مورخ او حکيم او رياضي پوهاند وفات چي د تاريخ بيهق مؤلف دئ.

**۱۱٦۹، ۵٦۵ق حدود:**

مجد الملک ديو شاري د سلطان غياث الدين محمد سام غوري وزير و.

**۱۱۷۱م ۵٦٦ق:**

ابو بکر بن احمد بن عبيدالله غزنوي خطاط په ښکلي خط يو قرآن وکيښ ( د مصر

موزیم).

د محمد بن محمد بن محمد هروي مفسر او متکلم او واعظ وفات.

**۱۰۹٤-۱۱۷۲م ٤۸۷-٥٦۸ق:**

د ابو الفضل عبدالله بن احمد طوسي شافعي عالم (خطیب موصل) د ژوند دوره.

**۱۱۷۳-۱۲۰۷م ٥٦۹-٦۰۲ق:**

د غور د دوه ویشتم لوی سلطان معزالدین (شهاب الدین) محمد بن بهاوالدین سام د هند د فاتح د سلطنت دوره.

**۱۱۷۳م ٥٦۹ق:**

ملک معزالدین محمد غوري د خپل ورور سلطان عیاث الدین په حکم ټول سیستان او زاول او کابل ونیول او غزان یې له غزني څخه وایستل.

**۱۱۷۳-٤م ٥۷۰ق:**

غوریانو غزني ونیوي. عبدالله بن محمد بلخي مورخ په اندلس کي و.

د عمر بن محمد ابو شجاع بسطامي بلخي محدث او شاعر وفات.

سلطان معزالدین محمد غوري گردیز او ملتان فتح کړل.

قاضي القضاة معزالدین هروي د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري د عصر لوی قاضي و.

عین الملک سوریاني د سلطان عیاث الدین محمد سام غوري وزیر و.

شمس الملک عبدالجبار گیلاني د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري وزیر و.

**۱۱۷٤-۱۲۰۳م ٥۷۰-٦۰۰ق:**

قاضي صدر شهید نظام الدین ابوبکر په غزني کي د سلطان معزالدین له خوا قاضي ممالک و. او تر ده وروسته د ده زوي سید شرف الدین ابو بکر.

سلطان ناصرالدین قباچه په ملتان کي د سلطان معزالدین محمد غوري له خوا حکمران و.

**۱۱۷٥م ٥۷۱ق:**

ملک معزالدین محمد غوري له بهاءالدین طغرل څخه هرات ونیو او د غور په سلطنت پوري ونښلاوه. او پوشنگ یې په ٥۷۳ق ونیو.

ملک یار غرشین د هند په فتوحاتو کي خپل حماسي پښتو شعر ووایه. دی په ډهلي کي وفات او ښخ دئ.

د محمد بن محمد سرخسي حنفي فقیه او د المحیط الکبیر د مؤلف وفات.

**۱۱۷٦م ٥۷۲ق:**

د محمد بن معتصم مرجاني بلخي زاهد وفات په بلخ کي.

شمس الدین بلخي د سلطان معزالدین قاضي لشکر او ملکشاه وخشي د غوري دربار لوی امیر و.

**۱۱۷۷م ٥۷۳ق:**

د رشید الدین محمد بن محمد بن عبدالجلیل (رشید وطواط) بلخي مشهور منشي او شاعر او مؤلف د حدایق السحر د لیکوال وفات.

**۱۱۷۸م ۵۷٤ق:**

امام فخر الدین محمد بن عمر رازي (متوفا ٦۰٦ق) خپل دري کتاب جامع العلوم د علاءالدین تکشس خوارزم شاه په نامه تالیف کئ.

سلطان معزالدین محمد غوري په نهر واله کي د بهیم د یوه جنگه را ستون سو.

**۱۱۷۹م ۵۷۵:**

سلطان معزالدین غوري پیښبور ونیو.

قاضي شهاب الدین خرما بادي د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري د عصر لوی قاضي و.

**۱۱۸۰م ۵۷٦ق:**

د محمد بن حسین بن حسن بیهقي عالم د انوار العقول د مؤلف د ژوند وخت.

د شیخ سیف الدین سعید بن مظهر باخرزي مشهور صوفي وفات.

ښکارندوي بن احمد چي پلار ئې د فیروز کوه کوتوال و خپله پښتو قصیده یې د سلطان معزالدین محمد غوري د هند د فتوحاتو په ستاینه کي وویله (د ۵۷٦ حدود).

**۱۱۸۱م ۵۷۷ق:**

سلطان معزالدین محمد غوري لاهور ونیو او ملک قطب الدین ایبک ته یې وسپاره.

د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري استاځي خوارزم ته ولاړل.

د خواجه احمد بن مودود چشتي زاهد وفات او ښخیدل په چشت کي.

د امام شمس الدین محمود بن مسعود اندخودي عالم او شاعر وفات.

**۱۱۸۲م ۵۷۸ق:**

تکش په خراسان کي سرخس کلابند کي.

**۱۱۸۳م ۵۷۹ق:**

د خوارزم سلطان شاه پر سلطان غیاث الدین غوري بری وموند.

تایمني د غور پښتو شاعر د سلطان غیاث الدین د باغ ارم په ستاینه کي پښتو شعر وواېه.

**۱۱۸٤م ۵۸۰ق حدود:**

فریدالدین عمر بن غیلان بلخي د ابو العباس لوگري شاگرد او د فلسفي د کتابو د مؤلف د ژوند وخت.

**۱۱۸۵-۱۱۸۷م ۵۸۰-۵۸۳ق:**

د خوارزم سنجر شاه په نشاپور کي پاچا و.

**۱۱۸۵م ۵۸۰ق حدود:**

ملک قطب الدین یوسف تمراني د غوري دربار لوي امیر و.

سلطان غیاث الدین غوض خلجي د هند په لکهنو کي د سلطان معزالدین له خوا حکمران و.

ظهیر الملک عبدالله سجري د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري وزیر و.

**۱۱۸٦م ۵۸۲ق:**

سلطان تکش نشاپور ونیو او خپل زوي ملکشاه ته یې وسپاره.

سلطان خسرو ملک آخري غزنوي پاچا غزانو مات کي او دوي غزني ونیو.

مولانا سراج الدین منحاج د سلطان

معزالدین محمد غوري په فرمان د هندوستان قاضي لشکر سو.

سپه سالار حسام الدین علي کرماچ د سلطان معزالدین محمد غوري له خوا د ملتان والي د لاهور حکمران سو.

د عالي بن ابراهیم بن اسماعیل غزنوي حنفي فقیه او مفسر د مشارع العرایع د مؤلف وفات.

**۱۱۸۷م ۵۸۳ق حدود:**

د وحد الدین محمد بن محمد انوري ایبوردي خراساني مشهور دري شاعر وفات.

**۱۱۸۸م ۵۸٤ق:**

د شیخ فرید الدین گنج شکر بن جمال الدین تولد (د کابل د پنجشیر د فرخ شاه له پښته، د ده وفات به اجودهن کي د ٦٨٧ق حدود).

د شیخ السلام خطیب امام الحرمین محمد بن احمد بلخي زاهد او امام وفات او ښخیدل په بلخ کي.

محمد بن عیسي بن علي نشاپوري یو قرآن په ښکلي نسخي خط د سلطان عیاث الدین محمد بن سام غوري لپاره وکیښ (د ایران باستان موزیم).

شریف محمد بن منصور مبارکشاه فخر مدبر غزنوي خپل رحیق التحقیق نظم کي (محرم).

محمد د عبدالرحمن زوی خراساني صوفي د مقاماتو شارح وفات سو.

**۱۱۸۹م ۵۸۵ق حدود:**

جلال الدین دیوشاري د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري وزیر و.

د قاضي وحید الدین مرورودي د شافعي مذهب مقتدار او د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري د استاد د ژوند وخت.

د کاکړ نیکه شهادت او ښخیدل په هرات کي.

**۱۱۹۰م ٥٨٦ق حدود:**

امام صدرالدین علي هیصم نشاپوري کرامي د غرستان د افشین د ښار د مدرسې لوی مدرس و.

**۱۱۹۱-۱۲۰۵م ۵۸۷-٦٠٢ق:**

د غور نه ویشتم پاچا سلطان بهاءالدین سام بن شمس الدین محمد په بامیان کي.

**۱۱۹۱م ۵۸۷ق:**

سلطان خسرو ملک د غزني آخرني پاچا په ۵۸۳ق د سلطان معزالدین محمد سام غوري په لاس د بلروان په کلا کي بندي سوي و په ۵۸۷ق ووژل سو او د غزني د سبکتگین کهول ور سره ختم سو، د ده زوی بهرامشاه هم وواژه سو.

**۱۱۹۲م ۵۸۸ق:**

د مرغاب په جنگ کي د غوریانو بری پر جلال الدین محمود بن ایل ارسلان خوارزم شاه باندي اود غوریانو له خوا مرو او نشاپور او سرخس نیول.

سلطان معزالدین محمد غوري په هند کي راي پتهورا مات کي او اجمیر او ډهول سوالک یې

ونیول. قطب الدین ایبک یې د کهرام حکمران کي.

**۱۱۹۳م ۵۸۹ق**

د ملکشاه مړینه. قطب الدین محمد په نشاپور کي مړ سو.

سلطان معزالدین محمد غوري دهلي او کول ونیول.

**۱۱۹۳م ۵۹۰ق**

د بهاءالدین سام غوري د بامیان په دربار کي امام فخرالدین رازي او شیخ الاسلام جلال الدین ورسي او مولانا سراج الدین جوزجاني غوندي پوهان سره را ټول و.

د ابو شجاع محمد بن مسعود کرماني محدث وفات او ښخیدل په هرات کي.

سلطان معزالدین محمد غوري له غزني څخه هند ته ولاړ. بنارس قنوج یې ونیول، راي چي چند یې په چنداول کي مات کي.

ملک ناصر الدین سوري د مادیني د غوري دربار لوی امیر و.

شیخ الاسلام ملک العلما جلال الدین ورسل د بلخ شیخ الاسلام و، د سلطان بهاء الدین سام غوري له خوا.

ملک الکلام تاج الدین زوزني قاضي د سلطان بهاء الدین سام غوري پاچا په دربار کي.

**۱۱۹٤م ۵۹۱ق**

د سلطان طغرل سلجوقي مړینه. ملک تاج الدین مکران د غوري دربار لوی امیر و.

**۱۱۹۵م ۵۹۲ق**

فخرالدین حسین بن بدرالدین منصور شیخ الاسلام مشهور په قاضي خان دفتاوي د خاوند وفات.

**۱۱۹۷م ۹۵۳ق**

د احمد بن محمد بن سعید غزنوي فقیه وفات په حلب کي د اختلاف العلماء او روضة المتکلمین مؤلف.

د عبدالله بن حمویه سرخسي کرزندوي د ژوند وخت. دی سفر نامه هم لري په دمشق کي مړ دئ.

**۱۱۹۷م ۵۹٤ق**

ملکشاه د تکش زوی مړ سو.

**۱۱۹۷م ۱۵ رمضان ۵۹٤ق**

سلطان معزالدنیا و الدین محمد بن سام غوري په غزني کي یو مسجد جوړ کي چي ډېر لیک ئې تر اوسه سته.

**۱۱۹۸م ۵۹۵ق**

ملک تاج الدین یلدوز په غزني او کرمان او کورم کي د سلطان معزالدین غوري له خوا حکمران و.

محمد بن منور د ابو الخیر میهني له پښته خپل کتاب اسرار التوحید في مقامات الشیخ ابي سعید په دري ژبه د سلطان غیاث الدین بن محمد سام غوري په نامه تالیف کي.

قاضي القضات ابو الفقیر محمد بن ابو المعالي بن محمد الحسن د بست قاضي وفات او په بست کي ښخ سو (جمعه ربیع الاول).

**۱۱۹۹م ٥۹٦ق**

د بغداد خلیفه الناصرالدین الله خپل سفیران ابن ربیع او قاضي مجد الدین قدوه د

سلطان غياث الدين محمد سام غوري سلطان دربار ته را واستول، او د غور له خوا سراج الدين محمد جوزجاني په سفارت بغداد ته ولاړ.

احمد بن محمد مستوفي هروي د فتوح اعثم کوفي کتاب له عربي څخه په دري را واړاوه.

**۱۲۰۰م رمضان ۵۹۷ق**

عماد الدين محمود بن احمد فاريابي عالم (متوفا ۶۰۷ق) خالصة الحايق تاليف کې.

سلطان غياث الدين محمد بن سام غوري د هرات جامع مسجد جوړ کې (کتيبه ئې تر اوسه سته).

د رکن الدين محمود شاه سنجان وفات او ښخيدل په چشت کې.

د شيخ محمد سررزي وفات او ښخيدل ئې په غزني کې.

**۱۲۰۱م ۵۹۸ق**

مولاند سراج منهاج جوزجاني د باميان قاضي الممالک او د دوو مدرسو مشر و.

د حکيم شهاب الدين شاه على ابو رجا غزنوي شاعر وفات.

د ابو الفضل طاهر بن محمد (ظهير فاريابي) مشهور دري شاعر وفات په تبريز کې.

د محمد بن عمر بن عبدالله سنجي نشاپوري فقيه د فتاوي رشيديه د مؤلف وفات.

**۱۲۰۲م ۵۹۹ق**

سلطان غياث الدين بن محمد سام د غور لوی شهنشاه ۶۳ کلن په هرات کې وفات او ښخ سو (۲۷ جمادي الاولي). د ده مملکت له هندوستان تر عراق او د جيحون څخه تر بحيره عرب پوري خپور و.

**۱۲۰۲-۱۲۱۰م ۵۹۹-۶۰۷ق**

د غور د درويشتم سلطان غياث الدين محمود بن غياث الدين محمد سلطنت په غور کې.

**۱۲۰۲-۱۲۱۵م ۵۹۹-۶۱۲ق**

د غوري پاچا علاءالدين د غور د اقتدار وخت په خراسان کې.

**۱۲۰۲م ۵۹۹ق**

مولانا افصح العجم اعجوبة الزمان سراج الدين منهاج جوزجاني د سلطان بهاء الدين سام غوري په دربار په باميان کې و.

**۱۲۰۲م ۵۹۹ق**

د وحيد الدين محمد بن محمود مرورودي شافعي فقيه په هرات کې وفات.

د ظهيرالدين محمد بن محمود مرورودي نشاپوري شافعي فقيه او مفسر د تفسير البصائر د مؤلف وفات.

شمس الدين ابو الفتح احمد بن نصر بن طاهر د سيستان صفاري شهزاده اقتدار وموند.

**۱۲۰۳م ۶۰۰ق**

د باميان سلطنت د سلطان بهاء الدين سام غوري تر پاچهي لاندي له کشمير او کاشغره تر ترمذ او غرجستانه ورسيدي.

د هرات د قاضي عمدة الدين فضل بن محمود بن صاعد سياري وفات (رمضان) چي زوی يې صاعد پر ځاي کښېنوست.

د قاضي حميد بن قاضي ابو سعد عمر

محمودي د بلخ د قاضي وفات او ښخيدل په بلخ کي.

ملک تاج الدين عثمان مرغني او عزالدين عمر مرغني د سلطان غياث الدين محمد سام غوري تربرونه د غوري دربار اميران او د امير محمد غرستاني له کهوله څخه وو.

مغولي امپراتوري د تموچن بن يسوکاي بهادر په مشري د منگوليا په قرا قروم کي جوړه سوه. تموچن د قيات له قبيلې څخه په چنگيز خان مشهور دی. ولادت يې ٥٩٤ق ١١٥٤م کال دئ.

**١٢٠٣م ٦٠٠ق حدود**

سيد ظهير الدين تاج الکتاب سرخسي د سلطان معزالدين غوري د دربار منشي و.

د محمد بن عبدالرشيد سجاوندي حنفي فقيه او مفسر او حاسب وفات.

د ده مولفات سراجيه رساله في الجبر و المقابله عين المعاني.

امام فخر الدين رازي رساله بهائيه د سلطان بهاءالدين سام غوري په نامه تاليف کړه.

د عبدالرافع بن ابو الفتح هروي شاعر د ژوند وخت.

**١٢٠٤م ٦٠١ق**

غوريانو خوارزم ونيو. شهاب الدين محمد غوري د اندخود سره ماته وکړه.

د هرات د خانقاه سلطان د شيخ صدرالدين سجزي وفات.

ملک شجاع الدين على بن حسين غوري گناباد له ملاحدود څخه ونيو.

**١٢٠٥م ٦٠٢ق**

سلطان معزالدين غوري د جيلم د هميک په کلي کي يوه کهکر فدايي وواژه او جنازه يې د غزني په دهک کي ښخه سوه.

بلخ، غور، هرات د خوارزم شاه په لاس ورغلل.

د فخرالدين مبارکشاه حسين مرورودي د غور د سلاطينو د نسب نامي د ناظم وفات.

د على بن ابوبکر هروي وفات چی د التذ کرة الهرويه في حيل الحربيه مؤلف دئ.

**١٢٠٥-١٢١٥م ٦٠٢-٦١٢ق**

د غور د ديرشم پاچا سلطان جلال الدين ابو على بن بهاءالدين سام سلطنت.

علاء الدين مسعود بن بهاءالدين سام د ده ورور هم اقتدار درلود.

**١٢٠٥-١٢١٠م ٦٠٢-٦٠٧ق**

د قطب الدين ايبک سلطنت په دهلي کي. دی د سلطان معزالدين غوري سپه سالار و.

حسن نظامي نشاپوي خپل کتاب تاج الماثر د سلطان قطب الدين ايبک په نامه شروع کي، او تر ٦١٢ق پوري پيښې يې وليکلې.

شريف محمد بن منصور بن ابو الفرج سعيد غزنوي (مبارکشاه فخر مدبر) خپل کتاب بحرالانساب سلطان قطب الدين اينک ته وړاندي کي.

د ده نور تاليفات: آداب الحرب و الشجاعه.

**١٢٠٦م ٦٠٣ق**

د چنگيز خان تر حکم لاندي د مغولو اتحاد.

د امام عصام الدين ابي حفص عمر بن

احمد صفار نشاپوري شافعي فقيه وفات.

**۱۲۰۷م ٦۰٤ق**

مولانا جلال الدين بلخي (رومي) د شرق مشهور شاعر او صوفي او مفکر په بلخ کي وزوکيد (۸ ربيع الاول).

**۱۲۰۸م ٦۰٥ق**

په خراسان بيا د خوارزم شاهانو حکومت.

په نشاپور کي سخته زلزله او د سلطان محمد خوارزم شاه په امر يې بيا ودانونه.

د سلطان غياث الدين محمود غوري پاچا له حضوره د هندوستان د سلطنت فرمان د قطب الدين ايبک په نامه صادر سو.

**۱۲۰۸م ۱ رجب ٦۰٥ق**

د ابو محمد عبدالسلام بن اسماعيل بن عبدالسلام بن عبدالرحمن بن حسن لغماني فقيه او د بغداد د قاضي وفات. دی د بغداد د سوق العميد د مدرسي مدرس هم وو (تولد يې بغداد ٥۲۰ق) په خيز رانيه کي د امام ابو حنيفه سره ښخ دئ.

**۱۲۰۸م ٦۰٥ق حدود**

قاضي امام حميد الدين على بن عمر محمودي (بلخي) د سلطان قطب الدين ايبک د هندي دربار شاعر او منشي و.

**۱۲۰۹م ۱۰ محرم ٦۰٦ق**

د شيخ کمال الدين محمود بن محمد سرخسي (خواجه سرمه) وفات او د هرات د هندوان په کلي کي ښخېدل.

د شرف الدين مظفر بن محمد بن مظفر طوسي رياضي پوهاند د الجبر والمقابله لهندسه د مؤلف د ژوند وخت.

**۱۲۱۰م ٦۰٦ق**

د امام فخرالدين محمد بن عمر بن حسن رازي شافعي مشهور عالم او مفسر وفات او په هرات کي ښخيدنه (شوال دو شنبه) د ده ولادت په ري کي ۲٥ رمضان ٥٤٤ق و.

شيخ کمال الدين محمود بن محمد سرمقي زاهد او جوانمرد د هرات په خواجه سرمه کي وفات او ښخ سو.

**۱۲۱۰م جمعه ۱۹ جمادي الاولي ٦۰٦ق**

د ابو يعقوب يوسف بن اسماعيل بن عبدالسلام لغماني حنفي فقيه وفات او د بغداد په خيز رانيه کي ښخېدل (تولد يې ٥۱۸ق).

**۱۲۱۰م ٦۰۷ق**

د غور سلطان بهاءالدين سام بن محمود سکه ووهله.

د محمود بن احمد بن ابي الحسن فاريابي صوفي او واعظ سلک الجواهر مصباح الجنان، خالصة الحقايق د مؤلف وفات.

**۱۲۱۰-۱۲۲۸م ٦۰۷-٦۲٥ق**

د سلطان ناصرالدين قباچه معزي د سلطان معزالدين غوري د مملوک سلطنت پر شرقي افغانستان او سند باندي.

عين الملک ملک الوزرا فخرالدين حسين بن شرف الملک رضي الدين ابوبکر اشعري د سلطان ناصرالدين قباچه د دربار لوی وزير و.

**۱۲۱۰-۱۲۱٤م ٦۰۷-٦۱۱ق**

د غور د پنځه ويشتم پاچا علاءالدين اتسر بن علاءالدين جهانسوز سلطنت.

**۱۲۱۲م ۶۰۹ق**

د شرف الدين مظفر بن محمد المظفر طوسي منجم او رياضي پوهاند کتاب المسطح د مؤلف وفات.

**۱۲۱۳م ۶۱۰ق**

سلطان العلماء بهاء الدين محمد بن حسين خطيبي بلخي (سلطان ولد) د مولانا جلال الدين بلخي پلار له بلخه هجرت وکي او په قونيه کي ساکن سو.

شيخ الاسلام صفي الدين ابوبکر عبدالله بن عمر واعظ بلخي خپل کتاب فضايل بلخ په عربي وکيښ (غره رمضان).

**۱۲۱۳م ۶۱۱ق**

علاءالدين مسعود بن شمس الدين محمد په غور کي.

د فريد الدين محمد بن ابو بکر ابراهيم عطا نشاپوري د تذکرة الاوليا د تاليف وخت.

**۱۲۱۴م ۶۱۱ق**

علاءالدين محمد خوارزم شاه غور او فيروز کوه او هرات تر غزني پوري ونيول.

تاج الدين يلدوز د سلطان ايلتتمش په لاس گرفتار او په بداون کي وواژه سو.

امام عزالدين ابي شعبه مسعود بن امير جلال الدين اسماعيل بن محمد په بست کي مړ او ښخ سو (۲۷ شعبان).

**۱۲۱۴-۱۲۹۸م ۶۱۱-۶۹۸ق**

عبدالله بن محمد سليمان بن حسن بن حسين بلخي قدسي حنفي مفسر ژوند او وفات په قدس کي.

**۱۲۱۵م ۶۱۲ق**

د ابو الحسن على بن ابي بکر بن على هروي گرزندوي وفات په حلب کي. د الاشارات الي معرفة الزيارات او خطب الهرويه و التذکرة الهرويه في الحيل الحربيه مؤلف.

**۱۲۱۵م ۶۱۲ق**

د غوريانو سلطنت ختم سو او خوارزم شاهيان بريمن سول.

د دوی له خوا ملک کربر په غزني کي او امين ملک په هرات کي او اختيار الدين محمد خرپوست په پيښور کي حکمرانان وو.

علاءالدين محمد بن تکش خوارزمشاه باميان او غزني ونيول او جلال الدين مينکبرتي يې د افغانستان حکمران وگوماره.

حسام الدين على عمر مرغني د غرستان او تاج الدين عثمان مرغني د خيسار حکمرانان وو. دوی د ملک ابوبکر کرت لمسيان وو.

تاج الدين حرب بن محمد د سيستان صفاري پاچا مړ سو.

شمس الدين يمين الدوله بهرام شاه بن عثمان د سيستان پادشا سو.

سليمان ماکو د بارک خان سابزي د قندهار د ارغسان اوسيدونکي خپل کتاب پښتو تذکرة اوليا وکيښ. تر اوسه د پښتو منثور مکشوف قديم کتاب دغه دئ.

**۱۲۱۶م ۶۱۳ق**

د خوارزم شاه سلطان محمد استائي چنگيز خان ته ولاړل.

**۱۲۱۷م ٦١٤ق**

د اسماعیل بن حسین بن محمد حسیني مروردي جامع عالم او د حظیرة القدس د مؤلف وفات (ولادت ۵۷۲ق).

**۱۲۱۸م ٦١٤ق**

د چنگیز خان استاځي د خوارزم دربار ته راغله او شرقي ترکستان چنگیز ونیو.

**۱۲۱۹م ٦١٦ق**

علاءالدین محمد خوارزم شاه د تاتار تجارتي قافله تاراج کړه او د چنگیز خان استاځي یې وواژه.

د چنگیز خان تاتاري لښکر پر ماوراء النهر را توی سول.

د عبدالمطلب بن فضل بلخي حنفي د جامع الکبیر د شارح وفات په حلب کي جمادي الاخر (ولادت ۵۳۹ق).

**۱۲۱۹-۱۲۲۱م ٦١٦-٦١٨ق**

چنگیز خان په افغانستان کي (مغولي لومړی پاچا).

**۱۲۲۰م شوال ٦١٧ق**

علاءالدین محمد خوارزم شاه له مغولو څخه وتښتید او د آبسکون په جزیره کي لځ لغړ مړ سو.

سلطان جلال الدین مینکبرتي د خپل پلار پر ځاي پاچا سو او شهاب الدین سرخسي یې وزیر و.

چنگیز ماوراء النهر ونیو او پر خراسان یې یرغلونه شرو سول.

**۱۲۲۰م ربیع الاول ٦١٧ق**

جبه، سبتاي، تغاجار د چنگیز خان د لښکرو مشران تر آمو را تیر سول بلخ، هرات، طوس یې ونیول او وران یې کړل.

د چنگیز خان د لښکرو مقابل مشران په ترمذ کي امیر زنگي ابو حفص د سیستان لښکر مشر، د تخارستان د ولخ په کلا کي امیر سرهنگ سام، په بامیان کي امیر عمر کرباوردي، په غزني کي ملک اختیار الدین خرپوست، د غور په سنگه کي ملک حسام الدین سرزراد او په غور کي ملک قطب الدین حسن او د هرات په کالیون کي اختیار الملک دولت یار، او په هرات کي شمس الدین جوزجاني، د تالقان په نصرت کوه کي ملک شمس الدین اتسز، په گرزیوان کي الغ خان، په غرستان کي پهلوان شروان، په فیروز کوه کي مبارزالدین سبزواري، او په تولک کي امیر حبشي نیزه ور وو.

د شیخ الشیوخ محمد بن عمر بن علی جویني شافعي فقیه او د مصر مفتي دسلوت الطالبین د مؤلف وفات.

**۱۲۲۰م ٦١٧ق**

د عبدالرحیم بن عبدالکریم سمعاني مروزي شافعي فقیه او محدث وفات په مرو کي. دی د معجم الشیوخ مؤلف دئ (ولادت ۵۳۷ق).

ابو نصر فراهي جامع الصغیر منظوم کي.

**۱۲۲۰-۱۲۲۷م ٦١٧-٦٢٥ق**

نورالدین محمد بن محمد عوفي بخاري جوامع الحکایات و لوامع الرویات تالیف کي.

**۱۲۲۱م صفر ٦۱۸ق**

چنگيز خان اور گنج، ترمذ، بلخ پوپنا کړل او زوى يې تولي خان مرو، نساء، هرات، فيروز کوه، استيه، تولک وران کړل، په مرو کي دوه مليونه تنه ووژل.

په هرات کي څو لکه تنه مړه او يو لک نجوني اسيري سوې. په باميان کي د چنگيز لمسى موتو جن د چغتاي زوى ووژل سو، هغه ښار چنگيز له بيخه وکيښ.

**۱۲۲۱م شوال ٦۱۸ق**

سلطان جلال الدين مينکبرتي آخرين خوارزم شاه په پروان کي د افغاني ملکانو امين ملک، سيف الدين اغرق، اعظم ملک، مظفر ملک په ملگري د چنگيز لښکر د قوتوقو په قيادت مات کي، خو چنگيز د باميان له لاري غزني ته راغي، او په مينکبرتي پسې گرديز او د اباسين غاړو ته ولاړ، کله چه مينکبرتي تر اباسين واوښت نو چنگيز تر چتراله چور کړه او د کابل او باميان له لاري د آمو غاړو ته ولاړ.

**۱۲۲۱م ٦۱۸ق**

اوگداي د چنگيز زوى په افغانستان کي (مغولي دوهم پاچا).

**۱۲۲۱-۱۲٤۱م ٦۱۸-٦۳۹ق**

دريم مغولي پاچا چغتاي د چنگيز زوى په افغانستان کي.

**۱۲۲۱م ٦۱۸ق حدود**

ملک ناصر الدين بن شهاب الدين خرنک د غور په گزيو کي (په ٦۲۰ق په هند کي مړ سو).

ملک تاج الدين نصر بن بهرامشاه په سيستان کي پاچا سو. په دغه کال رکن الدين ابو منصور بن بهرامشاه هم سکه ووهله.

نورالدين محمد غوفي خپله نذکره شعرا لباب الالباب دوه ټوکه تاليف کړه.

**۱۲۲۱م ٦۱۸ق**

احمد بن عمر بن محمد خيوقي (شيخ نجم الدين کبري) لوى صوفي او محدث او مفسر په ربيع الاول کي مغولو شهيد کي (ولادت يې ٥٤۰ق).

ملک شمس الدين بهرامشاه د سيستان پاچا ملحدانو مړ کي.

**۱۲۲۲م جمادي الاولي ٦۱۹ق**

ايکچيلداي نويان د چنگيزي لښکر مشر هرات وران او قتل عام کئ.

او گداى غزني وران او قتل عام کي. فيروز کوه هم گرده وران کړ سو.

شهاب الدين محمود په سيستان کي امير و.

**۱۲۲۳م ٦۲۰ق حدود**

تولي خان د چنگيز زوى مغولي څلرم پاچا په افغانستان کي.

تاج الفضلا محمد کاتب بلخي د سلطان ناصر الدين قباچه د دربار شاعر.

ضيا الدين فخر الشعرا سجزى د قباچه د دربار شاعر په شرقي افغانستان او سند کي.

**۱۲۳۳-۱۲٥۲م ٦۲۰-٦٥۰ق**

د افغانستان په اسلامي ثقافت کي علاوه پر افغاني، عربي عناصرو يو بل عنصر مغولي هم گډ سو او مغولي اصطلاحات په دري او پښتو گډ سول.

**۱۲۲٤م ٦۲۱ق**

چنگيز له افغانستانه ماوراء النهر ته او له هغه ځايه خپل اصلي اردو گاه د تنگت صحرا ته ولاړ.

جلال الدين مينکبرتي له هنده کرمان ته ولاړ.

**۱۲۲۵-۱۲۳۵م ٦۲۲-٦۳۳ق**

پر غزني، باميان، غور باندي د سيف الدين حسن قرلغ حکمراني د چنگيز خان له خوا. ده په ٦۲۲ق د الظاهر خليفه په نامه سکه وهلې ده.

**۱۲۲۵م ٦۲۲ق حدود**

شمس الدين محمد بلخي د سلطان ناصر الدين قباچه د دربار شاعر او خطاط په شرقي افغانستان او سند کي.

ملک علی بن عثمان په سيستان کي.

**۱۲۲٦م ٦۲٤ق**

چنگيز خان د تنگت په صحرا کي ۷۲ کلن مړ سو (رمضان).

چوجي د چنگيز زوی هم د قبچاق په دښت کي مړ سو.

**۱۲۲۷م ٦۲۵ق**

سديدالدين محمد عوفي خپل کتاب جوامع الحکايات و لوامع الروايات (څلور مجلده هر مجلد ۲۵ بابه) تمام کئ.

**۱۲۲۸م ٦۲٦ق**

قرچه او يغان سنقور د مغولو په مقابل کي بيا ولاړ سول، د اوگتاي له خوا طاير بهادر د دوی سر کوټلو ته راغي او د غور او خراسان پاته ښارونه او کلاوي يې وراني کړې.

ملک شمس الدين علی بن طاهر د سيستان صفاري پاچا و.

**۱۲۲۹م ۱۰ جمادي الاخري ٦۲۷ق**

د فريد الدين ابو حامد محمد بن ابو بکر بن ابراهيم عطار نشاپوري مشهور شاعر او صوفي د تذکرة الاوليا د مؤلف وفات په نشاپور کي.

**۱۲۳۰م ٦۲۸ق**

جلال الدين مينکبرتي په ايران کي گرجستان، ارمينستان تر تفليس پوري ونيول، او په ميا فارقين کي کردانو مړ کي او د خوارزمشاهيانو کهول ختم سو.

**۱۲۳۰م ربيع الاخر ٦۲۸ق**

د سلطان العلما بهاء الدين محمد بن حسين خطيبي بلخي (بهاء ولد) د مولانا جلال الدين بلخي د پلار وفات په قونيه کي. دی د المعارف مؤلف دي.

**۱۲۳۰م ٦۲۸ق حدود**

فخر مدبر مبارکشاه شريف محمد بن منصور غزنوي خپل کتاب آداب الحرب و الشجاعه په هند کي سلطان شمس الدين ايلتتمش ته اهدا کي.

**۱۲۳۲م ٦۳۰ق**

د مغولو د پاچا له خوا جنتمور د خراسان په حکمداري وگومارل سو او ده د خراسان اميري ملک بهاء الدين ته ورکړه.

**۱۲۳٤م ٦۳۲ق**

خواجه معين الدين حسن بن غياث الدين حسيني سجزي چي په سيستان کي زيږيدلي او په اجمير کي د چشتي طريقي مرشد و وفات سو

او په اجمير کي ښخ دئ (دو شنبه ٦ رجت).

د نورالدين شيخ الاسلام دهبي سيد مبارک غزنوي وفات او ښخېدل په دهلي کي.

**١٢٣٥م ٦٣٣ق**

ملک شمس الدين على بن مسعود د سيستان پاچا سو (رمضان).

**١٢٣٧م ٦٣٥ق**

نوسال نوين مغولي حکمران په خراسان کي.

**١٢٣٩م ٦٣٧ق**

د عتيق بن على بن محمد هروي محدث وفات.

د هرات بيا وداني او د انجيل او النجان ولي بيا جوړول.

**١٢٤٠م ٦٣٨ق**

گرگوز مغولي حکمران په خراسان کي.

يوسف بن احمد سجستاني حنفي فقيه دمنية المفتي او غنية الفقهاء مؤلف په سيواس کي مړ سو.

د سيد برهان الدين محقق ترمذي وفات. دی د مولانا جلال الدين بلخي مرشد و.

**١٢٤١-١٢٥١م ٦٣٩-٦٤٩ق**

مغولي پنځم پاچا قرا هولا گوبن تولي بن چنگيز په افغانستان کي.

**١٢٤٢م جمعه ١٣ رجب ٦٤٠ق**

د عبدالرحمن بن عبدالسلام بن اسماعيل لغماني قاضي القضات او د بغداد د مستنصريه مدرسې د مدرس وفات او د ابو حنيفه په هديره کي ښخېدل (تولد يې ٥٦٤ق).

**١٢٤٢م ٦٤٠ق**

د ابو نصر مسعود بن ابي بکر بن حسين بن جعفر فراهي حنفي فقيه د نصاب الصبيان او اللمعه في نظم مسايل الجامع الصغير او ذات العقدين د مؤلف وفات.

امير مجدالدين کاليوني فراه ونيوي او د اسپهبد کلا يې ورانه کړه او په سيستان کي سيل راغي.

**١٢٤٣-١٢٥٦م ٦٤١-٦٥٤ق**

امير ارغون بن ابا قابن هولاگو بن تولي بن چنگيز مغولي شپږم پاچا په افغانستان کي.

**١٢٤٤م ٦٤٢ق**

محمد بن اسماعيل خطيب شفور قاني (شبرغاني) حنفي فقيه په دهلي کي صنوان القضا في الفتاوي تاليف کئ.

**١٢٤٥-١٢٧٧م ٦٤٣-٦٧٢ق**

ملک شمس الدين محمد مهيز د ابوبکر کرت زوی د مور له خوا د تاج الدين عثمان مرغني لمسی د هرات پاچا.

**١٢٤٥م ٦٤٣ق**

ملک رکن الدين د عايشې زوی د عزالدين عمر مرغني لمسی د کرت د کهول حکمران په خيسار کي.

**١٢٤٥م ٦٤٣ق**

هولاگو د چنگيز لمسی خراسان ته راغي او ملک شمس الدين کرت د هرات پاچا د امير ارغون سره د ده هرکلي وکي.

**١٢٤٦م ٦٤٤ق**

شمس الدين محمد مهين د ابوبکر کرت

زوی د هرات پاچا د سالین نوین مغول سره ملتان او لاهور ونیول او دی د لاهور حکمران سو مگر په ٦٤٥ق د منگو خان دربار ته وغوښت سو.

**١٢٤٧م ٦٤٥ق**

منگو خان د هرات شمس الدین محمد مهین کرت تر اباسین پوري د ټول افغانستان مستقل پاچا ومانه.

**١٢٤٨م ٦٤٦ ق حدود**

شیخ عماد الدین شفور قاني د هند قاضي القضات معزول او په بدایون کي عماد الدین ریحان دی مړ کي.

**١٢٤٩م ٦٤٧ق**

شمس الدین محمد مهین کرت د هرات لوي پاچا ټول افغانستان د خراسان له آخره تر اباسین پوري د هرات په مرکزي حکومت پوري ونښلول.

**١٢٥٠م ذیحجه ٦٤٨ق**

د عبدالملک بن عبدالسلام بن حسین لغماني حنفي فقیه د بغداد د مشهد ابي حنیفه مدرس وفات او د امام ابو حنیفه په هدیره کي ښخیدل.

**١٢٥٠م ٦٤٨ق**

فخر الدولة و الدین ملک شاهنشاه افغان حکمران چي مستنگ یې پایتخت و. د ده زوم میرانشاه او زوی ملک بهرامشاه هم د دې وخت افغاني امیران وو.

**١٢٥١م ٦٤٩ق**

ملک تاج الدین هرموز په تیري کي د قندهار شمالي خوا ته افغاني حکمران و.

**١٢٥٢م رمضان ٦٥٠ق**

د امام رضي الدین حسین بن محمد بن حسن صغاني غزنوي مشهو لغوي او عالم وفات په بغداد کي. (ولادت: لاهور ٥٧٧ق پرورښت غزني) د مشارق الانوار او العباب لیکوال.

**١٢٥٢م ٦٥٠ق**

محمد بن علی بستي تاریخ سوري وکیښ چي ځني قدیم پښتو اشعار یې پکښې ولیکل.

**١٢٥٣م ٦٥١ق**

ملک شمس الدین مهین کرت پاچا مستنگ او خاسک ونیول او ملک شهنشاه او بهرام شاه افغاني امیران ئې ووژل او میرانشاه سیستان ته ولاړ.

د امیر خسرو بن امیر سیف الدین بلخي دهلوي مشهور شاعر د ژوند دوره.

**١٢٥٣م ٦٥٢ق**

د نجم الدین حسن بن علاء سجري دهلوي دري شاعر او صوفي ولادت. ده خپل قوائد الفواد په ٧٥٠ ق تالیف کړي دي.

**١٢٥٤م ٦٢٥ق حدود**

ملک حسام الدین جاول په زابل کي افغاني حکمران و.

ملک نصرالدین ابو الفتح بن مسعود صفاري په نیمروز کي سکه ووهله.

**١٢٥٥م صفر ٦٥٣ق**

المار افغان د قندهار د شمالي خوا تیري حکمران د ملک شمس الدین مهین کرت سره په جنگ کي وواژه سو او تیري ئې ملک حسام

الدین حاول ته وسپاره.

**۱۲۵۵م شعبان ۶۵۳ق**

په تګین آباد کې د شعیب سوراني افغان سره د ملک شمس الدین مهین کرت جنګ او د شعیب وژل د کهیرا په کلا کې.

**۱۲۵۶م رجب ۶۵۴ق**

د دوکي په کلا کې د ملک سندان افغان سوراني (د شعیب تربور) او د ملک شمس الدین مهین کرت جنګ او د سندان وژل.

**۱۲۵۷م ۶۵۵ق**

د ملک شمس الدین مهین کرت لښکر تر کوه سلیمان پورې پر مخ ولاړل او د افغاني امیرانو بله کلا (ساجي) ئې هم ونیوله.

**۱۲۵۷م ۶۵۵ق**

د قندهار په جنوب او د پښین او کاکړستان په سیمو کې ملک پهلوان حلم، احمد توري، مهتر کیورا، مهتر سیور، رانا کنجر، جمال الدین مهروز کهیرایي افغاني امیران وو.

**۱۲۵۸م ۶۵۶ق**

د ملک شمس الدین مهین کرت غلبه پر سیستان باندې.

د ملک علی بن مسعود وژل او د ملک نصیرالدین او علاء الدین شړل مستنګ ته.

د شیخ ابو المعالي سیف الدین سعید بن مظفر باخرزي صوفي وفات به بخارا کې.

**۱۲۵۹م ۶۵۷ق**

ملک شمس الدین مهین کرت تر دره بولان ور تیر سو او په سند کې بهکر کلابند کئ.

**۱۲۵۹م ۶۵۸ق**

قاضي القضات صدر جهان ابو عمر منهاج الدین عثمان بن سراج الدین محمد بن منهاج الدین عثمان جوزجاني خپل کتاب طبقات ناصري د سلطان ناصر الدین محمود بن ایلتتمش په نامه وکیښ (د ده ولادت ۵۸۹ق د غور په فیروزکوه کې).

ملک میرانشاه افغاني امیر د شمس الدین مهین کرت لښکرو په جنګ کې وواژه.

په دهلي کې د شیخ بدرالدین غزنوي وفات او هلته یې ښخیدل.

علاء الدین عطا ملک جویني (جهانکشاي جویني د مغولو پر احوال باندې وکیښ د لیدن طبع ۱۹۰۶).

**۱۲۶۰م ۶۵۹ق**

د ملک تاج الدین کرد او امیر هوبو، امیر هرموز افغاني امیرانو جنګ به مستنګ کې د کرت پاچا د جنګي امیرانو سره.

**۱۲۶۲-۱۳۳۹م ۶۶۱-۷۴۰ق**

بابا هوتک د تولر زوی د زابل د ترنک پښتو شاعر او د هوتکو د لوي پلار د ژوند دوره د مغولو په جنګ کې د ده پښتو حماسي شعر سته.

**۱۲۶۴م ۶۶۳ق**

د سیستان په برزر کې ولې کنبل او کنبت ډیرول.

**۱۲۶۷م ۶۶۶ق**

ملک شمس الدین مهین کرت تر تیراه پورې ټولې افغاني سیمې ونیولې.

مولانا جلال الدين غزنوي مفتي چې د يوه چاماينه يې بل ته ورکړې وه په هرات کي وواژه سو.

په سختي زلزلي سره د نشاپور بيا وراني چي په ٦٦٩ د آباقا په امر بيا ودان سو.

**١٢٦٩م ٦٦٧ق**

د محمد بن ابوبکر عثمان امامي هروي شاعر وفات.

ملک نصيرالدين محمد د سيستان پايتخت ودان کي.

**١٢٦٩م ٦٦٨ق حدود**

په هرات کي د مغولي شهزادگانو براق او اباقا جنگونه او د ملک شمس الدين مهين کرت تگ خيسار ته.

خسرو نيمروز نصير الدين محمد بن مبارز الدين د نيمروز ارگ بيا جوړ کي.

**١٢٧٠م ٦٦٩ق**

د شيخ ابو نصر يحيي بن تاج الدين محمود بوزجاني جامي وفات (٤ صفر).

**١٢٠٧-١٢٧٣م ٦٠٤-٦٧٢ق**

د محمد بن محمد بن حسين بن احمد (مولانا جلال الدين) بلخي رومي د مشهور مثنوي د شاعر او لوي صوفي د ژوند دوره. ولادت يې په بلخ او مرگ يې په قونيه (ترکيه) کي و، د مولويه صوفيانو ډله ده ته منسوبه ده.

**١٢٠١-١٢٧٤م ٥٩٧-٦٧٢ق**

د خواجه نصير الدين محمد بن محمد بن حسن طوسي معروف فيلسوف او رياضي پوهاند دمراغي د صدر خاني بنا کونکي د ژوند دوره (وفات يې په بغداد کي ذيحجه، ولادت يې په طوس کي ١١ جمادي الاولي).

**١٢٧٥م ٦٧٤ق**

له خيساره د ملک شمس الدين مهين بيرته راتگ هرات ته.

**١٢٧٦م ٦٧٥ق**

د سيستان به لاش کي د سفيد دز کلا جوړول او له هلمنده خشکرود ته اوبه رسول.

**١٢٧٨م ٦٧٦ق**

ملک شمس الدين مهين کرت د مغولو دربار اصفهان ته وغوښت او په تبريز کي يې په زهرو مړ کئ.

**١٢٨٧-١٣٠٥م ٦٧٧-٧٠٥ق**

د محمد شمس الدين کهين د شمس الدين مهين زوی په هرات کي د کرت کهول د پاچا سلطنت.

**١٢٨١م ٦٨٠ق**

د قندهار ښار ملک رکن الدين کرت (شمس الدين کهين) ونيوي.

**١٢٨٢م ٦٨١ق**

د علاءالدين عطا ملک جويني وزير او لوی مؤرخ د تاريخ جهانکشاد د مؤلف وفات (ولادت يې ٦٢٣ق).

**١٢٨٣م ٦٨٢ق**

ابو جعفر محمد مرورودي محدث خپل کتاب مختصر جامع الاصول وکيښ.

**١٢٨٤م ٦٨٣ق**

د سلطان احمد نکو دربن هلاکو له خوا پر سيستان او فراه، بست، تگين آباد باندي د

نیمروز د ملک نصیرالدین د پاچهۍ مننه.

**۱۲۸۵م ۶۸۴ق**

په زرنج کي د حصار طاق ودانول.

**۱۲۸۷م ۶۸۶ق**

احمد بن سعید لودي خپل کتاب اعلام اللوذعي في اخبار اللودي د لودیانو پر تاریخ باندي وکیښ.

په بلخ کي د حضرت علی بن ابي طالب پر مزار باندي د خواجه خیران په کلي کي وداني جوړه سوه.

د رضي الدین عبدالله بن محمد امامي هروي شاعر وفات په اصفحان کي (۱۷ محرم).

**۱۲۸۹م ۶۸۷ق**

د محمد بن محمد ابو الفضل برهان الدین نسفي حنفي مفسر او اصولي او کلامي مؤلف په بغداد کي (ولادت ئې ۶۰۰ق) دی د ابن سینا د اشاراتو شارح او د مطلع السعاده مؤلف دئ.

د مولانا برهان الدین محمود بن ابو الخیر سعد بلخي مشهور عالم په دهلي کي وفات.

**۱۲۲۶-۱۲۸۹م ۶۲۳-۶۸۸ق**

د شیخ متي عباس زوی په قوم خلیل غوریاخیل د ژوند وخت. ده په پښتو خپل اشعار په یوه کتاب، د خدای مینه، کي سره را ټول کړه او د ''ښکلا شاعر'' بلل کیږي.

**۱۲۹۰م ۶۸۹ق**

سلطان فیروز شاه جلال الدین خلجي (افغان) د هند پاچا سو (۳ جمادي الاخري) قتل ۶۹۴ق.

**۱۲۹۳م ۶۹۳ق**

د ملک شمس الدین کرت استاځي مولانا شمس الدین د غور قاضي او مولانا زین الدین د اسفزار قاضي د نیمروز د ملک نصیر الدین دربار ته راغلل او روغه ئې وکړه.

**۱۲۹۴م ۶۹۴ق**

شاه شمس الدین علی د قهستان او قاین حکمران د نیمروز د ملک نصیر الدین اطاعت ومانه او ملک ینا لتگین په فراه کي او د کرمان حکمرانانو هم د نیمروز پاچا ته غاړه کښېښوه.

سلطان رکن الدین ابراهیم شاه خلجي په هند کي سکه ووهله (رمضان).

**۱۲۹۶م ۶۹۵ق**

د محمد بن ابراهم بن محمد بستي مالکي فقیه د شرح الایضاح د مؤلف وفات.

په سیستان کي د دیورک سیمه بیا ودانه کړه سوه.

علاء الدین محمد شاه خلجي په هند کي پاچا سو (وفات ۶ شوال ۷۱۵ق).

**۱۲۹۷م ۶۹۷ق**

ملک فخرالدین کرت د شمس الدین کهین زوی په هرات کي پر تخت کښېنوست او غازان خان د ده حکمراني له هراته تر دریاي سند او آمو پوري ومنله.

**۱۳۰۰م ۶۹۹ق**

د محمد بن محمود زوزني حنفي فقیه د نصاب الذرایع او ملتقي البحار د مؤلف وفات.

د پور بهاء جامي خراساني شاعر د وفات حدود.

**۱۳۰۰م ۷۰۰ق**

ربیعي فوشنجي شاعر خپله کرت نامه د ملک فخرالدین کرت په نامه په هرات کي نظم کړه.

په خراسان کي د نستعلق هنري خط آغاز.

**۱۳۰۱م ۷۰۱ق**

د ظهیر الدین اسحاق بن ابي بکر ولوالجي حنفي فقیه او مفتي وفات.

**۱۳۰۲م ۷۰۲ق**

د قاضي محمد بن حمید الدین محمود بن عمر محمودي د بلخ د قاضي او د الملل و النحل د مؤلف وفات او ښخېدل په بلخ کي.

صدرالدین ربیعي فوشنجي خطیب او د ملک فخرالدین کرت ندیم د کرت نامې ناظم په هرات کي ووژل سو.

**۱۳۰۳م ۷۰۳ق**

شاه علی د سیستان شهزاده په قائن کي وواژه سو.

**۱۳۰۵م ۷۰۵ق**

د مولانا حکیم الدین غوري عالم وفات.

**۱۳۰۵-۱۳۰۶م ۷۰۵-۷۰۶ق**

ملک فخرالدین د شمس الدین کهین زوی په هرات کي د کرت کهول پاچا و.

**۱۳۰٦م ۷۰٦ق**

د عبدالعزیز بن محمد علی طوسي شافعي فقیه او عالم وفات په دمشق کي ۹ جمادي الاولي.

د شیخ صلاح الدین طوسي وفات چي د شیخ ابو نصر سراج له پښته ؤ (رجب).

**۱۳۰۷م ۷۰٦ق**

ملک فخر الدین امانکوه ته ولاړ.

امیر یساول اوبوجاي د مغولي لښکر مشرانو په هرات کي جمال الدین سام محاصره او مړ کئ.

**۱۳۰۷-۱۳۲۸م ۷۰٦-۷۲۹ق**

ملک غیاث الدین محمد د شمس الدین کهین کرت زوی د هرات پاچا و.

**۱۳۰۹م ۷۰۹ق**

د سید نظام الدین مرتضي عربشاه بن سید محمود شاه سبزواري عالم وفات.

**۱۳۰۹م ۱۰ محرم ۷۱۰ق**

د مولانا اقضي القضاء علاء الدین ابي بکر ابیوردي وفات په ابیورد کي.

**۱۳۱۱م ۷۱۱ق**

میر حسیني غوري نزهة الارواح تالیف کئ.

**۱۳۱۳م ۷۱۳ق:**

ملک علاء الدین د شمس الدین کهین زوی د هرات امیر سو.

**۱۳۱۳-۱۳۱٦م ۷۱۳-۷۱٦ق**

د ابو سعید بن اولجایتو حکمراني په خراسان کي.

**۱۳۱۵م ۷۱۵ق**

د حسن بن نصیر الدین محمد بن محمد بن حسن طوسي عالم وفات په بغداد کي.

**۱۳۱٦-۱۳۳۵م ۷۱٦-۷۳٦ق**

د سلطان ابو سعید بهادر خان بن اولجایتو د سلطنت دوره پر خراسان او ایران باندي.

**۱۳۱٦م ۷۱٦ق**

د شیخ عبدالرحمن خراساني زاهد وفات په بغداد کي.

سلطان مبارک شاه قطب الدین خلجي په هند کي پاچا سو (تر ۷۲۰ق پوري).

ملک غیاث الدین کرت پر اکثر افغانستان قبضه وکړه.

**۱۳۱۸م ١٦شوال ۷۱۸ق**

د امیر حسیني حسین بن عالم غوري هروي د روزګان د ګزیو د اوسیدونکي دري شاعر او عارف وفات او ښخیدل د هرات په مصرخ کي د نزهة الارواح او کنز الرموز مؤلف.

**۱۳۱۸-۱۳٤۱م ۷۱۸-۷٤۲ق**

شمس الدین احمد افلاکي خپل مناقب العارفین د مولانا جلال الدین بلخي د کورني او دوستانو پر احوال وکیښ.

**۱۳۱۹م ۷۲۰ق**

عبدالله صیرفي هروي خطاط یو قرآن په ثلث خط وکیښ (ګنجینه مشهد رضوي).

ملک غیاث الدین محمد کرت اسفزار له ملک قطب الدین اسفزاري څخه ونیو. دغسي هم ده باخرز، خواف، نیاز آباد ونیول.

د هرات لوی مسجد د ملک عیاث الدین محمد کرت په امر ترمیم سو. د دغه ملک په حکم د شیخ الاسلام احمد جام ژنده پیل د هدیرې بنا جوړه سوه.

سلطان خسرو شاه ناصر الدین خلجي د هند پاچا سو.

**۱۳۲۰م ۷۲۰ق حدود**

د مولانا عماد الدین غوري وژل په هند کي.

**۱۳۲۱م ۷۲۱ق**

غیاث الدین محمد کرت حج ته په سفر ولاړ او ځپل زوی شمس الدین محمد یې په هرات کي جانشین پریښود.

د هرات د دربار منشي خواجه شهاب عزیز او مولانا نظام الدین قاضي القضات او مولانا بدر الدین ازابي د هرات قاضي و.

**۱۳۲۲م ۷۲۲ق**

د مولانا ضیاالدین محمد بن سراج الدین هاشم ابیوردي وفات او په میمنه کي ښخېده.

د ابراهم بن محمد بن ابي بکر بن محمد حمویه جویني شافعي فقیه او محدث وفات (ولادت ئې ٦٤٤ق).

**۱۳۲٤م ۷۲٥ق**

د امیر خسرو بلخي دهلوي مشهور شاعر وفات او ښخیدنګ په دهلي کي.

**۱۳۲٦م ۷۲۷ق**

غیاث الدین محمد کرت امیر چوپان وواژه او پخپله د سلطان ابو سعید دربار ته ولاړ (۷۲۸ق).

د امیر نجم الدین حسن بن علاسجزي دهلوي شاعر او صوفي وفات او ښخېدنګ په دهلي کي.

**۱۳۲۷م ۷۲۸ق**

امیر چوپان نویان په هرات کي د سلطان ابو سعید بهادر ایلخان په امر ووژل سو.

ملک نصیر الدین په سیستان کي مړ سو.

شاه نصرت بن نصیر الدین بن مسعود د سیستان صفاري پاچا په نیمروز کي کښېنوست.

اخي محمود خیاط (عیار) په نشاپور کي مړ سو.

**۱۳۲۸م ۷۲۹ق**

ناري طغاي د خراسان حکمران د سلطان ابو سعید څخه یاغي سو مګر په همدغه کال ووژل سو او په ۷۳۰ق امیر شیخ علی د خراسان حکمران سو.

**۱۳۲۸-۱۳۲۹م ۷۲۹-۷۳۰ق**

ملک شمس الدین د ملک غیاث الدین محمد کرت زوی د هرات پاچا ؤ.

ضیا محمد مسعود غزنوي طبیب په هند کي مجموعه ضیایي د طب تالیف کړه.

**۱۳۲۹-۱۳۳۱م ۷۳۰-۷۳۲ق**

ملک حافظ د ملک غیاث الدین محمد کرت زوی د هرات پاچا ؤ.

**۱۳۳۰م ۷۳۱ق**

ملک قطب الدین محمد بن رکن الدین محمود بن بهرامشاه د سیستان صفاري پاچا په نیمروز کي سکه ووهله او شاه نصرت الدین مړ سو.

د جلال الدین شاه بن قاضي فخر الدین د هرات د قاضي وفات (۱۷ رمضان).

**۱۳۳۱-۱۳۶۹م ۷۳۲-۷۷۱ق**

ملک معز الدین د غیاث الدین کرت زوی د هرات لوی پاچا ؤ.

**۱۳۳۲م ۷۳۳ق**

ملک عزالدین بن رکن الدین محمود په نیمروز کي سکه ووهله.

د مولانا ظهیر الدین محمد بن احمد غوري شیخ الاسلام وفات او ښخیدل په هرات کي.

مجد الدین محمد خوافي (مجد خوافي) خپل کتاب روضه خلد د سعدي د ګلستان په تقلید وکیښ (شوال).

**۱۳۳۳م محرم ۷۳٤ق**

ابو عبدالله محمد بن موسي بن محمد طنجي (ابن بطوطه) د المغرب مشهور ګرزندوي د نشاپور څخه هرات، سرخس، ترمذ، بلخ ته راغي او د هندوکش له لاري کابل، غزني ته ولاړ، د کرماش (کورم) پر خوا دریاي سند او هندوسان ته تیر سو.

**۱۳۳٤م ۷۳۵ق**

شیخ معین الدین آوه یي جویني خپل نګارستان د سعدي د ګلستان په تقلید وکیښ.

شمس الدین طاهر شاه میر سواتي په کشمیر کي سکه ووهله.

**۱۳۳۵م ۷۳٦ ق**

په هرات کي د سید عبدالله بن معاویه علوي د مزار عمارت او ګنبده په مصرخ کي داؤد تاج الدین احمد جوړه کړه.

**۱۱ اپریل ۱۳۳٦م ۲۷ شعبان ۷۳٦ق**

تیمور بن تراغاي برلاس د ماوراء النهر د کش په ښار کي وزیږیده.

**۱۳۳۷م ۷۳۷ق**

مولانا نظام الدین عبدالرحیم بن فصیح الدین محمد مایز نابادي خوافي په هرات کي شهید او په خیابان کي ښخ سو (ذیقعده).

مولانا جمال الدین محمد بن حسام د هرات عالم او شاعر وفات سو.

په خراسان کي د خواجه عبدالرزاق بن خواجه شهاب الدین باشیقیني د سربداري پاچهانو د نیکه خروج (قتل ئي په ۷۳۹ق) پایتخت ئې سبزوار.

**۱۳۳۸م ۷۳۸ق**

د جمشید بن طاهر شاه میر سواتي حکومت پر کشمیر.

**۱۳۳۹م ۷٤۰ق**

د بابا هوتک د تولر زوی د پښتنو قاید او شاعر وفات.

د ابو الفضل خواجه قطب الدین یحیی جامي صوفي او عالم وفات په هرات کي او د فیروز آباد په دروازه کي ښخیده (یکشنبه ۲۱ جمادي الاخري).

د علاء الدین علی شیر بن طاهر سواتي پاچهي پر کشمیر تر ۷۵۳ ق پوري.

**۱۳٤۰م ۷٤۱ق**

د شیخ الاسلام ابو نصر یحیی بن ابو الفضل محمود بوزجاني جامي وفات په هرات کي او په دروازه فیروز آباد کي ښخیدنه (پنجشنبه ۲۱ جمادي الاخره). ملک معزالدین کرت د ده پر هدیره یوه وداني جوړه کړه.

**۱۳٤۱م ۷٤۲ق حدود**

د علی بن محمد بن ایدمر جلدکي کیمیاوئي عالم مؤلف د ژوند وخت. جلدک د خراسان یو کلي و دوه فرسخه له مشهده لیري.

**۱۳٤۱م ۱۳ صفر ۷٤۳ق**

سلطان معزالدین حسین کرت په زاوه کي امیر مسعود سربداري مات کئ.

**۱۳٤۱م ۷٤۳ق**

د شیخ قوام الدین محمد بسطامي وفات او د هرات په خیابان کي د امام فخر رازي په هدیره کي ښخ سو (رجب).

د محمد بن عثمان خراساني مفسر او محدث د لطایف التفسیر د مؤلف وفات.

**۱۳٤۳م ۷٤٤ق**

د خراسان د عیار خواجه قوام الدین حسن وفات (جمعه ۷ جمادي الثانیه).

**۱۳٤٦م ۷۳۷ق**

ملک تاج الدین بن محمد بن رکن الدین محمود د سیستان مقامي پاچا په نیمروز کي کښېنوست او ملک قطب الدین مړ سو.

**۱۳٤۷م ۷٤۸ق**

مولانا سعدالدین تفتازاني هروي خپل کتاب (مطول) د سلطان معزالدین حسین کرت په نامه په هرات کي وکیښ.

**۱۳٤۸م ۷٤۹ق حدود**

شیخ ملکیار د بابا هوتک زوی پښتو شاعر خپله د ترنک عشقي سندره وویله (ولادت ئې ۷۱۵ق).

**۱۳٤۹م ۷۵۰ق حدود**

شیخ کټه بن شیخ یوسف بن شیخ متي خپل کتاب (لرغوني پښتانه) وکیښ، چي ځیني پښتو قدیم اشعار ئې پکښي ولیکل.

ملک سليمان ځيرک بن عيسی ابدالي قبايل د کسي غره څخه د قندهار سيمو ته راوستل.

د رکن الدين صاين هروي شاعر د ژوند وخت.

فخر الاسلام قطب الدين نسابه دغندي خراساني مختصر شافي په طب کي تاليف کړ.

مولانا عصامي د هند د افغاني شاهانو تاريخ فتوح السلاطين نظم کړ (طبع بنګلور ۱۹٤۸م).

**۱۳۵۰م ۷۵۱ق**

په هرات کي د ملک معزالدين کرت له خوا د برامان د مدرسه سبز جوړول تمام سوه.

سلطان محمود بن شاه علی سيستاني د صفاري کهول څخه په نيمروز کي اقتدار وموند.

**۱۳۵۲م ۷۵۳ق**

ملک باقر د غياث الدين محمد کرت زوی د هرات حکمدار و.

د شهاب الدين بن علی شير سواتي پاچهي پر کشمير.

امير قزاغن له هراته ماورا النهر ته ولاړ.

په سيستان کي ملک شهاب الدين پر تخت کښېنوست.

**۱۳۵۸م ۷٦۰ق**

د مولانا امام فصيح الدين محمد بن محمد بن علاء مروي حنفي زيږيدنه په مرو کي (يکشنبه ۱۷ محرم).

شيخ ابو سعيد بن محمد طوسي د امام محمد غزالي له پښته د هرات په مصرخ کي د امير حسيني له قبره سره ښخ سو.

ملک بارک د ځيرک زوی د قندهار د ابدالي قبيلو مشر سو.

**۱۳۵۹م ۷۲۱ق**

امير تيمور په ماوراء النهر کي حکمران وپيژاند سو.

**۱۳٦۳م ۷٦۵ق**

امير حسين ګورکان د هندوان د کلا شمالي خوا جوړه کړه.

په هرات کي زلزله وسوه او د مسجد جامع پيش طاق ونړيدئ.

**۱۳٦۵م ۷٦۷ق**

د کروخ د غار د مسجد وداني د ابو الحسين محمد بن محمد بن محمد بن محمد ابي بکر له خوا.

**۱۳٦۸م ۷۲۹ق**

د امير محمود بن امير يمين الدين طغرائي (ابن يمين) د خراسان د اخلاقي شاعر وفات (۸ جمادي الاخر ۳۰ جنوري).

**۱۳۲۹م ۷۷۱ق**

امير تيمور لنګ په ماوراء النهر کي امير حسين مات کړ او په "صاحبقران" مشهور سو. د ده سلطنت تر ۷۰۸ق پوري و.

امير تيمور بلخ ونيوي او د دغه ځای امير حسين ګورګان ئې وواژه او د بلخ زړه کلا ئې ونړوله. او خلک ئې قلعه هندوان ته راوستل.

ملک بهرام په سيستان کي مړ سو.

**۱۳۲۹-۱۳۸۱م ۷۷۱-۷۸۳ق**

د ملک غياث الدين پير علی کرت د

معزالدين د زوی سلطنت په هرات کي.

**۱۳۸۲م ۷۷۲ق**

د قطب الدين بن طاهر شاه مير سواتي سلطنت پر کشمير تر ۷۸۸ق پوري.

**۱۳۱٤-۱۳۷۲م ۷۱٤-۷۷۳ق**

د عمر بن اسحاق بن احمد غزنوی فقيه او حکيم او مؤلف او د مصر د قاضي د ژوند دوره.

**۱۳۱٦-۱۳۷٤م ۷۰٦-۷۷٦ق**

د عبدالله بن محمد بن احمد حسيني نشاپوري حنفي فقيه او اصولي (جمال الدين نقره کار) د شرح المنار د مؤلف د ژوند دوره.

**۱۳۷۵م ۷۷۷ق**

سلطان شاه خطاط په رقاع تعليق خط د سلطان غياث الدين محمد کرت په امر د هرات د مسجد جامع پر هفت جوش لوښي باندي تاريخ وليکه.

فصيح احمد بن جلال الدين محمد خوافي هروي د ''مجمل فصيحي'' ليکوال په هرات کي وزيږيد.

**۱۳۷٦م ۷۷۸ق**

د مولانا جلال الدين محمود مرغابي زاهد وفات او د هرات د مرغاب په کلي کي ښخيدل.

**۱۳۷۷م ۷۷۹ق**

شاهرخ ميرزا د امير تيمور زوی وزيږيد (پنجشنبه ١٤ ربيع الثاني).

په هرات کي د خواجه نظام الدين داؤد تاج الدين احمد په سعي د خواجه ابو الوليد احمد مزار جوړ کړ سو.

**۱۳۷۸م ۷۸۰ق**

ملک غياث الدين پير علی کرت د هرات کلا بيا جوړه کړه.

**۱۳۸۰م ۷۸۲ق**

امير تيمور لنگ د ماوراء النهر تر نيولو وروسته تر درياي آمو را تير سو، اندخود، سرخس، فوشنج ئې ونيول.

امير تيمور خپل زوی ميرانشاه د خراسان په حکمراني او فتح کولو وگوماره.

په اندخود کي د بابا سنکو درويش د ژوند وخت چي قبر ئې هم هوري دئ.

د ملک القضاه قاضي جلال الدين محمود امامي د هرات د قاضي وفات او په گازرگاه کي ښخيدل.

**۱۳۸۱م ۷۸۳ق**

امير تيمور هرات ونيوي او د هغه ښار کلاوي ئې ونړولې، د کرت د کهول پاچهي پر پير علی ختمه سوه.

ملک پوپل د ځيرک زوی د قندهار د ابداليانو مشر سو.

**۱۳۸۲م ۷۸٤ق**

د محمد بن محمد بن علی نشاپوري خطيب او د مصر د مفتي وفات په مصر کي. دی د شرح التعجير في الفقه مؤلف دئ.

ملک قطب الدين بن عزالدين بن رکن الدين محمود د نيمروز امير و. امير تيمور نشاپور ونيوي.

**۱۳۸۳م ۷۸۵ق**

امير تيمور اسفزار، فراه، سيستان ونيول،

بست او قندهار ئې وران کړل او د شمالي او غربي افغانستان پاچا سو.

امیر تیمور د قندهار حکمراني امیر سیقل برلاس ته وسپارله.

د شیخ سیف الدین خلوتي هروي زاهد وفات او د گازرگاه د پله سره ئې په هرات کي ښخیدل.

**۱۳۸٤م ۷۸٦ق**

ملک غیاث الدین پیر علی اخرني کرت پاچا او د ده ورور ملک محمد سرخس او امیر غوري بن ملک پیر علی په سمرقند کي د امیر تیمور په حکم ووژل سوه (د پنجشنبې ماښام ۱۰ ربیع الثاني).

**۱۳۸۵م ۷۸۷ق**

بابا سنگوي ولي په اندخوي کي وفات او ښخ سو.

**۱۳۸٦م ۷۸۸ق**

شاه شاهان تاج الدین بن قطب الدین د سیستان پادشاه و.

سکندر شاه بن هندال بن طاهر سواتي د کشمیر پاچا و تر ۸۱۳ق پوري.

**۱۳۸۸م ۷۹۰ق**

امیر تیمور د فارس له فتوحاتو څخه را ستون سو.

احمد هروي خطاط د عجایب المخلوقات یوه خطي نسخه په نستعلق خط د ربیع الاول په لومړي ورځ ولیکله. (د پارس ملي کتابخانه).

**۱۳۸۸م ۷۹۱ق**

ملک پیر محمد بن ملک غیاث الدین پیر علی د میرزا میرانشاه بن امیر تیمور په حکم په هرات کي وواژه سو.

**۱۳۲۷-۱۳۸۸م ۷۲۸-۷۹۱ق**

د بهاء الدین محمد بن احمد نقشبند فاروقي لوي صوفي او د نقشبندي طریقې د مؤسس د ژوند دوره.

**۱۳۸۸م ۷۹۱ق**

د شیخ زین الدین ابو بکر تایبادي وفات چي په تایباد کي ښخ دئ (پنجشنبه ۳۰ محرم).

د مولانا علی بدر د هرات د شاعر د ژوند وخت.

**۱۳۸۹م ۷۹۲ق**

د محمد بن عثمان بن محمد زوزني د شرح تلخیص المتاح د مؤلف وفات.

**۱۳۹۰م ۷۹۳ق**

د سعدالدین مسعود بن عمر تفتازاني هروي لوي عالم او مؤلف وفات په سمرقند کي او په سرخس کي ښخیدنه. (ولادت ۷۱۲ق).

**۱۳۹۳م ۷۹٦ق**

د مولانا جلال الدین محمد بن نصیر الدین یحیي وفات او ښخیدنگ د هرات په خمچه آباد کي (پنجشنبه ۲۵ ذیحجه). دی د فصیحي خوافي پلار دئ.

شهزاده ابراهیم سلطان د شاهرخ زوی وزیږیدي. دی لوي خطاط هم دئ.

**۱۳۹٦م ۷۹۹ق**

شاهزاده بایسنقر د شاهرخ زوی وزیږیدي (جمعه ۱۱ زیحجه). دی یو هنرمند خطاط او علم پالونکي شهزاده و.

د امیر تیمور په فرمان د خراسان حکمراني د ده زوی میرزا شاهرخ بهادر خان ته وسپارله سوه.

**اپریل ۱۳۹۸م رجب ۸۰۰ق**

امیر تیمور د ترمز، خلم، سمنگان، بغلان له خوا اندارب ته راغي او له دغه ځایه ئې پر کتور (کافرانو) باندي د خاواک له خوا حملې وکړې (رمضان).

**۱۳۹۸م ۸۰۰ق**

امیر تیمور د خاواک او پنجشیر له خوا کابل ته را ورسیدي.

په سیاه پوشو کافرو کي یې یوه کلا جوړه کړه او لښکر ئې پکښې کښېنول (ذي قعده).

امیر تیمور د پنجشیر له خوا پروان ته راغي او یوه لویه واله (جوي ماهي گیر) پنځه فرسخه یې د غوربند له روده وکښله (ذي قعده).

ملک محمد د لشکر شاه اوغاني ورور امیر تیمور ته پناه وروړه او د ایریوب د کلا ودانول شرو سوه (ذي قعده).

چهار شنبه د ذیحجې لومړي ورځ امیر تیمور له کابله د کورم دایریاب (ایریوب) خوا ته رهي سو. په ۱۸ ذیحجه د شنبې په ورځ د شنوزان درې ته ورسیدي او په ۲۱ ذیحجه سه شنبه دنغر کلا ته ورسیدي او هغه ئې ودانه کړه.

امیر تیمور خراسان تر غوره پوري خپل زوی شاهرخ ته وسپاره.

امیر تیمور خپل لمسی پیر محمد د کابل او غزني او قندهار حکمران کئ او هغه تر اباسین پوري د کوه سلیمان افغانان سره وکوټل، او اچه او ملتان ئې د لوړ سند په وادي کي ونیول.

په کورم کي د لشکر شاه اوغاني او موسي اوغاني د بنگښو د مشر تر منځ د ایریوب پر کلا باندی جنگ او د لشکر شاه اوغاني وژل او د ایریوب کلا ورانول. د قندهار په سیمو کي د ملک حبیب بن پوپل مشري په ابدالي قبیلو باندي. د شیخ السلام ظهیرالدین خلوتي هروي وفات او په هرات کي ښخیدل.

خواجه تاج سلماني هروي د تعلیق خط په خراسان کي رواج کئ.

**۱۳۹۷، ۱٤۹٤م ۸۰۰، ۹۰۰ق**

په خراسان کي شپږ ډوله خط (اقلام سته) رواجیدل. نسخ، ثلث، مناشیر، محقق، رقاع، ریحان. علاوه پر دې د نسخ او تعلیق څخه نستعلیق هم وزیږید.

د کنړ د سلطانانو د اقتدار وخت له ننگرهاره تر کشمیره پوري چي مرکز یې د کنړ د پیچ دره وه. د ۸۰۰ ق په حدود کي له دوی څخه سلطان پکهل بن کهجامن هندو حکمران و.

**۱۳۹۸م ۸۰۱ق**

امیر تیمور د اورکزو، ترکانړ او برمل اوغانانو تر ایلولو وروسته په جمعه لومړي محرم ۸۰۱ق کال د نغر له کلا څخه د بنو خوا ته رهي سو، او په ۱۲ محرم سه شنبې تر دریاي سند واوښت.

**۲٤ سپتمبر ۱۳۹۸م ۱۲ محرم ۸۰۱**

امیر تیمور د هند په فتح کي ۱۲ زره سپاره افغانان د ملک بهاء الدین جلواني او ملک یوسف سرواني او ملک حبیب نیازي په مشري

بیولي وو.

**۱۳۹۹م ۸۰۱ق**

امیر تیمور د هند تر نیولو وروسته په ۲ رجب سه شنبې دریاي سند ته را ورسیدي او د کښتیو پر پله راووښت. په چهار شنبې ۳ رجب بنو ته راغي او په سه شنبې ۹ رجب د کرماچ (کورم) له خوا پروان ته ولاړ، او په شنبې ۱۳ رجب تر کوتل شیبر تیر سو، په ۱۹ رجب سمنگان ته ولاړ، او په یکشنبې ۲۱ رجب ترمذ ته واوښت.

د امیر تیمور په حکم د شاهرخ لپاره په هرات کي د باغ شهر قصر جوړ سو.

د قاسم بن حسین غزنوي فقیه د فتاوي النتف الحسان د مؤلف وفات.

د ابو القاسم محمد بن محمد زوزني فقیه د النصاب في الفقه د مؤلف وفات.

**۱۴۰۰م ۸۰۲ق**

خواجه علاء الدین محمد عطار نقشبندي په دره چغیان کي د رستاق شرق ته وفات او ښخ سو (چهار شنبه ۲۰ رجب).

د امیر تیمور په حکم مولانا محمد کاخکي او قطب الدین نایي او حبیب عودي او عبدالمومن گوینده د موسیقي استادان په دار کړل سوه.

**۱۴۰۱-۱۴۰۵م ۸۰۴-۸۰۸ق**

د دلاور خان حسین غوري سلطنت د هند په مالوه کي.

**۱۴۰۲م ۸۰۵ق**

ملک قطب الدین بن تاج الدین بن قطب الدین په نیمروز کي سکه ووهله.

**۱۴۰۴م ۸۰۷ق**

امیر تیمور خواجه فخرالدین احمد طوسي او احمد بن شیخ حسن د هرات د مالیاتو پر دیوان مقرر کړل، او علی شاه گربه پخوانی دیوان بیگي ئې په دار کړ او دوولس تنه مشران ئې له هراته وایستل.

مولانا سید حسام الدین هروي په (جمعه غره رجب) او مولانا محمود حلاج هروي واعظ په (۱۷ ذیقعده) په هرات کي وفات سول.

امیر تیمور لنگ د لوئي امپراتوري تر جوړولو وروسته ۷۱ کلن په اترار کي مړ سو (۱۷ شعبان) او په سمرقند کي ښخ سو.

ده گرده افغانستان نیولي ؤ او د دې خوا حکمران پیر محمد بن جهانگیر بن تیمور و.

شاهرخ میرزا د امیر تیمور زوی په هرات کي پر تخت کښېنوست، دی د شرق لوي هنر پالونکي پاچا دئ.

په دغه کال د سلطان علی سبزواري ښوربښت هم آرام کړ سو.

**۱۴۰۴-۱۴۴۶م ۸۰۷-۸۵۰ق**

د سلطان شاهرخ بهادر بن امیر تیمور د سلطنت دوره (پایتخت ئې هرات).

**۱۴۰۴م ۸۰۷ق**

د شاهرخ په حکم امیر جلال الدین فیروز شاه د هرات کلا او امیر سید خواجه د طوس کلا بیا جوړه کړه. په سبزوار کي د سلطان علی بن مسعود سبزواري او پیرک بغاوت او د طوس د حاکم امیر سید خواجه له خوا د دوي ماتول.

د محمد بن احمد بن محمد بسطامي شافعي صوفي د تذكرة المريد د مؤلف وفات.

**١٤٠٥م ٨٠٨ق**

شاهرخ خپل مخالفان له بيخه وكنبل او د ده زوی ميرزا الغ بيگ اندخود او شبرغان ونيول او د خراسان حکمران سو.

امير سليمان شاه چه په سرخس كي د شاهرخ په فرمان حكمران و په خراسان کي ياغي سو، شاهرخ د ده مقابلې ته ولاړ، خو هغه سمرقند ته وتښتيد او شاهرخ په كلات کي د ده كلا ورانه كړه، بيرته هرات ته راغي (٧ جمادي الاولی).

ميرزا سلطان حسين چه د مور له خوا د امير تيمور كړوسی ؤ په خراسان کي ياغي او نيول سوي و په هرات کي ووژل سو.

نشاپور په زلزله وران سو.

امير سيد خواجه بن شيخ علی بهادر د طوس حکمران سو. د خواجه شهاب الدين بن ناصر الدين لطف الله هروي وفات.

سيد خواجه په طوس كي ياغي سو او شاهرخ ورغي او هغه ئې وتښتاوه (٨٠٩ق) او استرآباد ئې ونيوي.

**١٤٠٥-١٤٣٤م ٨٠٨-٨٣٨ق**

د هوشنگ الپ خان بن دلاور خان غوري سلطنت د هند په مالوه كي.

**١٤٠٦م ٨٠٩ق**

ملک صالح د ملک اسماعيل زوی په غور کي وښوريدي خو د شاهرخ اميرانو لقمان برلاس او امير حسين جاندار هغه وځابه.

د محرم په لومړي ورځ شاهرخ له هراته د طوس خوا ته رهي سو، او ټول خراسان ئې ميرزا الغ بيگ ته وسپاره، مولانا جلال الدين صدر ئې ساري ته په سفارت واستاوه او بيرته هرات ته راغي (٤ جمادي الاولی).

په بلخ کي پير علی تاز د ميرزا پير محمد بن جهانگير بن امير تيمور پيشكار را ولاړ سو او ميرزا پير محمد ئې مړ کئ.

شيخ محمد طغرايي هروي خطاط په اعلی ثلث خط يو قرآن وكيښ.

د جام (بردويه كلي) په جنگ کي شاهرخ پر ميرزا عمر بهادر بن ميرانشاه كورگان بريمن سو (دو شنبه ٩ ذيقعده ٨٠٩ق).

ميرزا عمر چه په بادغيس کي نيول سوی ؤ مړ سو، او په هرات کي د امام فخر رازي په هديره کي ښخ سو (٢٥ ذيقعده).

د هرات عيدگاه د خواجه غياث الدين سالار په اهتمام جوړه سوه. د فتح آباد واله د ادوان او تيزان پر بلوک په هرات کي جاري سوه. په هرات کي کاختي او گراني وه.

**١٤٠٧م ٨١٠ق**

پير علی تازپه په بلخ کي ياغي سو خو چي شاهرخ ورغئ نو پير علی په هندوكش ننوت او شاهرخ ټول شمالي افغانستان تر تخارستانه ونيو او ميرزا قيدو د پير محمد زوی يې هلته حكمران كئ.

يوسف اميري د هرات خطاط او شاعر او مذهب په هرات کي د ١٩ ميناتورو سره يوه كليله دمنه وكښله (استانبول).

د شاهرخ په فرمان حصار هندوان بيا جوړه سوه.

اندخود او شيبرغان امير زاده سيدي احمد بن عمر شيخ ته وسپارل سوه.

شاهرخ له هراته د مازندران په دوهم سفر رهي سو او د هغه ځاي تر سمولو وروسته په ۹ ذيقعده هرات ته را ستون سو.

په همدغه وخت پير علی تاز چي د بدخشانه يې پر بلخ حمله کړې وه ووژل سو او سر يې هرات ته را واستول سو.

د مرو ښار بيا ودانول.

د سلطان بهرام بن کهجامن کنړي حکمراني پر ننگرهار تر کشميره.

**۱٤۰۸م ۸۱۱ق**

خواجه شمس الدين محمد سمناني له ديوان اعلی څخه معزول او پر ځای ئې خواجه محمد طاهر مقرر سو.

سيد فخرالدين محمد او امير علی شغاني په گډه په وزارت مقرر سول.

خواجه غياث الدين سالار سمناني د سيد فخرالدين په لمسون وواژه سو.

د هرات په باغ شهر کي د شهزادگانو د ختنه کولو لوی جشن وسو (د ربيع الثاني اواخر).

شاهرخ په جمادي الاولي کي پر سيستان حمله وکړه او د هلمند دري بندونه يې وران کړه او د زره ولايت وچ او وران سو. شاهرخ شاه اسکندر د شاه علی زوی په فراه او پهلوان جمال په اوک کي مقرر کړل او پخپله هرات ته ولاړ (د شعبان سلخ).

شاهرخ په فراه کي ينالتگين مطيع کي او داوک او جوين کلاوي يې تر سيسانه ونيولې.

د خطای د پاچا ايلچيان هرات ته راغله او د شاهرخ دربار ته ئې د امير تيمور د مرگ تعزيت او تحفې وړاندي کړې (رمضان).

شاهرخ د شوال په مياشت د بادغيس له لاري ماوراء النهر ته ولاړ، او د حصار تر سيمي پوري يې ټول هغه مملکت ونيو. په ۲۷ ذيحجه سمرقند ته ولاړ.

حسن بن محمد نشاپوري (نظام اعرج) د رياضياتو او هيئت پوهاند شرح التذکره للطوسي په علم هيئت کي تاليف کړه.

**۱٤۰۹م ۸۱۲ق**

شاهرخ ټول ماوراء النهر تر مغلستان پوري خپل زوی الغ بيگ ته وسپاره، او پخپله هرات ته ولاړ. په همدغه کال مقرر سول: حصار شادمان ته ميرزا محمد جهانگير بن ميرزا محمد سلطان، کابل او قندهار ته تر درياي سند پوري: ميرزا قيدو د شاهرخ زوی، بلخ او تخارستان تر بدخشانه ميرزا ابراهيم د شاهرخ زوی، سيستان ته شيخ زين الدين خوافي.

د شاهرخ په حکم د مرو ښار بيا ودان سو، او د اوبو بند ئې له مرغابه وتاړه سو، او شاهرخ پخپله مرو ته ولاړ، او تر لوی اختر وروسته هرات ته را ستون سو.

امير نيک پي شاه بدخشاني هرات ته پناه راوړه او شيخ زين الدين خوافي سيستان ته د روغي او سمون لپاره وليږل سو، او شاه نصرت سيستاني چي په طوس کي بندي ؤ بيرته خپل

پلار شاه محمود ته سيستان ته واستول سو.

د مولانا شهاب الدين عبدالحق طوسي وفات (شوال).

**۱٤۱۰م ۸۱۳ق**

په قندهار کي د امير تومان پير محمد بن امير کتلو (پيرک) او مودود گرمسيري تر منځ ونښت او دواړه هرات ته را وغوښتل سوه، او د قندهار مشري د شاهرخ له خوا پيرک ته وسپارله سوه. مودود په دربار کي مقرر سو.

شاهرخ خپل زوی ميرزا بايسنقر په هرات کي قايم مقام پريښود او په ١٤ محرم ماوراء النهر ته رهي سو، او امير شيخ نورالدين ئې د سمرقند په سيمه کي مات کي او په ۱۱ ربيع الاول ئې سمرقند ونيو، او د ربيع الاخر په اولو کي هرات ته راغي.

په هرات کي د شاهرخ په حکم د يوې مدرسې او خانقاه وداني پاي ته ورسيده. او د ښار سرپوښ بازارونه او چارسو جوړ سول. د مدرسې مدرسان مقرر سول: مولانا جلال الدين، يوسف حلاج، مولانا نظام الدين، عبدالرحيم بار احمد، مولانا خواجه ناصر لطف الله.

شيخ الاسلام خواجه علاالدين علي چشتي د شاهرخ په فرمان د هرات د خانقاه شاهرخيه مشر سو.

په هرات کي د شرقي شمال خوا ته د باغ سفيد سره د شاهرخ په فرمان يو نوي کوشک او باغ جوړ سو (جمعه ٢٤ ذيقعده).

مولانا شهاب الدين فضل الله د هرات د دار القضا کاتب وفات سو.

**۱٤۱۰-۱٤۱۷م ۸۱۳-۸۲۰ق**

على شاه امير خان د سکندر زوی د هندلان لمسی د شاه مير سواتي کړوسی د کشمير پاچا و.

د مولانا حافظ جلال الدين محمد بن ناصر الدين لطف الله وفات او د هرات په خيابان کي د امام رازي په هديره کي ښخيدل (٤ محرم).

**۱٤۱۱م ۸۱٤ق**

د هند د پاچا خضر خان له خوا د ملتان قاضي د شاهرخ دربار ته د سفير په توگه راغي او په بادغيس کي شاهرخ وليدي.

امير شيخ نورالدين دوهمي پلا په ماوراء النهر کي وښوريد او شاهرخ په ۲۱ جمادي الاولي تر آمو واوښت او سمرقند ته ورسيد، خو امير شاه ملک د هرقدان په وسيله امير نورالدين مړ کي، او شاهرخ بيرته هرات ته راغي او بيا مشهد ته ولاړ (۹ زيقعده).

د مولانا شمس الدين محمد ظهير وفات او د هرات په خيابان کي ښخيدل.

د مولانا شيخ اسماعيل خوارزمي وفات په هرات کي (رمضان).

**۱٤۱۲م ۸۱۵ق**

شاه بها الدين د بدخشان حکمران ياغي سو، خو د شاهرخ لښکرو دی د پامير خوا ته وتښتاوه او د ده ورور شاه محمود ئې پر ځاي کښيناوه.

وروسته ميرزا سيوغتمش د بدخشان حکمران وټاکل سو.

شاهرخ په ذيقعده کي مشهد ته ولاړ او

مودود گرمسيري چې له هراته تبنتيدلي ؤ بلوڅانو وواژه.

د خطا د پاچا داي منک خان ايلچيان او مکتوب د شاهرخ دربار ته راغله او له هراته شيخ محمد بخشي د سفير په ډول د شاهرخ له فرمانه سره خطا ته واستول سو.

د روم ايلچي محمد قزامان د سوغاتو سره هرات ته راغي، دغسي هم له بدخشانه د شاه بهاء الدين بدخشاني ايلچي راغي.

خوارزم هم د شاهخ په سلطنت کي شامل سو. پيرک قندهاي مشر د شاهرخ حضور ته راغي.

د مولانا عبدالله بن قاضي جلال الدين محمود د هرات د قاضي وفات او په گازرگاه کي ښخيدل (محرم).

شيخ صدر حيدري د هرات د خانقاء ملک مشر وفات او د فيروز آباد په دروازه کي ښخ سو.

ملک قطب الدين علی بن ملک محمود له سيستانه هرات ته راغي او شاهرخ ته ايل سو.

د سلطان تومنا کنړي اقتدار له ننگرهاره تر کشميره.

### ۱۴۱۳م ۸۱۶ق

د هرات حصار اختيارالدين چي ملک فخرالدين کرت جوړ کړي ؤ او د تيمور په حملو کي وران سوی ؤ د شاهرخ په حکم بيرته ودان سو.

شاهرخ د مازندران په سفر ولاړ.

خواجه عبدالقادر گوينده د هرات لوی موسيقي نواز خپل کتاب مقاصد الالحان د شاهرخ په نامه وکيښ.

عبدالرزاق بن اسحق سمرقندي عالم او مورخ د مطلع سعدين مؤلف په هرات کي وزيږيدي (۱۱ شعبان).

### ۱۴۱٤م ۸۱۷ق

شاهرخ ټول ايران تر شيرازه او اصفحانه او تبريز پوري ونيووي او د اصفحان په حکمراني ميرزا رستم بن عمر شيخ، د همدان او لرستان په حکمراني ميرزا بايقرا، د شيراز په امارت ميرزا ابراهيم سلطان مقرر سول.

ملک قطب الدين د شاه علی زوی له سيستانه هرات ته ولاړ (رجب).

خواجه قوام الدين شيخ محمد بن مجدالدين خوافي د سيد فخرالدين وزير په لمسون ووژل سو.

شاهرخ د عراق له سفره هرات ته راغي (۱۲ رجب). مشهد او خراسان ښارونه تر استر آباده بايسنقر ميرزا ته وسپارل سوه.

مولانا عبدالرحمن جامي د جام په خرجرد کي د شعبان په ۲۳ شپه وزيږيدي.

### ۱۴۱٥م ۸۱۸ق

د شاهرخ په فرمان ابيور د سلمقان تر مازندران او جرجان پوري ميرزا بايسنقر ته ورکړل سوه.

د هرات د اختيار الدين کلا د شاهرخ په فرمان بيا جوړه سوه (ربيع الثاني).

شاهرخ د کرمان په سفر ولاړ او د محرم ۸۱۹ ق په منځ کي بيرته هرات ته راغي.

خواجه نظام الدین احمد بن داؤد د هرات په دیوان کې د سید فخرالدین محمد وزیر سره مقرر سو.

**۱۴۱۶م ۸۱۹ق**

میرزا بایسنقر ته د شاهرخ فرمان صادر سو چې د هرات د دیوان اعلی پر مسند کښیني او د خلکو شکایات واوري. ځکه چې په قندهار کې میرزا قیدو ته د ده نوکران یاغیان سوه، نو امیر نوشیروان د لسو زرو لښکرو سره له هراته د ده کومک ته ولاړ.

شاه نیک پې له بدخشانه هرات ته راغئ او د هغه ځاي په حکمرانی میرزا سیور غتمش د شاهرخ زوی مقرر سو (جمادي الاخري).

خواجه علاء الدین شغاني په وزارت مقرر سو (۱۸ رجب).

د دایمنگ خان د خطا د پاچا ایلچیان بیا هرات ته راغلل او ډېري تحفې ئې شاهرخ ته راوړې (ربیع الاول).

شاهرخ قندهار ته د سیفل قندهاري د زوی او ملک محمد د شخړې لپاره ولاړ (۲۲ شعبان) او د برمل پښتانه او خرښواني افغانان ده ته راغلل (۳ رمضان).

شاهرخ د قندهار د لنگر په کلي کې بابا حسن ابدال (بابا ولي) ولید او دغه کلي ئې ده ته وقف کئ.

**۱۴۱۷م ۸۲۰ق**

په قندهار کې د سیفل د زوی او ملک محمد تر منځ شخړه پیښه سوه او ټوله افغانانو له قندهاره تر دریای سنده ښورښت وکې. شاهرخ د صدر عالي ابراهیم په مشرۍ د بدخشان او سیستان او هرات د لښکرو سره پر قندهار ورغې او خلک ئې مطیع کړه.

امیر قوام الدین محمد بن عماد الدین سنجاني په خواف کې مړ سو (۱ محرم).

شاهرخ قندهار ته ولاړ او بایسنقر میرزا ئې د هزاره وو ایلولو ته واستاوه او د دوي مشران محمد فیروز، خواجه آرام قدم د شاهرخ دربار ته راغلل.

امیر حسام د قندهار کوټوال او امیر عبدالصمد د گرمسیر حکمران سو.

میرزا الغ بیگ له ماوراء النهره هرات ته راغئ (۱۹ ربیع الاول).

سید مرتضی امیر علی مروي د هرات په دیواني مقرر سو. سید فخرالدین محمد دمخنی وزیر په هرات کې مړ سو (۲۵ جمادي الولي).

امیر کبیر علاء الدین علی ترخان او امیر غیاث الدین ترخان په هرات کې مړه سول (۲۲ رجب).

خواجه غیاث الدین پیر احمد بن جلال الدین اسحاق د هرات دیوان ته مقرر سو.

د برهان الدین حیدر بن محمد خوافي هروي مفسر او متکلم او ادیب د وفات حدود.

د شیخ ابو سعید خلوتي هروي زاهد وفات او په هرات کې ښخیدل (ذي الحجه).

**۱۴۱۷-۱۴۶۷م ۸۲۰-۸۷۲ق**

شاه خان زین العابدین بن سکندر بن هندال بن شاه میر سواتي د کشمیر پاچا و.

**۱۴۱۸م ۸۲۱ق**

میرزا قیدو بغاوت وکړ او د اوبې په ناب کي ونیول سو، نو شاهرخ کابل او غزني او قندهار تر سند پوري خپل زوی میرزا سیور غتمش ته ورکړه.

شاهرخ له گرمسیره هرات ته ولاړ او میرزا قیدو چه یاغي سوی و د پلار له حضوره معاف سو.

امیر شیخ لقمان او نور امیران بدخشان ته د میرزا الغ بیگ سره واستول سوه، خو د شیخ الاسلام علاء الدین عطار په شفاعت د بدخشان خلک معاف و مطیع سوه.

گوهر شاد ملکي د امام علی بن موسی رضا په مشهد کي یو لوی مسجد جوړ کړ چي کتیبه ئې د میرزا بایسنقر په خط ده (اوائل رجب). معمار ئې استاد قوام الدین شیرازی ؤ، او د اتمام په مراسمو کي پخپله شاهرخ شرکت وکړ او په شعبان ۸۲۱ق له هراته مشهد ته ولاړ. د دې مسجد ودانې په ۱۲ کاله ختمه سوه چي د دنیا له ۱۲ بهترینو ودانیو څخه شمیرل کیږي.

شاهرخ د امام علی رضا د مرقد په گنبده کي د درو زرو مثقالو طلایي قندیل وځړاوه.

په مشهد کي یو باغ د شاهرخ په امر جوړ سو.

شمس الدین محمد طاهر اعلی دیوان ته مقرر او بیا ئې پر ځاي خواجه شمس الدین محمد سمناني وگومارل سو.

د بدخشان د شاه بهاء الدین زامن وښوریدل او بیا د شیخ الاسلام خواجه تاج الدین حسن عطار په شفاعت وبخښل سوه او بدخشان دوی ته وسپارل سو.

**۱۴۱۸-۱۴۸۹م ۸۲۱-۸۹۴ق**

د محمد بن محمد بن عبدالله بن خیضر دمشقي خیضری محدث او فقیه او مؤرخ د ژوند وخت. دی د مولانا جامي استاد و او په ۸۷۷ق چي مولانا جامي د حج په سفر تللی و په دمشق کي احادیثو اجازت نامه له ده څخه واخیسته (عین اجازت نامه د خیضري په خط د مرحوم گویا په کتاب خانه کي وه).

**۱۴۱۹م ۸۲۲ق**

د خطا د ایمنک خان پاچا ایلچیان دریمه پلا د هرات دربار ته راغله او د خپل پاچا مکتوبونه ئې په فارسي او یغوري خط د تحفو سره شاهرخ ته راوړل.

شهزاده محمد جوکي د شاهرخ زوی د مهر نگار آغا سره واده وکړ چه د مغولستان د پاچا محمد خان لور وه. په دې ښادي کي د هرات په باغ زاغان کي لوی جشن وسو (شوال).

شاه شاهان شمس الدین بن قطب الدین بن تاج الدین په نیمروز کي سکه ووهله.

**۱۴۱۹م ۸۲۲ق**

د ملک قطب الدین علی وفات په نیمروز کي (۱۵ محرم).

**۱۴۲۰م ۸۲۳ق**

یوه ډله ایلچیان له هراته خطا (غربي چین) ته واستول سوه: د شاهرخ له خوا شادي خواجه، د میرزا بایسنقر له خوا سلطان احمد او غیاث الدین نقاش، د میرزا ابراهیم له خوا امیر حسن

او پهلوان جمال، د ميرزا سيور غمتش له خوا ارقداق، د امير شاه ملک له خوا اردوان، د شاه بدخشان له خوا خواجه تاج الدين. له دوی سره ډير سوداګران هم ولاړل.

ملکه ګوهرشاد له هراته د خپل زوی الغ بيګ د ليدني لپاره سمرقند ته ولاړه (ربيع الاول).

مولانا جلال الدين افتخار چې خپله کتابخانه ئې خلکو ته وقف کړې وه وفات او د هرات په خيابان کې ښخ سو.

امير سيد احمد ترخان د خراسان په حکومت مقرر سو او پخپله شاهرخ په ۱۵ شعبان د ايران په سفر رهي سو او تر تبريز او د عراق غرب تر سرحداتو پوري يې ټولي سيمي ونيولې او په ۱۹ شوال هرات ته راغي. د مطلع سعدين په قول د شاهرخ سلطنت له خطا (چين) څخه تر روم (عثماني ترک) او د ترکستان له آخره تر هندوستان پوري و.

ميرزا الغ بيګ په سمرقند کې يوه مدرسه او خانقاه د ارګ سره او يوه رصد خانه د ښار په شمالي خوا کي جوره کړه او د يوې ډلي پوهانو غياث الدين جمشيد، معين الدين، صلاح الدين موسی قاضي زاده رومي، علاء الدين قوشجي په مرسته ئې زيج الغ بيګي هم ترتيب او تاليف کړ چه زيج کورګاني هم بلل کيدئ.

مولانا جمال الدين غوري او مولانا ناصر الدين لطف الله (۲٦ شعبان) او مولانا شمس الدين محمد پارسا بخاري په مدينه او مولانا يوسف حلاج بن قاسم (۲۲ جمادي الاولي) او مولانا صفي الله بن شهاب الدين خياباني (۱۹ ربيع الثاني) وفات سول.

خواجه جلال الدين يوسف سمعاني وفات او د هرات په ګازرګاه کي ښخ سو.

**۱٤۲۱م ۸۲٤ق**

امير ابدال مجذوب (سيد غياث ديوانه) په بادغيس کي وفات سو (د محرم آخر).

د هرات ايلچي مولانا امير خواجه چي د هند د خضر خان دربار ته تللي و، بيرته هرات ته راغي او يو کرګدن ئې هم راوئ. محمد طيب چي مصر ته ايلچي تللي و د شوال په آخر کي هرات ته راغئ، دغسي هم سلطان قوشنجي چي د قبچان د پاچا محمد خان دربار ته تللي و بيرته هرات ته راورسيدئ (ذيقعده).

**۱٤۲۱م ۸۲٥ق**

هغه ايلچيان چه له هراته خطا (چين) ته په ۸۲۲ق تللي وو بيرته راغلل (۱۱ رمضان) او خواجه غياث الدين نقاش د دې سفر روز نامچه وکښله چي عبدالرزاق پخپل مطلع سعدين کي را نقل کړيده.

ميرزا ابراهيم سلطان د فارس حکمران خوزستان هم ونيوئ.

شاه سلطان محمود او شاه ارغون شاه د بدخشان پاچهان هرات ته د شاهرخ دربار ته راغلل (۳ سفر).

حافظ مولانا شمس الدين محمد رازي په هرات کي وفات او په يزد کي ښخ سو (۱۲ جمادي الثانيه).

ميرزا ابوالقاسم بابر د ميرزا بايسنقر زوی په

هرات کي وزيريدي (۱۷ رجب).

د سيد محمد گيسو دراز بن يوسف حسيني هروي غارف وفات د جنوبي هند په گلبرگه کي (۱٦ ذي قعده).

**۱٤۲٤م ۸۲۷ق**

د يحيى بن علی داؤد سجستاني د منازل السائرين د شاهرخ د ژوند وخت.

د مولانا شهاب الدين عبدالله بن معين الدين باخرزی وفات په مالين کي (سه شنبه ۱٤ ذي حجه).

شهزاده ابراهيم سلطان د شاهرخ زوی په هرات کي يو قرآن په ښکلي جلي ريحان او رقاع خط وکيښ. (گنجينه قرآن ، مشهد رضوي).

د سلطان ابو سعيد مصور البم چي اوس په استانبول کي دي نمبر ۲۱۵۲ په هرات کي ترتيب سو.

**۱٤۲٤م ۸۲۸ق**

شيخ قوام الدين تبريزي هروي به هرات کي وفات او د انجيل د ولې پر غاړه ښخ سو (صفر).

د مولانا نظام الدين عبدالرحيم بن يار احمد وفات په هرات کي (۳۰ صفر).

مولانا ناصر الدين کوسويي وفات او په خيابان کي ښخ سو.

مولانا صدر الدين د اردو قاضي او د حضور امام په هرات کي وفات سو.

مولانا شرف الدين علی يزدي چي د ظفر نامې تاليف ئې په ۸۲۲ ق کي شروع کړی و اوس ئې تمام کئ (دوه ټوکه).

ميرزا الغ بيگ له سمرقنده مغولستان ته ولاړ، او تر هغه ځايه ټولي سيمي ئې تصفيه کړې. او په ۱۵ ذيحجه هرات ته راورسيدئ.

خواجه غياث الدين پير احمد خوافي د هرات له ديوان اعلى څخه معزول سو.

شيخ جمال الدين ابو اسحاق محدث کازروني په هرات کي وفات او په گازر گاه کي ښخ سو (چهار شنبه ۱۳ ذيعقعده).

**۱٤۲۵م ۸۲۹ق**

د شاهرخ په حکم په گازرگاه کي د خواجه عبدالله انصاري د مزار عمارتونه جوړ او ډيري مځکي او اسباب د هغه ځاي لپاره وقف سوه.

امير شاه ملک غياث الدين د خوارزم حکمران او د شاهرخ د دربار لوی امير وفات او په مشهد کي ښخ سو (دوشنبه ۱۱ ربيع الاول).

يوې ډلي عالمانو د شهزاده بايسنقر په امر د فردوسی د شاهنامې يوه جامعه نسخه ترتيب کړه او يوه مقدمه يې پر وکښله چي بايسنقري مقدمه ئې بولي.

حافظ قاري عثمان غزنوي د هرات په زيارتگاه کي وفات سو (۱۹ شوال).

سيد نظام الدين عبدالحي د مشهد د ساداتو نقيب وفات سو.

**۱۳٦۵-۱٤۲٦م ۷٦۷-۸۲۹ق**

د محمد بن عطاء الله بن محمد هروي د مصر د قاضي او شافعي فقيه او مؤلف د ژوند دوره چي په قدس کي وفات سو. دی د مشارق الانوار شارح دئ.

**١٤٢٦م ٨٣٠ق**

ميرزا سيور غتمش د شاهرخ زوی د افغانستان حکمران په کابل کي مړ سو (محرم) او د هغه ځاي حکمراني د ده زوی ميرزا سلطان مسعود ته ورکړه سوه.

د شيخ الاسلام محی الدين محمد غزالي طوسي عالم او زاهد وفات (١٥ رمضان).

احمد لرچي د فضل الله استرابادي د حروفي ډلی مريد د هرات په جامع کي شاهرخ په نس کي په چاړه وواهه (جمعه ٢٣ ربيع الثاني) خو ټپ ئې کاري نه و جوړ سو.

احمد لرچي او مولانا معروف بغدادي هروي خطاط ووژل سوه او سيد قاسم انوار له هراته تبعيد سو.

شاهرخ د شعبان په اوله له هراته سمرقند ته رهي سو او په ٢١ رمضان د هرات باغ زاغان ته راغئ.

د هرات د مشهورو طبيبانو مولانا شمس الدين آدم او مولانا نظام الدين د ژوند وخت.

د هرات د گازرگاه بيا وداني.

د حافظ ابرو هروي مؤرخ د ذبدة التواريخ تاليف تمام سو (٤ توکه).

محمود بن حسين خوافي (متوفا ٨١٥ق) خپل کتاب خاوران نامه (خاور نامه) وکيښ.

د محمد بن عثمان بن عمر بلخی حنفي عالم د عين العلم د مؤلف وفات.

**١٤٢٧م ٨٣١ق**

د مولانا قطب الدين د اردو د قاضي وفات په تون کي (چهار شنبه ٣ ربيع الثاني).

شاهرخ له سمرقنده هرات ته راغئ (١١ محرم).

**١٤٢٨م ٨٣٢ق**

ځکه چي امير سکندر د قرا يوسف زوی په آذربايجان کي ياغي سو، نو شاهرخ د خپلو لښکرو سره له هراته ور رهي سو (يکشنبه ٥ رجب) او د سلماس تربري وروسته هرات ته را ورسيدئ (٨ ديحجه ٨٣٣م).

د مولانا سيف الدين هندوي هروي واعظ وفات په هرات کي (١٧ شوال).

شاهرخ د هرات پاچا په گازرگاه کي د خواجه عبدالله انصاري پر مزار لوئي ودانۍ جوړي کړې.

په بلخ کي د ملکت آغا د مدرسې وداني تمامه سوه.

**١٤٢٩م ٨٣٣ق**

د دنيا بهترين او گرانبها ترين کتاب شهنامهٔ بايسنقري په هرات کي د جعفر خطاط په خط او د شهزاده بايسنقر ميرزا په امر مصوره او طلا کاري وکښله سوه (موزهٔ گلستان تهران).

د شيخ عبدالله خلوتي وفات په هرات کي.

مولانا شهاب الدين عبدالله خوافي هروي (حافظ ابرو) د جامع التواريخ سلطاني زبدة التواريخ مؤلف وفات او په زنجان کي ښخ سو (يکشنبه ٣ شوال).

د شيخ الاسلام خواجه خليل الله بن خواجه محمود وفات (د احمد جام زنده پيل له اولادې څخه).

شمس بايسنقري هروي خطاط کليه دمنه

وکنبله چي ۲٦ ميناتوره لري (استانبول نمبر ۱۰۲۷).

د مولانا جلال الدين يوسف بن ناصر الدين اوبهي هروي وفات (شنبه ٥ شعبان) په هرات کي.

د ملک محمد بن خواجه جلال الدين يوسف سمعاني وفات (چهار شنبه ۳۰ ربيع الثاني) په هرات کي.

د شيخ الاسلام معز الدين خليل الله جامي بن جلال الدين محمود جامي وفات (شوال).

د شيخ الاسلام محمد جزري محدث وفات په هرات کي (٥ ربيع الاول).

**۱٤۳۰م ۸۳٤ ق حدود**

سهزاده بايسنقر بن شاهرخ په هرات کي په ښکلي او پاخه ثلث خط يو قرآن وکيښ (چي څو پاني يې د ايران په ملي کتاب خانه کي سته). د مرقعات بايسنقري مصور البم په هرات کي وکښل سو چي ٦٥۰ تصويرونه او د بايسنقر او ابراهيم امضاوي لرى (د استانبول کتابخانه).

جعفر بايسنقرى په هرات کي د بايسنقر لپاره کليه دمنه وکښله چي ۱۹ تصويره لري (استانبول ۳٦۲).

**۱٤۳۰م ۸۳٤ق**

د مولانا رکن الدين محمد خوافي وفات او د هرات په گازر کاه کي ښخيدل. (يکشنبه ۲۷ شوال).

**۱٤۳۱م ۸۳٥ق**

د خواجه صاين الدين على ترکه اصفحاني هروي وفات او ښخيدل په هرات کي (۱٤ ذيحجه) چي د فصوص الحکم شارح او د کتاب مفاحص مؤلف دئ.

د مولانا جمال الدين عبدالغفار بن مولانا جلال الدين اسحق قاضي وفات په هرات کي (۱۹ ذيحجه).

د عروضي چهار مقاله په هرات کي د بايسنقر د کتابخانې لپاره مزينه وکښله سوه (د استانبول هنري موزيم ۱۹٥٤).

د امير اعظم ناصرالدين محراب ترخان وفات (۱۳ محرم) په هرات کي.

**۱٤۳۲م ۸۳٦ق**

د انجيل د پله پر سر په هرات کي د مهد عليا گوهر شاد آغا مدرسه او لوړ عمارت جوړ سو. د دغه ځای خطيب مولانا اعظم شمس الدين محمد بن واحد مقرر سو.

دخواجه نظام الدين عبدالقادر د شاهرخ د درباري او امير محمد درويش داروغه وفات په هرات کي.

د مولانا قاري هبة الله وفات په هرات کي (پنجشنبه ۳ ربيع الثاني).

د مولانا نظام الدين يحيي بن خواجه کمال الدين خوافي وفات په هرات کي.

په هرات کي استاد فرج ريخته گر ''کمان رعد'' جوړه کړه چي ٤۰۰ منه ډبره ئې غورځوله. دا آله د کوه باولي په شمال کي د شاهرخ په مخکي تجربه سوه.

**۱٤۳۳م ۸۳۷ق**

مولانا شمس الدين هروي د مولانا معروف بغدادي خطاط شاگرد په هرات کي ميرزا

بایسنقر و روزلي دغسي هم مولانا جعفت تبریزي او مولانا ظهیر الدین اظهر او مولانا شهاب الدین عبدالله او مولانا جلال الدین شیخ محمود د مولانا جعفر شاگردان ټول په هرات کي هنرمند خطاطان وو.

شهزاده میرزا بایسنقر بهادر د شاهرخ زوی چه تکړه خطاط او د هنرمندانو پالونکي هم ؤ د هرات په باغ سفید کي وفات او د گوهرشاد آغا په مدرسه کي ښخ سو (شبنه ۷ جمادي الاولی).

د مولانا اعظم فصیح الدین محمد علاغوري مشهور فقیه او عالم وفات او په گازرگاه کي ښخیدل (۱۵ جمادي الاخري).

قاسم انوار د خراسان صوفي شاعر د جام په خرگرد کي وفات سو.

**۱٤۳٤م ۸۳۸ق**

شیخ الاسلام محمد بن احمد د هرات په گازرگاه کي ښخ سو چي شنخته ئې په اعلی ثلث خط کښلې سوې ده.

د هرات د لوی سلطنت وزارت خواجه غیاث الدین سیدي احمد بن خواجه نظام الدین احمد اندخودي ته د شاهرخ په فرمان وسپارل سو.

شاهرخ دریمه پلا له هراته د آذربایجان په سفر رهي سو (۲ ربیع الاول) او په هرات کي امیر نظام الدین په حکومت پریښو.

خواجه عبدالقادر گوینده د هرات لوی موسیقي نواز او حافظ او خطاط او شاعر په هرات کي وفات او ښخ سو. د مقاصد الالحان او جامع الالحان ۸۱٦ق او فوائد عشره او کنز الالحان او زبدة الادوار مؤلف.

میرزا سلطان ابراهیم د شاهرخ زوی د فارس فرمانفرما په شیراز کي وفات سو (٤ شوال).

د بدخشان له شاهانو څخه ارغونشاه مړ سو.

په هرات کي وبا او طاعون پیدا سو (جمادی الاخري تر ذیقعده پوري).

په هرات کي وفیات: شیخ زین الدین خوافي په ۲ شوال، اقضي القضات قاضي صدرالدین محمد امامي په ٦ شوال، مولانا اعظم ضیاء الدین نور الله خوارزمي د هرات د جامع امام په شوال، مولانا شمس الدین محمد بن سعد الدین تفتازاني په ۸ ذیقعده، مولانا نظام الدین احمد بن برهان الدین خوارزمي په ٥ ذیقعده، مولانا اصیل الدین تاج الائمه په ذیقعده، شیخ ابو سعید محمد کازروني هروي او مولانا جلال الدین قایني محتسب او مولانا شمس الدین اوحد د مدرسهٔ سبز مدرس او قاضي زاده شیخ ابو سعید امامي او خواجه مجدالدین او شیخ السلام رکن الدین محمد خیاباني او مولانا کمال الدین حسین بن اسد او خواجه عبدالقادر گوینده او مولانا نور الدین محمد خطیب غزنوي او مولانا شمس الدین شیخ محمد گرنگي او حافظ علاء الدین محمد هروي او صدر حافظ عبدالرحیم فوشنجي.

**۱٤۳٥م ۸۳۸ق**

د کاتبي ترشیزي شاعر وفات، دی د بهرام و گلندام، حسن و عشق د مثنوی ناظم دئ.

ابراهیم سلطان د شاهرخ زوی په بلخ کي

حکمران و.

د محمد غزنین خان بن هوشنګ غوري سلطنت د هند په مالوه کې.

یحیي بن احمد بن عبدالله سهرندي خپل تاریخ مبارکشاهي د هند د افغاني شاهانو پر احوال وکیښ.

**۱۴۳۵م ۸۳۹ق**

مولانا محمد دشتي د شاهرخ له خوا ګرجستان ته په سفارت ولاړ او د ګرجستان حکمران اطاعت وکي ججه ئې ومنله.

خواجه غیاث الدین سیدي احمد اندخودي لوی وزیر وفات او د هرات د خواجه احمد ابو الولید په مزار کي ښخ سو.

**۱۴۳۶م ۸۴۰ق**

شاهرخ د آذربایجان له دریم سفر څخه هرات ته راغئ (۲ ربیع الثاني)

شاه سیف الدین د عمان د کڅ د هرموز حکمران هرات ته راغئ (۲۶ شوال).

سلطان محمود شاه خلجی پښتون د هند په مالوه کي سکه ووهله.

د مولانا معروف خطاط د شاهرخ د کتابخانې د خوش نویس د ژوند وخت په هرات کي.

**۱۴۳۷م ۸۴۱ق**

د هرات په مصلا کي ګوهر شاد ملکې ودانې وکړه، چي تاریخ ئې پر ډبره په جلي ثلث خط جلال جعفر خطاط کښلی دئ (د هرات موزیم).

عبدالرزاق سمرقندي د هرات مؤرخ رسالهٔ عضدیه د شاهرخ په نامه تالیف او هغه ته ئې وړاندي کړه او لکه خپل پلار په دربار کي مقرر سو.

د شاهرخ له درباره د هرموزد والي شاه سیف الدین او توران شاه تر منځ روغه وسوه او د طرزک کلا شاه سیف الدین ته ورکړه سوه.

د شیخ الاسلام ابو بکر بن شیخ محمد خوافي وفات (۹ صفر).

د مولانا اخي توني (شیخ محمد) وفات (۱۶ سفر).

شهزاده سلطان مسعود د کابل والي دغه ښار ته ولاړ.

د مولانا سراج الدین ملتاني هروي عالم او زاهد وفات په هرات کي (صفر).

امیر مبارز الدین شیخ حاجي د هرات د دیوان په امارت مقرر سو (۱۸ صفر).

امیر الامرا شیخ لقمان برلاس وفات او د ده ځاي ئې زوی امیر پیر لقمان ته ورکړ سو (۲۲ ربیع الاول).

امیر ملک حسین با شلیخ یساولان مړ سو او پر ځاي یې زوی امیر فرخ حسین مقرر سو.

امیر بابا مسعود د هرات د اختیار الدین د کلا کوټوال مړ سو (جمادي الاولي).

**۱۴۳۸م ۸۴۲ق**

عارفي هروي خپل مثنوي ګوی و چوګان نظم کئ. دی په ۸۵۳ق مړ دی.

سلطان حسین بایقرا د هرات د پل تولګي سره وزیریدئ (محرم ــ جون ۱۴۳۸م).

د صدر مولانا جلال الدین لطف الله او مولانا شمس الدین محمد بن مولانا شیخ علی

وفات په هرات کي (جمعه ۲۱ ربيع الاول).

د استاد قوام الدين معمار وفات (غره شعبان) ده په هرات کي د گوهر شاد اغا مدرسه او په مشهد کي د گوهر شاد مسجد جوړ کړي ؤ.

ملک نظام الدين يحيي بن شمس الدين بن قطب الدين په نيمروز کي پاچا سو.

**۱٤۳۹م ۸٤۳ق**

ميرزا مسعود د ميرزا سيور غتمش زوی د شاهرخ لمسی چي د شرقي افغانستان تر سنده پوري حکمران و هرات ته را وغوښت سو (۳ شعبان) او قراجار په کابل کي حکمران ؤ.

مولانا قطب الدين عبدالله امامي د هرات قاضي وفات سو (دو شنبه ۱ ذي قعده).

مولانا مفتي عمادالدين عبدالعزيز ابهري په هرات کي وفات سو (۱۸ رجب).

امير کبير فرمان شيخ د هرات د خيابان د مدرسې مؤسس په هرات کي وفات سو (۸ صفر).

سيد شهاب الدين امير اسمعيل په بلوک گذاره کي وفات سو (غره ذيحجة).

د مصر د ملک الظاهر چقماق بيگ ايلچي جيجکبوقا د شاهرخ دربار هرات ته راغي (۷ جمادي الاخر) او د شاه ملک په باغ کي کښېنته سو.

ملک الظاهر د خپل ايلچي په واسطه د شاهرخ له کتابخانې څخه پنځه کتابوني غوښتي وو.

۱. د ابو منصور ماتريدي تاويلات اهل سنت.

۲. د فخر رازی تفسير کبير.

۳. شرح تلخيص.

٤. جامع

٥. شرح کشاف.

شاهرخ خپل ايلچي مولانا حسام الدين مبارک شاه پروانچي د سوغاتو او پنځو کتابو سره د مصر ملک الظاهر ته واستاوه.

د مولانا اعظم حاجي محمد فراهي په مشریٔ يوه د علماو جرگه د شاهرخ په حکم د عبدالرزاق سمرقندی د امتحان لپاره د شاه زادگانو او اميرانو په گډون جوړه سوه او دغه مؤرخ په امتحان کي کامياب سو.

گوهر شاده ملکه پر فصيح خوافي د مجمل فصيحی پر مؤلف په قهر سوه او دی ئې بندی کئ.

**۱٤٤۰م ۸٤٤ق**

د هرات د نظاميه مدرسې د فلک الدين مناره د عراق په بازار کي ونړيده او ۱۲ تنه تر لاندي سوه (آخر ذيحجه). دا فلک الدين د سلطان سنجر سلجوقي يو امير و.

استاد کمال الدين بهزاد مشهور نقاش په هرات کي وزيږيدئ.

ملکت آغا د ميرزا سيور غتمش مور د شاهرخ مابنه وفات او په هغه مدرسه کي ښخه سوه چي دې په بلخ کي جوړه کړې وه.

د هرات د کلا او خندق په ودانولو شرو وسوه (۱٦ سفر).

امير نظام الدين علی شير نوايي د هرات لوی وزير او شاعر او مؤلف په هرات کي

وزیریدئ (۱۷ رمضان ۸٤٤ق ۹ فبروری ۱٤٤۱م).

امیر کبیر علاء الدین علیکه گوکلتاش د شاهرخ دربار لوی امیر مړ او په خیابان کې پخپله جوړه کړې مدرسه کې ښخ سو (۱۷ جمادی الولی).

شیخ الاسلام بهاء الدین عمر جغاره یې هروی له هراته د حج په سفر رهی سو.

سلطان شاهرخ له شراب چښلو څخه توبه وکړه او د محتسب مولانا عبدالجلیل قاینی په وینائی د ټولو شاهزادگانو خم خانې تر دروازهٔ خوش دباندي په سه پلک کې ماتې کړې.

## ۱٤٤۱م ۸٤٥ق

عبدالله طباخ هروي د هرات مشهور خطاط یو قرآن په نسخ، ثلث، رقاع وکیښ (د مشهد رضوي خزانه).

امیر محمد مبارزالدین په نیمروز کې حکمران ؤ.

مهد علیا ملکه گوهر شاده سمرقند ته ولاړه او خپل لمسی میرزا عبدالطیف ئې هرات ته راوست (۱٤ شوال).

ملک علی د سیستان داوک حکمران په ۲۰ شعبان او خواجه نصرالله ترشیزی (په رمضان کې) او خواجه ناصرالدین نصرالله خوافي د شاهرخ د مملکت مشاهیر مړه سول.

د مولانا جلال الدین یوسف عتیقي د هرات د دارالقضا د کاتب وفات (۱۳محرم).

د شمس الدین مولانا محمد آدم زاهد او طبیب وفات (۱۱ صفر).

د مولانا محمد بن نجیب الدین علی خوافي وفات (۱٦ رجب). د سید فضل الله طوسي کمانگر وفات په هرات کې.

د شاه محمود علی سیستاني اوقي وفات.

د خواجه علی بن فخرالدین وفات او ښخیدل په گازرگاه کې (۱۱ رمضان). د مطلع سعدین مؤلف عبدالرزاق سمرقندی د شاهرخ له خوا د هرموز او د لوی دریاب د غاړو له لاري هندوستان ته ولاړ په ۸٤٦ق د کالیکوت بندر ته ورسیدي او په ذیحجه کې په بیجانگر کې و، د ۸٤۸ ق کال د روژې د میاشتي په نیمائي کي هرات ته د هند د ایلچیانو خواجه محمد او خواجه جمال الدین سره یو ځاي را ورسیدئ.

د شاهرخ په فرمان خواجه شمس الدین سمناني وزیر سو (چهار شنبه سلخ سفر).

امیر سیدي د فارس حکمران مړ او د مشهد په هغه مدرسه کې ښخ سو چي ده جوړه کړې وه. پر ځاي ئې د فارس په حکمراني خواجه معزالدین سمناني له هراته مقرر سو.

د فصیح احمد بن جلال الدین محمد فصیحي هروی مؤرخ د مجمل فصیحي د لیکوال وفات.

## ۱٤٤۲م ۸٤٦ق

له هراته یوه نسخه چي ٤ تصویره لری، د سلطان محمد بن مراد د کتابخانې لپاره وکښله سوه، (استانبول نمبر ۸٦۲).

عبدالرحیم او عبدالکریم او جعفر بایسنقری د هرات هنرمنانو د سعدی کلیات وکیښ چی د شاهرخ تصویرونه او د خطاطی شهکارونه لری.

(د استنبول پوهنتون ١٤١٢).

**١٤٤٣م ٨٤٧ق**

سید شمس الدین زمزمی د شاهرخ له درباره د مصر په سفارت ولاړ. د مصر پاچا دا ومنله چې بیت الله لپاره دي د شاهرخ له خوا له هراته یو پوښ ورولیږل سي.

خواجه معزالدین سمناني د فارس حکمران په شیراز کي مړ سو او ځاي ئې شیخ محب الدین ابو الخیر ته وسپارل سو.

**١٤٤٤م ٨٤٨ق**

شیخ نورالدین محمد مرشدي او مولانا شمس الدین محمد ابهري د شاهرخ له درباره مصر ته استاځي واستول سوه او د بیت الله پوښ ئې هم له هراته ور سره یووړ او د مصر د ایلچي سره یو ځاي د حج تر وخته مکې ته ورسیدل او تر حج وروسته بیرته هرات ته راغلل.

ابو بکر بن اسماعیل الفاروقی د ٣٤ میناتور مجموعه په هرات کي وکښله (استانبول نمبر ٨٧٠).

امیر جلال الدین فیروز شاه د هرات لوی وزیر چي د ده کارونه تر تفتیش لاندي وو له غمه مړ او د هرات په هغه مدرسه کي ښخ سو چي ده د خیابان پر لار د پل انجیل سره نزدې جوړه کړې وه. د ده پر ځاي یې زوی امیر نظام الدین د دیوان اعلی امیر سو چي د امیر مظفر الدین سلطان برلاس تر لاس لاندي کار وکي.

غیاث الدین پیر احمد خوافي د هرات وزیر د شاهرخ په نامه د مولانا زین الدین تایبادي مقبره جوړه کړه (متوفا ٧٩١ق) معمار ئې غیاث الدین او خط لیکونکي ئې جلال الدین بن محمد جعفر و.

مولانا اعظم نصرالله کنابادی د شاهرخ له درباره د هندوستان بیجانگر ته په سفارت ولاړ او د ده سره دوه تنه د بیجانگر د پاچا ایلچیان هم د سوغاتو سره ولیږل سوه.

د مولانا شیخ الاسلام محمد بن ابو بکر سنوگردی هروي وفات.

شهزاده میرزا محمد جوکي د شاهرخ کشر زوی په بادغیس کي مړ او په هرات کي د میرزا بایسنقر د څنگه ښخ سو.

**١٤٤٥م ٨٤٩ق**

د نظامي خمسه د خایر بنت امیر عثمان د کتابخانې لپاره په هرات کي د خواجه علی تبریزي په تصویر او تذهیب او د یوسف جامي په خط وکښله سوه (استانبول نمبر ٧٨١).

**١٤٤٦م ٨٥٠ق**

څکه چي په فارس کي میرزا سلطان محمد یاغی سوی ؤ، نو شاهرخ هرات میرزا علاء الدوله او امیر شمس الدین محمد صوفي ترخان ته وسپاره او پخپله شیراز ته ولاړ، او د هغه ځاي فتح نامه ئې د مصر د ملک الظاهر چقماق بیگ ته واستوله.

مولانا شمس بایسنقری هروي وفات سو.

شاهرخ د هرات لوی او هنر پرور پادشاه تر ٥٠ کاله سلطنت وروسته ٧١ کلن په ری کي وفات سو (٢٥ ذیحجه).

د سید محمد بن اشرف هروي وفات.

ملک بامي د حبیب پوپلزي زوی د قندهار د ابدالیانو مشر سو.

**۱۴۴٦-۱۴۴۹م ۸۵۰-۸۵۳ق**

د میرزا الغ بیگ بن شاهرخ امارت پر شمالي افغانستان او ماوراء النهر.

**۱۴۴۷م ۸۵۱ق**

میرزا علاء الدوله په هرات کي پاچا سو او په نشاپور کي ئې میرزا عبدالطیف ونیوئ، او مهد علیا گوهرشاده ئې له بنده خلاصه کړه (شنبه ۱۳ صفر).

میرزا سلطان محمد فارس ته ولاړ او د هغه ځای پاچا سو (ربیع الاول). میرزا ابوبکر د محمد جوکي زوی ختلان او تخار او بدخشان ونیول.

میرزا الغ بیگ له سمرقنده او مرزا ابوالقاسم بابر له جرجانه په هرات راغلل.

شاهرخ د ۸۵۰ق کال د ذیحجې تر آخره په ری کي و، خو د معدې دردو ته پیښ و تر ځو چي په یکشنبې ۲۵ ذیحجه ۸۵۰ (۱ فرودین، ۱۳ مارچ) په ري کي وفات او په هرات کي د گوهر شاد په مدرسه کي د میرزا بایسنقر له قبره سره ښخ سو (۱۵ صفر ۸۵۱ق).

د شاهرخ تر مرگ وروسته میرزا عبدالطیف ملکه گوهر شاده د خوار او ری تر منځ بندي کړله (سلخ ذیجحه ۸۵۰ق).

میرزا علاء الدوله د هرات له محبس څخه میرزا عبدالطیف خپل پلار الغ بیگ ته واستاوه. الغ بیگ د بلخ ولایت خپل زوی عبدالطیف ته پریښود او سمرقند ته ولاړ.

میرزا علاء الدوله له هراته مشهد ته ولاړ او د میرزا ابوالقاسم بابر سره ئې پر خبوشان باندی روغه وکړه.

د بابا حسن بن محمد ترکستاني هروی وفات او ښخیدل په هرات کي (۱۲ صفر).

میرزا علاء الدوله د بایسنقر زوی د شاهرخ لمسی له هراته پر بلخ او شبرغان راغی مگر ناکام هرات ته ستون سو.

مولانا یعقوب چرخی د عثمان زوی مشهور نقشبندی مرشد او عالم او مفسر او مؤلف صوفی وفات او په حصار شادمان کي (دو شنبه ته نزدې) ښخ سو.

**۱۴۴۷-۱۴۵٦م ۸۵۱-۸٦۱ق**

د میرزا ابو القاسم بابر د بایسنقر زوی د شاهرخ د لمسی امارت په هرات او ټول خراسان کي.

**۱۴۴۸م ۸۵۲ق**

میرزا الغ بیگ د ماوراء النهر او له بدخشانه تر میمنې پوري لښکرو سره پر هرات راغئ او د ترناب په جنگ کي میرزا علاءالدوله مات کئ.

الغ بیگ سید عمادالدین د هرات په وزارت او مولانا قطب الدین احمد مامي ئې لوی قاضي مقرر کړه، او خپل زوی میرزا عبدالطیف ئې هم په هرات کي پریښو پخپله تر آمو واوښت.

میرزا الغ بیگ له هراته تر بسطام پوري ونیول، خو کله چي امیر زاده یار علی په هرات کي یاغي سو، نو الغ بیگ بیرته هرات ته راغئ او هرات ئې چور کئ، د هرات باغونه او چیني خانه ئې وران کړل (د رمضان اوآخر).

پسله دې ئې هرات ميرزا عبدالطيف ته پريښو او د شاهرخ جنازه ئې سمرقند ته يووړه چه د امير تيمور سره ښخ سو.

ميرزا ابو القاسم بابر د فوشنج له خوا راغي او هرات ئې ونيوئ. ميرزا عبدالطيف بلخ ته وتښتيد، او امير زاده يار علي چي ياغي سوی و د هرات په چارسو کي ووژل سو (د ذيحجې اواخر). بابر سيستان هم له هراته سره ونښلاوه.

مولانا شيخ مفسرين احمد کاريزی په هرات کي وفات او ښخ سو.

**١٤٤٩م ٨٥٣ق**

ميرزا الغ بيگ له سمرقنده او ميرزا عبدالطيف له بلخه لښکر کشي وکړه او د سمرقند د دمشق په کلی کي الغ بيگ مات سو، او ميرزا عبدالطيف خپل پلار او ورور عبدالعزيز ووژل، خو ميرزا ابو سعيد بن ميرزا سلطان محمد بن ميرانشاه بن تيمور له دې شخړي څخه بخارا ته ولاړ.

په هرات کي ميرزا ابو القاسم بابر د بايسنقر زوی سکه ووهله او د خراسان پاچا سو، او ميرزا علاء الدوله او ميرزا سلطان ابراهيم ئې بنديان کړه.

ميرزا بابر له هراته سيستان ته ولاړ، او شاه حسين ئې هلته مطيع کئ. امير هندو چي په بادغيس کي ياغي سوی ؤ په خبوشان کي ئې مړ کئ.

ميرزا سلطان محمد چي د عراق او فارس حکمدار و پر هرات راغي او ميرزا بابر ئې د جام په جنگ کي مات کئ او د هرات پاچا سو.

**١٤٥٠-١٥٢٦م ٨٥٤-٩٣٢ق**

د افغاني لوديانو سلطنت په هند کي. د دوی پايتخت ډهلي ؤ.

**١٤٥٠م ٨٥٤ق**

ميرزا ابو القاسم له هراته بلخ ته ولاړ، او له بدخشانه تر مرغابه پوری ئې امير ناصرالدين او امير مبارز الدين هزار سپي ته وسپارل.

شاه نجم الدين محمود په سيستان کي مړ سو.

په خراسان کي د ميرزا بابر او سلطان محمد او علاء الدوله تيموري شاهزادگانو خانه جنگي.

په سمرقند کي خلکو ميرزا عبدالطيف مړ کئ (٢٦ ربيع الاول) او پر ځاي ئې په بخارا کي ميرزا سلطان ابو سعيد د سلطنت مدعي سو. خو سمرقند ميرزا سلطان عبدالله ونيو او ميرزا علاء الدوله بلخ واخيست. هرات د ميرزا ابو القاسم بابر سره و.

**١٤٥٠م ٨٥٤ق**

په خراسان کي د تعليق او نستعليق خط له گډيدلو څخه شکسته خط پيدا سو.

سيد عبدالجليل د سلطان خليل زوی او د سلطان محمد سبزواری لمسی (شاه مقصود) د قندهار په خاکريز کي وفات او ښخ سو.

**١٤٥١م ٨٥٥ق**

ميرزا سلطان ابو سعيد خپل رقيب ميرزا سلطان عبدالله د سمرقند د شيراز سره مات کئ (شنبه ٢٢ جمادی الاولي) او سمرقند ئې ونيوئ.

د خبوشان او اسفراين تر منځ په چناران کي د ميرزا سلطان محمد بن بايسنقر او ميرزا

ابو القاسم جنگ او د سلطان محمد وژل او د میرزا علاء الدوله ړندول.

سلطان بهلول لودي د ملک کالا زوی او پښتو شاعر په هند کي د لودی سلطانانو سلطنت جوړ کړ. (وفات ئې ۸۹٤ق).

**۱٤۵۲م ۸۵٦ق**

میرزا ابو القاسم بابر شیراز تر اصفحانه ونیول خو کله چي ړوند میرزا علاء الدوله په فارياب او مرغاب کي ياغي سو نو بابر بیرته هرات ته راغي، او علاءالدوله سيستان ته وتښتید.

**۱٤۵۳م ۸۵۷ق**

د مولانا شهاب الدین احمد بن محمد بیرجندي وفات او ښخيدل په هرات کي.

عبدالرحمن خوارزمي د هرات خطاط د نظامي خمسه وکښله چي د سلطان ابو سعید تصویر هم لري (استانبول ۷۷۹).

د مولانا شهاب ترشیزی سبزواري شاعر وفات.

امير شاهي د جمال الدین زوی سبزواري خطاط وفات سو.

د شيخ الاسلام بهاء الدين جغاره يي هروي وفات او ښخيدل د هرات په عیدگاه کي (سلخ ربيع الاول).

عراق او فارس د هرات له سلطنته بیل سول، او میرزا سلطان سنجر د هغه ځای حکمران هرات ته راغئ نو میرزا ابوالقاسم بابر له هراته د عراق خوا ته په جنگ رهي سو. (دوشنبه ۲۳ رجب). او په ۱۵ ذیقعده مازندران ته ورسيد خو ځکه چي سلطان ابو سعيد تر آمو را اوښتي او بلخ ئې نیولی و، نو بابر بیرته له عراقه د بادغیس له لاري بلخ ته ولاړ، او ابو سعيد هم تر آمو واوښت بلخ بابر ونیو (۸۵۸ق).

**۱٤۵۳م ۸۵۸ق**

میرزا بابر تر آمو تیر سو او د وخش سيمي ئې ونیوې، بيا ئې نو سمرقند کلا بند کړ خو په پای کي ئې د ابو سعيد سره روغه وکړه او د لوی اختر د میاشتي په لومړیو ورځو کي د کرکي پر بندر تر آمو را واوښت او هرات ته راغئ.

**۱٤۵٤م ۸۵۹ق**

په هرات کي پر یوه قبر د نستعليق خط خورا اعلی نمونه کښلې سوې ده.

**۱٤۵۵م ۸٦۰ق**

مولان سعد الدين کاشغری د هرات لوي صوفي او مرشد وفات او د هرات د عیدگاه د صحرا په جنوب کي ښخ سو. (چهار شنبه ٦ جمادي الاخر).

ميرزا سلطان ابو سعيد له سمرقنده يو کتاب ذيج جديد سلطاني (الغ بيگي) او د لب الالباب رساله د هرات میرزا ابوالقاسم بابر ته تحفه را واستوله، چي د خواجه ابو الوفا خوارزمي تاليف و.

د حاجي محمد فراهي وفات په هرات کي.

**۱٤۵٦م ۸٦۱ق**

ميرزا ابو القاسم بابر د هرات حکمدار مشهد ته ولاړ، او هلته په چارباغ کي مړ سو (سه شنبه ۲۵ ربيع الثاني). دی ئې د مشهد د شاهرخ په مدرسه کي د حضرت امام په جوار

کي ښخ کئ.

د ده پر ځاي يولس کلن شهزاده ميرزا جلال الدين شاه محمود د ميرزا ابوالقاسم بابر زوی په پاچهي ومنل سو. او په ۲٦ جمادی الولی د هرات باغ مختار ته راغی.

په هرات کي فساد او خانه جنگي وسوه، او ميرزا سلطان ابراهيم راغی هرات ئې ونيو، خو ميرزا شاه محمود له مشهده راغی او په کوسويه کي جنگ وسو، او ميرزا شاه محمود بيرته مشهد ته ولاړ.

وروسته سلطان ابو سعيد له سمرقنده راغی او ميرزا ابراهيم ئې د گرزيوان غرو ته وتښتاوه او هرات ئې ونيو، د دې ځاي پاچا سو (۲۵ شعبان) او ملکه کوهر شاده ئې په هرات کي مړه کړه (۹ رمضان). بيا نو د بلخ خوا ته ولاړ (۱۵ شوال).

سلطان ابو سعيد کورکان د سلطان محمد زوی د ميرانشاه لمسی ټول خراسان، زابلستان، توران ونيول او له هراته ئې پاچهي کوله.

**۱٤٥٦-۱٤٦٨م ۸٦۱-۸۷۳ق**

د سلطان ابو سعيد کورکان بن سلطان محمد ميرانشاه بن تيمور د سلطنت دوره له هراته.

**۱٤٥۷م ۸٦۲ق**

ميرزا سلطان ابراهيم چي مازندران ته تللی و د ترکمانانو له لاسه مات سو (سه شنبه ۲۵ محرم) او بيرته راغی هرات ئې ونيو (يکشنبه ۷ صفر) او شيخ الاسلام نورالدين محمد او خواجه شمس الدين کوسويي ئې بلخ ته واستول چي د سلطان ابو سعيد سره روغه وکی.

د شيخ الاسلام مولانا جلال الدين ابو يزد پوراني وفات او ښخيدل د هرات د پوران په کلي کي.

په تيموري هيواد کي ملوک طوايفي.

۱. ميرزا جهان شاه ترکمان په اسفراين کي له استر اباده تر سبزواره.

۲. ميرزا سلطان ابو سعيد په بلخ کي پر ټول ماوراء النهر باندي.

۳. ميرزا علاء الدوله په ابيورد کي له اوزبکه تر دشت قبجاق پوری.

٤. ميرزا سلطان ابراهيم په هرات کي.

٥. ميرزا سلطان سنجر په مرو کي.

٦. ميرزا شاه محمود د بابر زوی به طوس کي (متوفا ۸٦۳ق).

۷. ملک قاسم ترکمان په سيستان کي تر اسفزاره.

ميرزا علاء الدوله د خپل زوی ابراهيم په مرسته د هرات په باغ زاغان کي بيا پر تخت کښينوست (۷ جمادی الاخری). خو ترکمانو پاچا جهانشاه راغي او هرات ئې ونيوه (۱۵ شعبان) او د خراسان پاچا سو.

**۱٤٥۸م ۸٦۳ق**

ميرزا سلطان ابو سعيد له بلخه راغی او په هرات رود کي ئې د جهانشاه لښکر مات کړه او د دوی تر منځ روغه وسوه. جهانشاه آذربايجان ته ولاړ او سلطان ابو سعيد په هرات کي پاچا سو او سکه ئې ووهله (جمعه ۱۵ صفر).

د مرو او سرخس تر منځ تيموري

شاهزادګان د ابو سعید په جنګ کې مات سول او میرزا سنجر وواژه سو (۱۵ جمادی الاولې).

شیخ الاسلام شمس الدین محمد کوسویي جامي وفات او د هرات د جامع مسجد سره ښخ سو.

**۱۴۵۹م ۸۶۳ق**

مولانا جامي هروي خپل نقدالنصوص د شیخ صدرالدین قونوي د فصوص په شرح کې وکیښ.

د هرات نمازګاه عمارت د سلطان ابو سعید په حکم د کمال الدین میرک حسین په اهتمام جوړ سو.

خواجه شمس الدین محمد د هرات وزیر او صاحب دیوان و. ده د نیرتو کلا ونیوله او د هغه ځای یاغي امیر پیرکه ئې مړ کړئ.

میرزا سلطان ابراهیم وفات او د هرات د ګوهر شاد د مدرسې په هدیره کې ښخ سو (چهار شنبه ۱۰ رمضان).

میرزا شاه محمود د ابو القاسم بابر زوی په کابل کې د امیر بابا سره په جنګ کې وواژه سو.

د مولانا محمود امامي شیخ الاسلام وفات په هرات کې.

**۱۴۵۹م ۸۶۴ق**

مولانا شمس الدین محمد اسد د هرات لوی روحاني مرشد وفات او په ګازرګاه کې ښخ سو (۲۵ شعبان).

سلطان ابو سعید کابل او غزنی او د افغان سیمي تر هندوستانه پوري خپل زوی الغ بیګ ته وسپارلې چي د دغو سیمو مشران امیر بابا او د ده ورونه دریا خان او آفاق خان وو، او د دوی په ملګری د الغ بیګ لښکر تر ملتانه ورسیدل.

له هراته د سلطان ابو سعید مملکت تر ماوراء النهر او ترکستان او کاشغر او قبچاق او کابل او زاول پوري ورسیدئ او غرباً تر مازندران او عراق پوري.

په دغه کال چي ابو سعید له هراته مازندران ته ولاړ، امیر خلیل له سیستانه راغي او هرات ئې کلابند کئ مګر د هرات خلکو دی وشاړه (۱۵ رمضان).

امیر خلیل ونیول سو او سیستان نظام الدین شاه یحیی ته وسپارل سو، چي د سیستاني شاهانو له کهوله و.

په هرات کې بابا کوکي مجذوب او مولانا شمس الدین محمد جاجرمي او مولانا زاهد طفلکاني وفات او ښخ سول.

**۱۴۵۹م ۸۶۴ق حدود**

امیر سید عبدالله بن عبدالرحمن حسیني (اصیل الدین واعظ) هروي په هرات کې د مزارات هرات رساله مقصد الاقبال د سلطان ابو سید کورکان په نامه وکښله.

دا کتاب وروسته مولانا عبیدالله بن ابو سعید هروي تکمیل کئ.

**۱۴۶۰م ۸۶۵ق**

میرزا علاء الدوله په رستمدار کې وفات او د هرات د ګوهرشاد د مدرسې په هدیره کې ښخ سو (۲۱ صفر).

شیخ الاسلام خواجه ناصر الدین عبیدالله نقشبندي له بخارا څخه هرات ته راغي (۲۳

صفر) او په ۱۱ ربیع الاول بیرته ماوراء النهر ته ولاړ.

خواجه مظفر مختار سبزواري او مولانا نعمت الله قهستاني او خواجه امیر سمرقندی د هرات په دیوان کي مقرر سول.

د حافظ الدین ابو نصر پارسا بن خواجه محمد پارسا وفات او ښخیدل په بلخ کي.

د سلطان ابو سعید په حکم د مملکت مالیه په درې قسطه سوه. لومړی قسط په سرطان او دوهم قسط په سنبله میزان او دریم قسط په قوس کي.

کله چي ابو سعید ماوراء النهر ته د میرزا محمد جوکي مقابلې ته ولاړ، میرزا سلطان حسین له مازندرانه راغي او هرات ئې کلابند کئ (دو شنبه ۲٤ ذیقعده) خو بیرته له هراته مازندران ته ولاړ (٥ محرم ۸٦٦ق).

**۱٤٦۰-۱٤۷۹م ۸٦٥-۸۸٤ق**

میرزا سلطان ابو بکر د سلطان ابو سعید زوی د بدخشان او تخارستان حکمران و.

**۱٤٦۱م ۸٦٦ق**

د سلطان ابو سعید په حکم امیر خلیل وواژه سو، او مازندران ئې هم له سلطان حسین څخه ونیو، چي بیرته هرات ته راغئ شیخ احمد صراف ئې پوست کئ او خواجه معزالدین ئې په کړایي کي وایشاوه، چي بیا څوک له خلکو څخه پیسې وانخلي. قطب الدین طاووس سمناني او خواجه شهاب الدین خوجاني په دیوان کي مقرر سول، او پخپله سلطان ابو سعید بیرته ماوراء النهر ته ولاړ (۲۲ جمادی الاولي).

د روژې له میاشتی څخه بیا د کال تر آخره په هرات کي طاعون ګډ سو او په زرو خلک مړه سوه او ښار خالي او خراب سو.

ملا معین مسکین هروي د معارج النبوه تالیف شرو کئ، چي په ۸۹۱ق ئې ختم کئ.

د فیض آباد پر رود یو پل د شاه سلطان محمد له خوا جوړ سو چي ډېر لیک ئې سته.

**۱٤٦۲م ۸٦۷ق**

سلطان ابو سعید سمرقند او شاهرخیه او تاشکند ونیول (محرم). مولانا شهاب الدین فتح الله صدراعظم مړ او د هرات په ګازر ګاه کي ښخ سو.

په هرات کي سخت یخ او واوره لویدل.

د میر مزید ارغون په اهتمام د خواجه ابو نصر پارسا پر قبر په بلخ کي ودانی جوړه سوه.

**۱٤٦۳م ۸٦۸ق**

سلطان ابو سعید ماوراء النهر آرام کئ او میرزا محمد جوکي ونیول سو او پخپله سلطان بیرته هرات ته راغي (۲۲ ربیع الثاني). د هرات دیوان تفتیش سو او دیوانیان د خواجه شمس الدین محمد سره معزول سول.

په ماوراء النهر او سمرقند طاعون ګډ سو. او میرزا محمد جوکي د هرات د حصار اختیار الدین په محبس کي وواژه سو، او د ګوهر شاد په هدیره کي ښخ سو.

د هرات خطاط محمد بن محمد بقال مصور البم په هرات کي وکیښ (استانبول نمبر ۱۲۹٦).

**١٤٦٤م ٨٦٩ق**

د ارس د پادشاه دریم ایوان (١٤١٢-١٥٠٥م) ایلچي د هرات د سلطان ابو سعید دربار ته راغئ.

مولانا شریف الدین عبدالقهار د معقول او منقول جامع عالم په هرات کي وفات سو (٢٠ رجب).

**١٤٦٥م ٨٧٠ق**

د هزاره آقا اولس چه یاغي سوی وو، سلطان ابو سعید پر دوی ورغئ خو بیا د شیخ الاسلام نور الدین محمد په شفاعت وبخښل سوه، او د څو کالو مالیات ځني واخستل سوه، او مولانا شمس الدین علی د نصیحت لپاره ور ولیږل سو، او امیر نظام الدین احمد د مالیاتو اخیستنی لپاره.

په همدغه کال سلطان ابو سعید ناروغه سو، او د دربار طبیبانو مولانا قطب الدین محمد نفیسي او مولانا اصیل الدین حسین تونی ئې علاج وکئ.

**١٤٦٥م ٨٧٠ق**

د یوسفزو او نورو پښتنو قومو یون له قندهاره د کابل او ننګرهار له خوا د پېښور او سوات سیمو ته د دوي مشران مداد، مدو، شیخ عثمان، سلطان شاه و چي په کابل کي میرزا الغ بیګ مړه کړه.

سلطان ابو سعید خپل زوی میرزا الغ بیګ د کابل او غزنی او د افغان د سیمو تر اباسین پوري حکمران مقرر کئ، او امیر ویس اتکه د الغ بیګ وزیر د کابل د ویسل آباد واله وکښله.

**١٤٦٦م ٨٧١ق**

شیخ صدر الدین محمد رواسي په هرات کي وفات سو (١٠ رمضان) او جنازه ئې جوین ته واستوله سوه.

دغسي هم مولانا جلال الدین لطف الله د بخارا قاضي په هرات کي مړ سو (٢٠ ذیحجه) او جبازه ئې بخارا ته یووړه سوه.

**١٤٦٧م ٨٧٢ق**

ځکه چي میرزا جهان شاه د آذربایجان پاچا د امیر حسن بیګ په جنګ کي مړ سو او هلته فساد وسو، نو سلطان ابو سعید په مرو کي د خواجه ناصر الدین عبیدالله سره مشوره وکړه او د طوس له لاري پر آذربایجان او عراق ورغئ، او میرزا سلطان خلیل خپل زوی ئې په هرات کي او بل زوی سلطان مراد ئې په ګرمسیر او قندهار کي مقرر کړل.

**١٤٦٧-١٤٦٩م ٨٧٢-٨٧٤ق**

حیدر شاه حاجي خان بن زین العابدین سواتي د کشمیر پاچا و.

**١٤٦٨م ٨٧٣ق**

سلطان ابو سعید د هرات لوی پاچا داران د قراباغ په جنګ کي د اوزون حسن په لاس کي ګرفتار سو (١٦ رجب) او وروسته په ٢٢ رجب د اردبیل په شاو خوا کي وواژه سو.

که څه هم په هرات کي میرزا سلطان محمود د ابو سعید زوی په ٣ شعبان پاچا سو، خو میرزا ابو الغازي سلطان حسین بایقرا هرات ونیوئ، او په جمعه ١٠ رمضان ٢٥ مارچ په باغ زاغان کي پر تخت کښېنوست، او مولانا

قطب الدین طاووس سمناني ئې په صدارت مقرر کړ.

سلطان حسین په هرات کې باغ جهان آرای جوړ کړ.

سلطان حسین بایقرا د خراسان او سیستان ښارونه ونیول، او پر خپله سکه تنګه باندي ئې عدل او بهبود وکښل (ذیحجه).

امیر علی شیر نوایي د هرات د سلطان حسین دربار ته راغئ (رمضان-اپریل ۱٤٦٩).

د میرزا الغ بیګ لښکرو ټولي افغاني سیمي ونیولې، او تر ملتانه پر مخ ولاړل.

**۱٤٦٨-۱٥۰٥م ۸۷۳-۹۱۱ق**

د سلطان حسین بن غیاث الدین منصور بن بایقرا بن عمر شیخ بن تیمور سلطنت له هراته.

**۱٤٦۸-۱٥۰۰م ۸۷۳-۹۰٦ق**

سلطان غیاث شاه د محمو شاه خلجی زوی د هند په مالوه کي پاچا و.

**۱٤٦۸م ۸۷۳ق**

دستور اعظم خواجه قطب الدین طاؤوس سمناني په هرات کي "جوي سلطاني" وکښله او اوبه ئې له څلورو فرسخو څخه کوه مختار ته راوستې، او د هرات شمالي دښت ئې تر ګازرګاه پوري زرغون کړ.

**۱٤٦۸م ۸۷۳ق حدود**

د مهمندو او یوسفزو جنګ په ننګرهار کي او د یوسفزو لیږد د اشنغر سیمو ته او د لازاکو او شلمانو شړل او تر باجوړه مځکي نیول، د ملک احمد بن سلطان شاه او شیخ ملی آدم بن یوسف په مشرى.

**۱٤٦۹م ۸۷٤ق**

په ۱٤ محرم د سلطان حسین مور فیروزه بیګم د امیر تیمور د لور له خوا لمسئ په هرات کي مړه سوه، او مولانا قطب الدین خوافي صدر اعظم ۱٥۰ زره دیناره جریمه او بیرته صدر پاته سو.

سلطان حسین میرزا خراسان ته د میرزا یادګار مقابلې ته ولاړ، او په چناران کي ئې مات کړ او بیرته هرات ته راغئ (۳ جمادی الاخری).

د هرات د خانقاه شاهرخیه مشر عبدالرزاق بن اسحاق سمرقندی و (د مطلع سعدین لیکوال).

د مولانا درویش احمد هروی وفات او ښخیدل د ګازرګاه سره.

**۱٤٦۹-۱٤۸۱م ۸۷٤-۸۸٦ق**

حسین شاه د حیدر شاه سواتی زوی د کشمیر پاچا و.

**۱٤۷۰م ۸۷٥ق**

د شمس الدین محمد تباد کاني خراساني محدث د ژوند وخت.

د هرات خلکو د ډیرو مالیاتو پر خلاف قیام وکړ، خو امیر علی شیر نوائي دغه مالیات لغو کړل او خلک ئې آرام کړل.

څکه چي سلطان حسین میرزا په مرغاب کي بوخت و، نو میرزا یادګار محمد بن سلطان محمد هرات ونیو او په باغ زاغان کي پادشاه سو، (دو شنبه ۹ محرم) مګر سلطان حسین له فاریابه راغی او یادګار میرزا ئې په باغ زاغان کي ونیو او مړ ئې کړ. (چهار شنبه ۱۷ سفر).

وروسته خواجه قوام الدین نظام الملک بن اسماعیل خوافي په وزارت مقرر سو.

مولانا حسین واعظ کاشفي هروی د مولانا جلال الدین بلخی د مثنوی لب لباب وکیښ.

عبدالرزاق سمرقندي د مطلع سعدین دوهم ټوک تمام کئ (پنجشنبه ۱۷ محرم).

**۱٤۷۰م ۸۷۵ق**

د علی بن محمد بن مسعود بسطامی هروي (مصنفک) د هرات د مشهور مؤلف او فقیه او عالم وفات په هرات کي. دی د امام فخر رازی له پښته و (ولادت ۸۰۳ق).

**۱٤۷۲م ۸۷٦ق**

علی شیر نوایي د هرات د اعلی دیوان امیر سو.

**۱٤۷۳م ۸۷۸ق**

د شیخ نورالدین محمد جغاره ئی وفات او د هرات په خیابان کي ښخیدل (جمعه ۲۳ رمضان).

نوایي له وزارته استعفا وکړه خو و نه منل سو.

د هرات قاضي قطب الدین احمد امامي وفات سو (۱ شوال).

**۱٤۷۵م ۸۸۰ق**

د مولانا اظهر مشهور هروی خطاط وفات په هرات کي.

نوایي په هرات کي مدرسه او خانقاه اخلاصیه د جوي انجیل پر غاړه جوړ کړل.

شیخ مولی ادم بن یوسف د پښتنو د خرښبون سړه بنی ښخه خپل کتاب د شیخ مولی دفتر په پښتو وکیښ او د پیښبور په سیمو کي ئې تر سواته د مځکو د ویش او اجتماعی ګډ ژوند لاری چاری پکښې وښووې.

دغه د ژوندانه ګډ اصول د ۱۸٦۹م تر بند و بست پوری په پښتنو کي جاری وو، خو انګریزانو هغه په شخصي ملکیت واړول.

د سلطان ابو سعید له خوا په قندهار او ګرمسیر کي د ده زوی سلطان مراد حکمران و.

مولانا عبدالله طباخ هروي خطاط په هرات کي مړ سو.

**۱٤۷۷م ۸۸۲ق**

د امیر غیاث الدین منصور پر قبر په هرات کي د سلطان علی مشهدی په نستعلیق خط یو ډبر لیک وکښل سو.

په هرات کي د خمسی یوه مصوره نسخه وکښله سوه چي د هرات او سمرقند د حکمرانانو تصاویر لري (استانبول ۱۹۵). محمد بن محمد بقال هروي نقاش او خطاط د عجائب المخلوقات ۱۸۹ تصویرونه په هرات کي وکښل (استانبول ٤۱۰).

**۱٤۷۸م ۸۸۳ق**

مولانا جامي هروي نفحات الانس وکیښ.

امیر سید اصیل الدین عبدالله حسیني هروي مفسر او محدث او مؤلف د مزارات هرات لیکوال په هرات کي وفات سو (۱۷ جمادی الاخری)

سیف الدین جامي خپل کتاب آثار الوزراء تالیف کئ چي د وزیرانو تاریخ دئ.

**۱۴۸۰م ۸۸٤ق**

د مولانا جامي هروي لومړی دیوان فاتحه الشباب مرتب سو.

میرزا ابوبکر د سلطان ابو سعید زوی په بدخشان کي اقتدار وموند.

**۱۴۸۰م ۸۸۵ق**

مولانا جامي هروي شواهد لنبوه تالیف کئ اوه رکنه او یوه خاتمه.

درویش علی په بلخ کي یاغي سو او امیر علی شیر ئې ایلولو ته ولاړ.

ملک شمس الدین محمد بن یحیي په نیمروز کي حکمران او ملک نظام الدین یحیي مړ سو.

د شمس الدین محمد امین زیار تگاهي هروي وفات.

**۱۴۸۱م ۸۸٦ق**

د مولانا جامي تحفة الاحرار منظوم سو.

د سلطان حسین بایقرا لخوا د سلطان بایزید کتابخانې ته د سلیمان ساوجي مصور دیوان چي ۱۱ تصویره لري د نعیم الدین کاتب په خط په هرات کي ترتیب او اهداء سو (استانبول نمبر ۳۵٦۳).

مولانا عبدالرحمن جامي هروي اشعة اللمعت وکیښ چي د فخرالدین ابراهیم عراقي د لمعات شرح ده.

**۱۴۸۱-۱۴۸۳م ۸۸٦-۸۸۸ق**

محمد شاه بن حسین شاه سواتي د کشمیر پادشاه و.

میر علی شیر نوایي د هرات لوی وزیر خپل دیوان خزاین المعاني د سلطان حسین بایقرا په خواهش په ازبکی ژبه تکمیل او ترتیب کئ.

**۱۴۸۲م ۸۸۷ق**

د مطلع سعدین مؤلف عبدالرزاق سمرقندي چه مؤرخ، عالم، سیاسي، دیواني سړی و وفات سو (جمادي الاخري).

**۱۴۸۳م ۸۸۸ق**

مولانا جامي د یوسف او زلیخا قصه نظم کړه.

خواجه عبدالقادر گوینده د هرات د موسیقي استاد په طاعون کي وفات سو.

عطاء الله جمال الدین د هرات مشهور واعظ د حضرت محمد (صلعم) پر ژوندانه باندي روضة الاحباب وکیښ، چي په ۹۰۰ ق تمام سوی دئ.

د شیخ کمال الدین حسن وفات او ښخیدل په هرات کي.

امیر علی شیر نوایي خپل حیرة الابرار مثنوي په ازبکی ژبه منظوم کئ.

د بابر شاه بن عمر شیخ ولادت په فرغانه کي د قتلق نگار خانم له نسه (٦ محرم مساوي ۱٤ فروري).

**۱۴۸٤م ۸۸۹ق**

د خواجه زرق الله دهلوي متشاقي د لودیانو د تاریخ د لیکوال د ژوند وخت.

امیر علی شیر نوایي خپل لیلي و مجنون په ازبکي ژبه منظوم کئ.

دغسی هم د ده فرهاد او شیرین او سبعهٔ سیاره په دغه کال منظوم سول.

**۱۴۸۵م ۸۹۰ق**

د مولانا جامي سلسلة الذهب د سلطان حسین بایقرا په نامه په هرات کې منظوم سو.

امیر علی شیر نوایي په ازبکي ژبه خپل سد اسکندری منظوم کئ.

زین الدین محمود واصفي هروي شاعر او لیکوال د بدایع الوقایع مؤلف په هرات کې وزیږیدئ.

پښتو شاعر خلیل خان نیازی د ژوند وخت په هند کې.

اسماعیل بن عیسی بن دولت افغاني اختیار اعتماد المسانید فی اختصار اسماء الرجال الاسانید په حجاز کې تالیف کئ (جمادی الاخري) د ده وفات په مکه کې ۸۹۲ق.

عجائب المخلوقات په فارسی ترجمه سو. دا کتاب په عربی د زکریا بن محمد قزوني تالیف دئ.

**۱۴۸۶م ۸۹۱ق**

مولانا حسین کاشفی هروي د حاتم طایي قصه وکښله.

امیر علی شیر نوایي په نشاپور کې د شیخ فریدالدین عطار په هدیره گنبده جوړه کړه.

د قاضي نورالدین محمد امامی هروي وفات (۲۰ جمادی الاخري).

د مولانا شمس الدین محمد بن محمد تباد کاني د منازل السائرین د شارخ وفات او ښخیدل د هرات په خیابان کې.

**۱۴۸۷م ۸۹۲ق**

دولت شاه بن بختی شاه سمرقندی خپله تذکرة الشعراء د امیر علی شیر نوایي په نامه تالیف کړه.

امیر علی شیر نوایي د استر آباد حکمران سو.

د مولانا علاء الدین محمد بن مومن ابیزی هروي وفات او ښخیدل په هرات کې.

مولانا عبدالرحمن جامي د خپل تفسیر لومړی ټوک وکیښ (دا کتاب ورک دئ).

د شرف الدین اسماعیل بن عیسی بن دولت اوغاني فقیه او محدث او د اختیار اعتماد المسانید د مؤلف وفات په مکه کې.

مولانا جامي هروي خپل بهارستان وکیښ.

**۱۴۸۷م ۸۹۳ق**

جمال الدین محمد بن حسام هروي د خاور نامې ناظم په خوسف کې وفات سو.

مولانا محمد معین طبیب د هرات د دارالشفا او د دربار سر طبیب وفات سو.

**۱۴۸۹م ۸۹۴ق**

د مولانا عبدالرحمن جامي دوهم دیوان واسطة العقد مرتب سو.

د شاه طیب خوافي شیخ وفات او ښخیدل په هرات کې.

**۱۴۸۸-۱۵۰۹م ۸۹۴-۹۱۵ق**

د سلطان سکندر بن سلطان بهلول لودي پښتون سلطنت په هند کې.

**۱۴۹۱م ۸۹۶ق**

امیر علی شیر نوایي د هرات مشهور وزیر د مجالس النفایس تذکرۀ شعرا تالیف کړه اته دفتره.

خواجه ناصر الدين عبيد الله احرار مشهور نقشبندي شيخ په سمرقند کي وفات او ښخ سو.

محمد حسيني په هرات کي د استانبول نمبر ۸۵۷ نسخه وکښله چي ۲۱ میناتوره لري.

د مولانا محمد جامي (د عبدالرحمن جامي د ورور) وفات او ښخيدل په هرات کي.

د حافظ غياث محدث وفات.

د حافظ معين الدين خليفه د هرات د صدر وفات.

مير محمود خوشمردان سبزواري خطاط د خوش نويسئ رساله وکښله.

مولانا عبدالرحمن جامي د ابن حاجب پر کافيه خپله مشهوره شرحه الفوائد الضيائيه وکښله چي د عربي نحو مشهور درسي کتاب دئ (شرح ملا).

**۱۴۹۱-۱۴۹۳م ۸۹۷-۸۹۹ق**

معين الدين محمد زمچي اسفزاري مؤرخ خپل تاريخي کتاب روضات الجنات في اوصاف مدينة هرات د سلطان حسين بايقرا په نامه په هرات کي تاليف کئ.

سلطان على مشهدي د سلطان حسين بايقرا ديوان په ٤ میناتورو مزين وکيښ (استانبول ۱٦٣٦).

**۱٤۱٤-۱٤۹۲م ۸۱۷-۸۹۸ق**

د مولانا عبدالرحمن بن احمد بن محمد جامي هروي مشهور عالم او شاعر او مؤلف د ژوند دوره په هرات کي ښخ دئ (ولادت ۲۳ شعبان ۸۱۷ق ۷ نومبر ۱٤۱٤م په جلم کي. (وفات جمعه ۱۸ محرم ۸۹۸ق ۹ نومبر ۱٤۹۲م په هرات کي).

سيد شمس الدين اندجاني د هرات صدر او شاعر وفات سو ۸۹۸ق.

محمود دقيقي هروي خطاط د ذخيرة الملوک نسخه په هرات کي په نستعليق وکښله ۸۹۸ق (د هرات موزيم).

**۱٤۹۳م ۸۹۹ق**

ظهير الدين محمد بابر د عمر شيخ ميرزا زوی د ابو سعيد کورگان لمسی د فرغانې په انجان کي ۱۲ کلن پر تخت کښينوست (۵ رمضان ۱۰ جون).

خواجه کمال الدين حسين ابيوردي د هرات لوی امير وفات سو (رمضان).

د هرات خطاط احمد شيرازي په هرات کي يوه مجموعة خمستين او هفت اورنگ جامي وکښله، چي میناتور او نقاشي ئې د بهزاد د مکتب ياد سلطان محمد ده (د کابل خطي کتابخانه).

**۱٤۹٤م ۹۰۰ق**

سلطان محمود مرزا د سلطان ابو سعيد زوی په ماوراء النهر کي و، چي د ده زوی خان ميرزا د بابر له خوا د بدخشان حکمران ؤ، او بيا ئې زوی سليمان ميرزا او لمسی ابراهيم ميرزا پر بدخشان حکمراني کوله.

سلطان على مشهدي په هرات کي يوه نسخه وکښله چي ۳٤ میناتوره لري (استانموبل ۷٦۷).

يوه خمسهٔ نظامي د على شير نوايي لپاره دغه خطاط وکښله چي د خطاطئ او تزئين

شهکار ده.

د بلخ دننه مسجد د سلطان حسين بايقرا په حکم په ۸۰ زره ديناره جوړ سو.

قاضي نظام الدين محمد گازر گاهي د حاجي محمد فراهي زوی د هرات لوی قاضي او عالم په گازرگاه کي ښخ سو (محرم).

د هرات د سلطاني مدرسې د مدرس مولانا شمس الدين محمد اسفزاري وفات (جمادی الاخری).

د ابو الحسن علی بن زکريا نشاپوری مؤرخ د تاريخ الرجان د مؤلف د ژوند وخت.

خواجه قطب الدين طاوس سمناني د هرات لوی امير ۷۰ کلن وفات سو.

ملا حسين واعظ کاشفي په هرات کي اخلاق محسني د سلطان حسين بايقرا په نامه وکيښ.

بابو خان کاکړ په ږوب کي تذکرهٔ غرغښت په پښتو تاليف کړه.

**۱٤۹٤م ۹۰۰ق حدود**

د بايزيد پوراني هروي عالم او شاعر او خطاط د ژوند وخت په هرات او بخارا او سند کي.

د مولانا حاجي محمد هروي نقاش او کتابدار د ژوند وخت.

د قاسم علی چهره کشاي هروي نقاش او د بهزاد د شاگرد د ژوند وخت.

استاد محمدی د سلطان محمد هروي زوی د هرات مشهور نقاش او د بهزاد شاگرد په هرات کي و.

مولانا محمود هروي مذهب او نقاش د امير علی شير نوايي سره و.

مولانا نظام الدين احمد جيلاني مشهور منجم او رمال له گيلانه هرات ته راغئ او دلې مقيم سو.

خواجه عبدالله مرواريد د هرات لوی منشي او خطاط يو قرآن په اعلی ثلث خط په هرات کي وکيښ (مشهد رضوی).

د قاسم علی هروي په خط او نقاشي يوه خمسهٔ نظامي (لندن موزيم نمبر ٦۸۱۰) په هرات کي د امير علی شير لپاره وکښله سوه، چي تر بايسنقری شاهنامې وروسته بهترينه نسخه ده.

د بلخ د شيخ الاسلام نظام الدين عبدالهادی بن خواجه ابو نصر ثاني د ژوند وخت. دی د خواجه محمد پارسا له پښته و، او په بلخ کي د خپل نيکه سره ښخ سو.

د ابو حفص عمر بن محمد غزنوی عالم د ژوند وخت.

کجو خان راني زی د يوسفزو حکمران په شيخ تپور کي غورياخيل او په لنگر کوټ کي دلازاک مات کړل او د شيخ ملی دفتر يې تکميل او ترميم کئ.

**۱٤۹۵م ۹۰۱ق**

ميرک جلال الدين قاسم د هرات صدر ۵۹ کلن وفات او په بلخ کي ښخ سو.

خان جهان خان لودي د هند امير د مرآة الافاغنه د تاريخ مؤلف په هند کي وفات سو.

خان علی کاتب په هرات کي د گيلان د حکمران لپاره مصور البم ترتيب کئ (استانبول

۱٤۹۱).

مولانا شمس الدين محمد د شرف الدين عثمان زوی د هرات د مدرسهٔ اخلاصيه مدرس او عالم وفات سو (ربيع الاول).

**۱٤۹٦م ۹۰۲ق**

د فيض الله بن زين العابدين بنياني ملک القضاة او د صدر جهان لوی مؤلف د ژوند وخت په هند کي.

د شاهرخ د مدرسې لوی مدرس مولانا برهان الدين عطاء الله رازي په هرات کي مړ سو (رمضان).

**۱٤۹۷م ۹۰۳ق**

بابر سمرقند ونيوئ (د ربيع الاول اواخر= نوامبر) او د ده په غياب کي ئې ورور جهانگير ميرزا اندجان ونيو.

صدر جهان ملک القضاة فيض الله بنياني مجمع النوادر په هند کي وکيښ.

مير خواند محمد هروي مؤرخ د روضة الصفا مؤلف په هرات کي ٦٦ کلن وفات سو (۲ ذيقعده) او د شيخ بهاء الدين جغاره يي په هديره کي ښخ دئ.

زرغونې د ملا دين محمد کاکړ لور د قندهار به پنجوائي کي د سعدی بوستان په پښتو منظوم کئ، دا خطاطه هم وه.

**۱٤۹۷-۱٤۹۹م ۹۰۳ تر ۹۰۵ق**

امير علی سير نوايي د هرات لو جامع ترميم کړه.

**۱٤۹۸م ۹۰٤ق**

بابر له خپله وروره جهانگير ميرزا څخه بيا اندجان ونيو (ذي قعده = جون).

خواجه شمس الدين محمد مرواريد د سلطان ابو سعيد وزير او د خواجه عبدالله انصاری د موقوفاتو متولي په هرات کي وفات او ښخ سو.

مولانا محمد نقاش هروي د امير علی شير کتابدار د بديع الزمان ميرزا کتابدار سو.

خواجه کلان محمد اکبر د مولانا سعدالدين کاشغری زوی په هرات کي وفات سو (پنجشنبه ۱۲ جمادی الاخری).

مولانا قطب الدين محمد آدم د هرات طبيب وفات سو (محرم).

مولانا شمس الدين محمد زوجی د هرات زاهد او عالم وفات سو (شنبه ۱٦ رمضان).

مولانا مير حسين معمائي وفات او د هرات په اخلاصيه مدرسه کي ښخ سو.

**۱٤۹۹م ۹۰۵ق**

خواند مير هروي مؤرخ خلاصة الاخبار وکيښ.

امير جلال الدين ويسل اتکه د امير محمد مغول زوی په کابل کي مړ سو (جمعه ۵ شعبان) د بالا حصار غربي خوا ته ښخ دئ.

**۱٤۹۹-۱۵۱۰م ۹۰۵-۹۱٦ق**

د شيباني خان د ابراهيم زوی (د جوجي بن چنگيز خان له پښته) سلطنت پر ماوراء النهر او شمالي او غربي افغانستان تر قندهاره.

**۱۵۰۰م ۹۰۵ق**

بابر عايشه بيگم د سلطان احمد ميرزا لور وکړه.

ميرزا حيدر کورگان د تاريخ رشيدی مؤلف وزيږيدئ.

مولانا شمس الدين محمد پاي گنبد د هرات عالم وفات سو.

مولانا کمال الدين مسعود شرواني د هرات د گوهر شاد د مدرسې لوی مدرس او عالم وفات سو.

د هرات طبيب مولانا مسيح الدين حبيب الله او مولانا حسن شاه شاعر مړه سول.

**۱۵۰۰م ۹۰۶ق**

امير شير محمد گوکلتاش د امير ويسل اتکه زوی په کابل کي مړ او ښخ سو (پنجشنبه ذی قعده)، سمرقند شيبانی خان ونيو او بابر له اندجانه پر ده حمله وکړه او بخارا ته ئې وتښتاوه.

خواجه خورد محمد اصغر د سعد الدين کاشغری زوی په زمينداور کي وفات او په هرات کي ښخ سو.

حکيم يوسفي هروي په هرات کي د ماکول او مشروب رساله وکښله.

**۱۵۰۱م ۹۰۶ق**

امير علی شير نوايي د هرات لوی او علم پرور او شاعر وزير وفات او په هرات کي ښخ سو (۱۲ جمادی الاخری، ۳ جنوری).

**۱۵۰۱م ۹۰۷ق**

ميرزا الغ بيگ د سلطان ابو سعيد زوی چي له ۸٦۵ق څخه د کابل او غزنی حکمران ؤ په غزنی کي مړ او ښخ سو او د ده کوچنی زوی ميرزا عبدالرزاق ئې پر ځاي کښينوست.

مولانا حسين واعظ کاشفي په هرات کي مخزن الانشاء تاليف کئ (د کابل خطي نسخه ده په خط).

فيض الله بن زين العابدين ملک القضاة صدر جهان قاضي حسام صدر بنياني د تاريخ محمود شاهي او مجمع النوادر او تفسير معظم او دستور الحفاظ او خلاصة الحکايات مؤلف خپل کتاب تاريخ محمود شاهي وکيښ.

مولانا معين الدين واعظ د معارج النبوة مؤلف او شاعر د حاجي محمد فراهي زوی په هرات کي وفات او په گازرگاه کي ښخ سو.

د مولانا سلطان محمود هروي خطاط د ژوند وخت.

**۱۵۰۲م ۹۰۸ق**

مجالس العشاق د سلطان حسين بايقرا په نامه تاليف سو (؟). بابر وايي چي د دې کتاب مؤلف کمال الدين حسين گازر گاهي دی.

شيخ صوفي علی هروي زاهد او متقی د هرات په سر خيابان کي ښخ سو.

**۱۵۰۳م ۹۰۸ق**

بابر په ماوراء النهر کي مات سو او شيباني خان د شاه بداق سلطان زوی تاشکند ونيو (جون).

محمد مقيم د امير ذوالنون ارغون زوی د قندهار حکمران کابل له ميرزا عبدالرزاق څخه ونيو او د ميرزا الغ بيگ لور ئې وکړه.

**۱۵۰٤م ۹۰۹ق**

د بابر آواره گي د ماوراء النهر په دښتو او کوچيانو کي.

بابر پر ترمذ تر آمو راواوښت او د بدخشان

او تخارستان خسرو شاه ته په قندوز کي راغئ او اته زره د خسرو شاه لښکر يې ولمسول او خسرو شاه ميمنې ته وتښتيد.

علی د حسين کاشفي زوی رشحت عين الحيات په هرات کي وکيښ.

د مولانا معين الدين فراهي د هرات قاضی او عالم د معارج النبوه د مؤلف وفات او د هرات په گازرگاه کي ښخيدل.

د مولانا عبدالرحمن کاردگر هروي عالم وفات او په زيارتگاه کي ښخيدل.

مجنون رفيقي د هرات خطاط خپله د خط رساله تاليف کړه.

**١٥٠٤م ٩١٠ق**

بابر د هندوکش شمالي خواوي ونيولې (محرم، جون) او د لومړئ خور په منځ کي دوشي ته راغئ.

دوستی بدخشی د فارسي ديوان خاوند شاعر په بدخشان کي وزيږيدئ.

بابر تر هندوکش را تير سو او د هوپيان له لاري ئې محمد مقيم په کابل کي کلابند کئ (د ربيع الاول اواخر) او د ربيع الاخر په پاي کي محمد مقيم قندهار ته ولاړ، او بابر کابل ونيوئ، د کابل او لغمان ماليات اته لکه شاهرخئ وې.

**١٥٠٤-١٥٣٠م ٩١٠-٩٣٧ق**

پر افغانستان باندي د ظهير الدين محمد بابر د اقتدار دوره.

**١٥٠٤م ٩١٠ق**

بابر پاجا په کابل کي (خط بابری) اختراع کئ.

سلطان ويس سواتي او سلطان علاء الدين سواتي د سوات مشران د بابر معاصر حکمرانان وو.

طاوس خان يوسفزی د سمي د يوسفزو مشر و، چي له بابر سره ئې د روغي روابط درلودل.

شاه منصور د ملک سليمانشاه زوی د سمي د يوسفزو مشر و، چي خپله لور بي بي مبارکه ئې بابر ته ورکړه.

مولانا حسين واعظ کاشفي د هرات مشهور مؤلف او عالم او مفسر وفات او د هرات په خيابان کي ښخ سو، دی د مواهب عليه او تفسير جواهر او انوار سهيلي او نورو ډيرو کتابو مؤلف دئ.

د قاضي اختيار الدين حسين هروي تعليق نويس او قاضي القضات د ژوند وخت.

د ساغر هروي شاعر د ژوند وخت.

قاضي برهان الدين محمد هروي د هرات صدر وفات سو.

امير صدر الدين سلطان ابراهيم اميني د ميرک جلال الدين قاسم زوی د هرات صدر مقرر سو.

خواجه امين الدين محمود د هرات وزير وفات سو.

**١٥٠٦م ٩١١ق**

بابر غزني ونيوي او خپل ورور جهانگير مرزا يې هلته حاکم کئ. وروسته يې گرديز، کوهاټ، بنو، تهل، گومل تر کلاته او شرقي خوا تر خيبره ونيوله.

شیباني خان پر بلخ راغئ او سلطان حسین بایقرا د هرات پاچا سید افضل بابر ته راواستاوه او کومک ئې ځیني وغوښت.

په کابل او اطرافو کي ئې سختي زلزلې وسوې او ډېر ځایونه ئې وران کړل.

سلطان حسین بایقرا له هراته د شیباني خان مقابلې ته وووت، خو د بابا الهي به منزل کي ۷۰ کلن تر ۳۹ کاله سلطنت وروسته وفات او په هرات کي ښخ سو (۱۱ ذی حجه، ٤ مي).

مولانا عبدالجمیل د هرات عالم وفات سو.

**۱۵۰٦م ۹۱۲ق**

بابر د هزاره جات له لاري له کابله هرات ته ولاړ، او د مروچاق په گل باغان کي د هرات د تیموری شاهزادگانو سره یو ځاي سو (دو شنبه ٦ جمادي الاخری).

په کابل کي چي بابر نه و، نو د ده د اکا زوی خان میرزا د پاچهۍ دعوه وکړه او د کابل بالا حصار ئې کلا بند کئ.

صفوی لښکرو په هرات کي د مولانا جامی قبر وشانه او وئې سواځه.

بابر د هزاره جات له لاري په ډېر زحمت په ژمی له هراته کابل ته راغئ او دا ښار ئې بیرته له خان میرزا څخه ونیوئ (شوال).

د علی بن حسین بن علی بیهقی طبیب د ترویح الارواح د مؤلف د ژوند وخت.

مولانا عبدالغفور لاري د مولانا جامي شاگرد په هرات کي وفات او د مولانا جامي په هدیره کي ښخ سو (یکشنبه ٥ شعبان).

**۱۵۰۷م ۹۱۳ق**

شیباني خان اوزبک هرات ونیوئ او د تیموریانو پاچهي ختمه سوه.

بدیع الزمان میرزا او د ده ورور مظفر حسین له هراته ولاړل (۲۱ می) او خپل کتابونه ئې هم استانبول ته یووړل.

بابر قندهار ونیو او هغه ئې خپل ورور ناصر میرزا ته وسپاره. مگر شیباني راغئ او قندهار ئې ونیو او بیرته هرات ته ولاړ، او قندهار ئې محمد مقیم ارغون ته وسپاره.

بابر له کابله ولاړ او ننگرهار ئې تر کنړه ونیو، او هلته ئې میرزا عبدالرزاق حکمران کئ.

بابر پر غلجو او مهمندو افغانانو باندی حمله وکړه او سل زره پسونه ئې اولجه کړل، په کټه واز کي ډېر بندیان ووژل او کله منار ئې ځني جوړ کئ.

مولانا نورالدین محمد زیارتگاهي هروي عالم په قندهار کي وفات سو.

حکیم یوسفي هروي په طب کي فواید الاخیار منظوم کئ.

**۱۵۰۸م ۹۱٤ق**

بابر مومند چور کړل خو د ده په غیاب کي د کابل خلک یاغي سول او میرزا عبدالرزاق ئې پاچا کئ.

بابر خپل تخت د کابل د شیر دروازې غره په لمن کي جوړ کئ چي په ۱۰۱٦ق جهانگیر پسې بشپړ کئ.

د عماد الدین فضل الله بن علاءالدین بن علی طوسی د شرح لوایح جامي د لیکوال

وفات.

مولانا سلطان علی قايني د امير علی شير د کتابخانې خطاط او د سلطان بايقرا د زوی معلم په هرات کي وفات سو.

حکيم يوسفی هروي په هرات کي جامع الفوائد د علاج الامراض شرح تاليف کړه.

**۱۵۰۹م ۹۱۵ق**

بابر له ننگرهاره راغي او په کابل کي ئې ميرزا عبدالرزاق ونيوی او مړ ئې کئ چي په غزني کي د خپل پلار الغ بيگ د څنگه ښخ سو او کابل، غزني، ننگرهار د بابر لاس ته ورغلل.

زبير راعی په بدخشان کي د خلکو په کومک راولاړ سو او بابر خپل د اکا زوی خان ميرزا هلته واستاوه چه زبير راعی ئې مړ کئ.

سيد روح الله ميرک نقاش او خطاط او مذهب چي د هرات د ودانيو نوشتې د ده په خط وې په هرات کي وفات سو.

خواجه عبدالرحمن د خواجه کلان زوی د هرات قاضي او د گوهر شاد په مدرسه کي مدرس و.

**۱۵۰۹-۱۵۲۵م ۹۱۵-۹۳۲ق**

د سلطان ابراهم بن سلطان سکندر لودي سلطنت په هند کي.

**۱۵۱۰م ۹۱۶ق**

شيباني خان اوزبک په مرو کي د پارس د صفويانو سره جنگ وکئ چي لس زره اوزبک ووژل سول او شيباني خان هم په دغه جنگ کي وواژه سو (جمعه ۲۶ شعبان ۲ دسمبر).

مولانا شمس الدين بردعی چي د شاهرخ په عصر کي هرات ته راغلی او په گازرگاه کي په تدريس بخت و، له هراته آذربايجان ته ولاړ. له ده سره مولانا اسمعيل تبريزی هم له هراته ولاړ.

شاه اسماعيل صفوي هرات ونيوي.

امير غياث الدين محمد بن امير يوسف د هرات د سلطانيه مدرسې مدرس او لوی قاضي د امير خان په حکم ووژل سو او په هرات کي ښخ سو.

**۱۵۱۱م ۹۱۶ق**

بابر د قندوز له خوا تر آمو واوښت او د حصار ښار ئې محاصره کئ.

**۱۵۱۱م ۹۱۷ق**

بابر د خپلو ۶۰زره لښکرو په قوت د سمرقند ښار ونيو او ناصر ميرزا خپل ورور ئې د کابل په حکمرانی وټاکه (رجب، اکتوبر).

**۱۵۱۲م ۹۱۸ق**

عبيدالله خان اوزبک په سمرقند کي بابر مات کئ او دی ئې له ماوراء النهره راويوست (۳ رمضان ۱۲ نومبر) او دی د هندوکش شمالی خواوو ته ورغي.

خواجه عبدالطيف صوفي هروي د هرات په قريه فراشان کي وفات او ښخ سو.

د هرات مشهور امير سيد غياث الدين مشهدی وفات سو.

مولانا بنايي هروي نستعليق کښونکي د نجم ثاني د ماوراء النهر په کشتار کي ووژل سو.

د مولانا جمشيد کتابدار هروي خطاط وفات.

**۱۵۱۳م ۹۱۹ق**

مولانا سلطان علی مشهدي مشهور نستعليق ليکونکی په مشهد کي وفات سو.

مولانا فصيح الدين محمد نظامي د هرات د بديعيه مدرسې مدرس او مؤلف وفات سو.

امير برهان الدين عطاء الله د هرات عالم په مشهد کي مړ سو (شوال).

مولانا غياث الدين جمشيد قايني د هرات صدر په قاين کي وفات سو.

**۱۵۱٤م ۹۲۰ق**

بابر تر هندوکش را تير سو او کابل ته راغي.

قاضي حسن اختيار الدين د قاضي عياث الدين تربتي زوی د هرات مشهور قاضي مړ او په تربت کي ښخ سو.

قاضي بديع د قاضي اختيار الدين هروي زوی په هرات او بخارا کي ژوندی ؤ، دی د معقول او منقول عالم او شاعر او طبيب او د مختار الابرار مؤلف و.

خواجه جلال الدين ابو القاسم جامي د هرات معتبر سړی او خواجه ناصر الدين عبدالعزيز جامي د هرات عالم او متقي وفات سول.

مولانا مير کمال الدين حسين ابيوردی د هرات د دربار امير او عالم وفات سو.

مولانا نظام الدين عبدالقادر طبسی د هرات قاضي و.

د درويش عبدالله سلطاني بلخی خطاط وفات.

مير فاضل گوکلتاش د قندهار د بابا ولی (سيد حسن ابدال) پر قبر يوه شنخته وکښله (ربيع الثاني).

**۱۵۱۵م ۹۲۱ق**

شيخ جلال الدين ابو سعيد پورانی هروي په قندهار کي له بامه ولويد او مړ سو.

سيد نظام الدين سلطان علی موسوي هروي او خواجه نعمت الله آصفی هروي امير او شاعر وفات سول.

قاسم بن يوسف ابو نصري هروي ارشاد الزراعه تاليف کړ.

**۱۵۱٦م ۹۲۲ق**

محمد بدخشي د منطق عالم او د شرح الياس رومي د حاشيې د مؤلف وفات.

مولانا شهاب الدين عبدالله بياني بن خواجه محمد مرواريد د هرات خطاط او شاعر او صدر او د موسيقي پوهاند په هرات کي وفات سو (رجب).

**۱۵۱٦م ۹۲۳ق**

بابر له کابله ولاړ او قندهار ئې له شاه بيگ ارغونی څخه ونيوی او شاه بيگ د شال او سند خوا ته ولاړ.

يار محمد هروي خطاط په هرات کي د مخزن اسرار نسخه وکښله (استانبول ۱۳۰۹).

شيخ فصيح الدين محمد بن زين العابدين خوافي صوفي او زاهد وفات سو.

بديع الزمان ميرزا د سلطان حسين بايقرا زوی مړ سو.

**۱۵۱۸م ۹۲٤ق**

محمد بن يوسف هروي طبيب او لغوي جواهر اللغه تاليف کړ.

**۱۵۱۹م ۹۲۵ق**

بابر د جندول او باجوړ له خوا پر هند خپله لومړۍ لښکر کښښي وکړه په ۵ محرم ۸ جنوري ئې د باجوړ کلا ونيوله او خواجه کلان ئې هلته مقرر کړ.

د يوسفزو مشران شاه منصور د ملک سليمان شاه زوی او سلطان علاءالدين سواتي او طاووس خان بابر ته ايل سول.

بابر د شاه منصور يوسفزی لور بي بي مبارکه وکړه (جمعه ۲٦محرم) او د نيلاب له خوا پر پنجاب ورغی او بهيره ئې ونيوله (۵ ربيع الاول ۷ مارچ) او بيرته کابل ته راغی (د ربيع الاخر غره، ۱ اپريل).

د يوسفزو شپږ تنه مشران کابل ته راغلل او بابر ته ئې د هغی خوا ماليات ومنل (۱ جمادی الاخری، ۲۰ مي).

بابر د تيره کوتل له خوا د گرديز او کرماش (کورم) پر افغاناو باندی حمله وکړه (۲۹ رجب، ۲۷ جولائي) او د شعبان په دريمه (۳۱ جولائی) بيرته کابل ته راغي.

بابر د خيبر له خوا پر پيښور او اشنغر حمله وکړه (۱۳ رمضان، ۸ سپتمبر) لښکر ئې تر پنجابه دوهمه پلا پر مخ ولاړل او دئ بيرته کابل ته راغی (د شوال اواخر، ۲۰ اکتوبر).

سيد امير نظام الدين عبدالقادر د هرات سلطانيه مدرسې مدرس او د خراسان قاضي وفات سو.

**۱۵۱۹م ۹۲۵ق**

د هرات د نستعليق ليکونکی او معمايي مير علی هروي د ژوند وخت.

**۱۵۲۰م ۹۲٦ق**

بابر قندهار کلابند کړ خو په لښکر کي ناجوړي ولويده او بيرته کابل ته راغی (رجب، جون) او د دغه کال په پای کي بيې پر هند په خپل دريم يرغل لاس پوري کړ او د پنجاب تر سيند پوره ئې ونيول او سيالکوټ ئې هم فتح کړ.

سلطان الخطاطين سلطان علی مشهدي په هرات کي وفات او په مشهد کي ښخ سو (۱۰ ربيع الاول).

**۱۵۲۰م ۹۲۷ق**

خان ميرزا د بابر د اکا زوی د بدخشان حکمران مړ سو او پر ځای ئې د بابر له خوا شهزاده همايون د بدخشان حکمران سو.

مولانا هاتفي د مولانا جامي خوريی د هرات شاعر او د ظفر نامه تيموری ناظم په هرات کي وفات سو (محرم).

امير رضی الله عبدالاول د هرات د غياثيه او بديعيه مدرسو لوی مدرس او عالم وفات سو (ربيع الاخر).

د هرات قاضی ضياء الدين نور الله د قاضی درويش محمد زوی وفات او په گازرگاه کي ښخ سو.

د هرات د واعظ مولانا حسامي واعظ د ژوند وخت.

خواجه جمال الدين عطا الله د هرات وزير او عالم وفات سو (يکشنبه ۲ ربيع الاول).

مولانا شمس الدين محمد الحنفی د هرات د سلطانيه مدرسې مدرس و.

**۱۵۲۲م ۹۲۸ق**

بابر قندهار د شاه بيگ ارغون څخه ونيو او خپل زوی شهزاده کامران ئې هلته وگوماره (۱۳ شوال، ۱ سپتمبر).

استاد کمال الدين بهزاد د شاه اسماعيل صفوی په فرمان د کتابخانې مشر مقرر سو (۲۷ جمادی الولی).

شيخ زين الدين علی هرات ته راغي او د دې ځاي شيخ الاسلام او قاضي القضات مقرر سو.

شيخ نورالدين محمد د شيخ زين الدين خوافي له ښښته د هرات مشهور مدرس چي په ۹۲۶ ق کال له هراته کابل ته تللی او د بابر پادشاه په حضور کي و، په کابل کي وفات سو (جمادی الاخری).

د ملک علاء الدين علی بن ملک نظام الدين يحيي نيمروزي وفات.

**۱۵۲۲م ۹۲۹ق**

خواند مير هروي مؤرخ خپل مشهور کتاب حبيب السير وکيښ.

دوست محمد کاکړ د بابر خان زوی خپله غرغښت نامه په پښتو منظوم کړه.

**۱۵۲٤م ۹۳۰ق**

بابر خپل څلرم يرغل پر هند شروع کئ تر اباسين ور تير سو او تر سرهنده پوري ورسيدی.

عسکري ميرزا د بابر زوی د قندهار چهل زينې په جوړولو شرو وکړه او تر ۹۵۳ ق پوري يې کار ختم سو.

امير نظام الدين عبدالحی منشي د هرات تعليق نويس او د امير علی شير د مدرسې مدرس له هرات ولاړ او په استر اباد کي مدرس سو.

شيخ الحرم مولانا جلال الدين ابو سعيد مکي هروي په هرات کي وفات او په خيابان کي ښخ سو.

**۱۵۲٤م ۹۳۰ق حدود**

د مولانا محمود د ابراهيم کالواني زوی د تاريخ ابراهم شاهي د مؤلف د ژوند وخت.

رابعه د قندهار پښتو شاعره په دغه وخت کي ژوندئ وه.

د سلطان علی اوبهي هروي خطاط د ژوند وخت.

د قاضي نظام بدخشی او د ده د زوی مير حسام الدين قاضي خان د ژوند وخت. دوی د بابر د وخت قاضيان وو.

**۱۵۲۵م ۹۳۱ق**

بابر ټول پنجاب ونيوی او مير عبدالعزيز ئې د لاهور حکمران مقرر کئ او دولت خان لودی ئې هم مات کئ.

**۱۵۲۵م ۹۳۲ق**

بابر پر هند پخپل پنځم يرغل لاس پوری کئ او کامران ميرزا ئې د کابل او قندهار پر حکمراني پريښو پخپله د ۱۲ زرو لښکرو سره پر هند ورغی (۱ صفر، ۱۷ نومبر).

**١٥٢٦م ٩٣٢ق**

بابر د پاني پت په جنگ کي سلطان ابراهيم لودي وواژه او د هند سلطنت ئې ونيو (جمعه ٨ رجب، ٢١ اپريل).

بايزيد روښان د شيخ عبدالله زوی چي په (روښان پير) مشهور سو، د پنجاب په جالندهر کي د بيبن بنت محمد امين له نسه وزيږيدی.

ملک شاه محمود د ملک نظام الدين يحيی زوی د نيمروز حکمران مړ سو.

سلطان محمد خندان هروي خطاط وفات سو، ده د حافظ د ديوان يوه نسخه په نستعليق کښلې ده ربيع الاول ٩٢٦ق (د کابل د خطی نسخو کتابخانه).

شيخ زين الدين اسفر غابادي هروي صوفي د هرات په گازرگاه کي ښخ سو.

علی حسيني هروي خطاط د سعدي د بوستان نسخه په هرات کي وکښله (استانبول ١٤١٠).

د مولانا آگهي هروي شاعر وفات.

**١٥٢٦م ٩٣٣ق**

د سيد شير (سيد محمد) بن سيد حسين زنجيرپا وفات او ښخيدل د قندهار د سپيروان په سکيلچه کي (١٠ محرم).

**١٥٢٨م ٩٣٥ق**

مولانا زين الدين محمود د اماد هروي خطاط د سلطان علی مشهدي شاگرد مړ سو.

مولانا سلطان محمد بن مولانا نورالله (سلطان محمد نور) هروي خطاط په بخارا کي وفات سو.

**١٥٢٩م ٩٣٦ق**

د مولانا بدر الدين هلالي هروي شاعر وفات او ښخيدل په هرات کي (صفر) د شاه او درويش، صفات العاشقين، ليلي مجنون ناظم، ظهيرالدين محمد بابر شاه خپله بابر نامه (توزک بابری) تاليف کړه.

علی کاشفي هروي لطايف الطوايف وکيښ.

همايون د بلخ امير کمال الدين ونيو او د همايون او گستن قرا سلطان تر منځ جنگ وسو.

**١٥٣٠م ٩٣٧ق**

ظهير الدين محمد بابر په آگره کي وفات او د جمنا پر غاړه په چهار باغ کي ښخ سو (٦ جمادی الاولی، ٢٦ دسمبر).

د ده زوی نصير الدين همايون د هند پادشاه سو (٩ جمادی الاولی، ٢٩ دسمبر).

حکيم يوسفی هروي خپله قصيده حفظ الصحه د بابر پادشاه په نامه وکښله.

**١٥٣٠- ١٥٥٥م ٩٣٧-٩٦٣ق**

د نصير الدين محمد همايون د بابر شاه د زوی پاچهي.

**١٥٣٠م ٩٣٧ق**

شاه نظام الدين ابو اسحق بن شاه نظام الدين يحيی د نيمروز ملک وفات سو.

د بلخ د حمام سلطاني بنا د کستن قرا سلطان په امر تمامه سوه او د مسجد جامع لپاره وقف سو.

**١٥٣٣م ٩٤٠ق**

شاه حسين کامي اوبهي شاعر په اوبه کي ٧٧ کلن وفات سو.

**۱۵۳۳م ۹٤۰ق حدود**

فیروزه کابلی حنفي تخلص شاعر او د موسیقي پوهاند په کابل کي ژوندی و.

عیسی مشواڼي د پښتو شاعر د هند په دامله کي اوسیدي.

شیخ زین الدین خوافي (وفایي) د بابر سر منشی او د بابر نامې فارسی مترجم په آکره کي مړ سو.

د صادقی قندهاري شاعر ژوند په هند کي.

**۱۵۳٤م ۹٤۱ق**

ابراهیم بن قاسم بن محمد امین هروي د سلطان حسین بایقرا وزیر د تاریخ فتوحات شاهیه مؤلف وفات سو.

خواند میر هراتي مورخ او د حبیب السیر او خلاصة الخبار مؤلف په هند کي وفات سو.

امیر شمس الدین محمد بن شیر محمد بن امیر ویسل په کابل کي مړ او ښخ سو.

میر علی هروي خطاط د میر باقر ذوالکمالین زوی د مدار الخطوط مؤلف په بخارا کي مړ سو.

**۱۵۳۵م ۹٤۲ق**

په قندهار کي چي د شهزاده کامران له خوا خواجه کلان بیگ حکمران ؤ د صفوی لښکرو کلابند کئ خو میرزا کامران له لاهوره راغی او صفویان ئې له قندهاره وشړل (شعبان).

استاد کمال الدین بهزاد د هرات لوی نقاش په هرات کي وفات او هورې ښخ سو.

مولانا رستم علی هروي نقاش او مذهب او خطاط د بهزاد خوریي په هرات کي وفات سو.

حکیم یوسفی هروي دلایل النبض او دلایل البول په هند کي تالیف کړه.

**۱۵۳٦م ۹٤۳ق**

شاه طهماسپ صفوی قندهار ونیوي او مرزا بداغ خان ته ئې وسپاره خو میرزا کامران له لاهوره بیا راغی او قندهار ئې ونیوی.

د نوایي د اشعارو منتخبات میر علی بخاري د عبدالعزیز خان لپاره ولیکل چي د هراتي مذهب محمود په قلم ۸ میناتوره لري (د ترک د هنر موزیم ۱۹٤۷).

**۱۵۳۷م ۹٤٤ق**

میر معصوم نامي قندهاری ثم بکهری په بکهر کي وزیږیدی (دو شنبه ۷ رمضان). دی د سید صفایي قندهاری زوی او د بابا ولی لمسی دئ.

**۱۵۳۹م ۹٤٦ق**

کستن قرا سلطان د بلخ حکمران د هندوان نوې کلا جوړه کړه، دغه وخت د بلخ ودانی شرقاً و غرباً له خواجه پلاس پوش څخه تر چهار باغ گلشن پوری یو فرسنگ، او شمالاً جنوباً له خواجه سنگ لیس څخه دستي تر کلی پوری هم یو فرسنگ وه.

مولانا سید په بلخ کي ژوندی و.

محمد زمان میرزا د بدیع الزمان میرزا زوی مړ سو.

حکیم یوسفي هروي د محمد زوی مشهور طبیب او ادیب او مؤلف ریاض النشاء په هند کي وکیښی.

د ده نور تالیفونه: جامع الفواید، بدایع

الانشاء، طب یوسفی، سته ضروریه وغیره.

برهان مروي کاتب او خطاط د لوایح جامی یوه نسخه وکښله (د کابل د خطی نسخو کتابخانه).

جهانگیر هاشمي هراتي شاعر د مظهر الاثار او تحفة الحبیب مؤلف د حجاز په لار کي مړ سو.

**۱۵۳۹-۱۵۵۵م ۹۴۶-۹۶۳ق**

د سوری پښتنو پاچهی په هند کي.

**۱۵۴۰م ۹۴۷ق**

همایون پاچا په هند کي د شیر شاه سوری لښکرو مات کئ او د سند له لاري ایران ته وتښتیدی (۱ رجب).

په دې وخت کي د کابل او قندهار پادشاه میرزا کامران د بابر زوی و.

د بابر پاچا تابوت بي بي مبارکي یوسفزۍ د ده مایني له آگرې ښخه کابل ته راوی او دلته ئې د بابر په باغ کي ښخ کئ.

حسین بن علی بن حسین کاشفي هروي اخلاق محسني په ترکي د انیس العارفین په نامه ترجمه کئ.

محمود مذهب د نظام هروي زوی د هاتفي تیمور نامه په بخارا کي وکښله (ذی قعده، استانبول ۱۵٤).

**۱۵٤۱م ۹٤۸ق**

په اندراب کي د میرزا کامران او سلیمان میرزا جنگ وسو او د کامران میرزا لښکرو د بدخشان مرکز قلعه ظفر ونیو (۱۷ جمادي الاخری).

محمد حیدر گورکان د تاریخ رشیدی مؤلف کشمیر ونیوی (۸ رجب).

**۱۵٤۲م ۹٤۹ق**

شهزاده جلال الدین محمد اکبر د همایون زوی د سند په امر کوټ کي د حمیده بانو بیگم له نسه وزیږیدی (یکشنبه ۵ رجب).

بایزید پیر روښان مشهور او غښتلي سو.

**۱۵٤۲-۱۵۸۰م ۹٤۹-۹۸۸ق**

د بایزید پیر روښان ولد عبدالله د ملي نهضت دوره په افغانستان کي.

**۱۵٤۳م ۹۵۰ق**

همایون پاچا له سنده د گرمسیر پر لار سیستان ته وتښتیدی (شوال) او د هرات له لاری ایران ته ولاړ (ذی قعده).

د بلخ حکمران گستن قرا سلطان لیونی سو، او د بلخ علماء مولانا حسین او مولانا عبدالرحمن ئې پوست کړه.

د خواجه زاده رحیمی کابلی شاعر وفات.

د بیخودی بلخی شاعر د ژوند وخت.

قدری سبزواری شاعر په هرات کي ژوندی و.

**۱۵٤٤م ۹۵۱ق**

همایون د بابر زوی د هرات او مشهد له لاری په قزوین کي د شاه طهماسپ صفوی دربار ته ورسیدي (جمادی الولی).

محمد قاسم بن شادی شاه هروي خطاط د عارفي هروي گوي و چوگان په ښکلی نستعلیق وکیښ (د کابل خطی کتابخانه).

میر علی هروي خطاط په فتح آباد کي وفات سو.



**۱۵۴۵م ۹۵۲ق**

د هند لوی پښتون شهنشاه شیر شاه سوري د کالنجر په کلا بندی کي وسوځید او وفات سو (۱۰ ربیع الاول).

میرزا حیدر کورګان تاریخ رشیدی په کشمیر کي بشپړ کړ (ذوالحجه).

همایون له ایرانه د هرات پر خوا د ۳۰ زرو صفوی امدادي لښکرو سره راغی او قندهار ئې له خپل ورور میرزا عسکری څخه ٦ میاشتو کلا بندي وروسته ونیوی (پنجشنبه ۲۵ جمادی الاخري).

د بلوڅو مشر لونګ او د پښتنو مشر میر علی کابل ته راغلل، او د همایون له خوا لونګ شال او مستونګ او علی دوکي ته مقرر سول.

**۱۵٤٦م ۹۵۳ق**

همایون له قندهاره راغي کابل ئې له خپل ورور میرزا کامران څخه ونیوی (۱۰ رمضان) او کامران سند ته ولاړ.

همایون کابل محمد علی طغائي ته وسپاره او پخپله يې تالقان تر بدخشانه ونیول.

د ده په غیاب کي میرزا کامران له سنده راغی غزنی او کابل ئې ونیول.

**۱۵٤۷م ۹۵٤ق**

همایون د هندوکش شمالي ولایات مرزا سلیمان او میرزا هندال ته وسپارل او پخپله د غور بند له لاری راغي او میرزا کامران ئې په کابل کي کلابند کړ. هغه بدخشان ته وتښتید او کابل بیرته د همایون لاس ته ورغي (پنجشنبه ۷ ربیع الاول) خو کامران غوري، بغلان، تالقان او بدخشان ونیول. همایون له کابله پر ده ورغي او کامران ئې ونیوی او د کال تر پایه بیرته کابل ته راغي.

شاه حسین بن شاه محمود د نیمروز ملک وفات سو.

د معین الدین محمد فراهي ملا مسکین مفسر او واعظ وفات.

**۱۵٤۸م ۹۵۵ق**

څکه چي میرزا کامران بیا بدخشان نیولی ؤ نو همایون له کابله ورغی تالقان او بدخشان ئې ونیول او کامران ئې وباخښه (۱۷ رجب). همایون بیرته کابل ته راغی (جمعه ۲ رمضان).

همایون د پروان کلا ودانه کړه (اوسنی جبل السراج).

**۱۵٤۹م ۹۵٦ق**

همایون د خلم په بابا شاهو کي د بلخ د حکمران پیر محمد خان سره جنګ وکړ مګر ناکام کابل ته راغي.

په قندوز کي د میرزا کامران او هندال جنګ وسو چي میرزا کامران بامیان ته ځینی وتښتیدی.

شیخ قاسم متی زی د تذکرة اولیا افغان لیکوال د پیښور د بدنی رود پر غاړه وزیږیدي.

**۱۵٤۹م ۹۵۷ق**

میرزا کامران په بامیان کي یاغي سو او همایون له کابله د ده مقابلې ته ولاړ، د غوربند په جنګ کي همایون مات سو او بدخشان ته ولاړ، او میرزا کامران راغی کابل ئې ونیوی. خو تر درو میاشتو وروسته همایون بیرته له بدخشانه

راغي او کابل ئې ونيوي او ميرزا کامران پيښور ته وتښتيدي.

ميرزا عسکري چې په دې جنگ کې ونيول سو، عربستان ته واستول سو.

شاه نصرت د شاه محمود زوی د نيمروز پاچا مړ سو.

مولانا کمال الدين عاشق د بلخ شاعر او عالم هلته وفات سو.

**۱۵۵۱م ۹۵۸ق**

همايون او کامران د ننگرهار په سرخاب کې جنگ سره وکړ چې په دې جنگ کې ميرزا هندال ووژل سو (يکشنبه ۲۱ ذي قعده) او کامران هند ته وتښتيدی. (د هندال ولادت ۹۲٤ق و چې د کابل د بابر په هديره کې ښخ دئ).

ميرزا حيدر کورگان د تاريخ رشيدي مؤلف ووژل سو.

مجنون رفيقي هروي خطاط وفات سو.

**۱۵۵۲م ۹۵۹ق**

د همايون له خوا شهزاده جلال الدين محمد اکبر د غزنی حکمران سو.

د همايون په امر خواجه سلطان علی وزير په کابل کې يو مسجد جوړ کړ. (ډبرليک يې د کابل په موزيم کې).

**۱۵۵۲م ۹۶۰ق**

همايون د غزنی او کابل او ننگرهار پاچا سو او د خپل ورور کامران د ماتولو لپاره تر اټک تير سو، کامران سلطان آدم کهگر ته پنا ووړه خو هغه همايون ته په لاس ورکړ او د همايون په امر ړوند سو.

**۱۵۵۳م ۹۶۱ق**

همايون کابل علی قلی خان اندرابي ته پريښو او پخپله قندهار ته ولاړ. بهادر خان سيستاني يې د زمينداور او قندهار حکمران کړ او پخپله د بيرم خان سره کابل ته راغي او ميرزا سليمان ئې د بدخشان حکمران کړ (ذی حجه).

ميرزا محمد حکيم د همايون زوی په کابل کې د ماه چوچک بيگم له نسه وزيږيدی (چهار شنبه ۱۵ جمادی الاولي).

شاه زين العابدين د شاه ابو اسحق زوی د نيمروز حکمدار مړ سو.

**۱۵۵۵م ۹۶۲ق**

همايون خپل زوی محمد حکيم او منعم خان په کابل کې پريښوول او د صفری په مياشت کې د ۱۵ زرو لښکرو سره پيښور ته ولاړ او لاهور يې ونيوی. وروسته ئې ډهلی بيا فتح کړ او بيا د هند پاچا سو (غره رمضان).

شاه محمد کلاتي توخي د همايون له خوا د قندهار حکمران و.

سيد علی د قنبر علی زوی (پير بابا) چې د امير تيمور د خور له نسله و له هنده تر اټک راوښت او د افغانانو په سيمه کې ميشته سو.

د شمس الدين محمد خراساني فقيه او د بخارا د مفتی د جامع الرموز مؤلف د وفات حدود.

**۱۵۵۵م ۹۶۳ق**

همايون په ډهلی کې د کتاني له بامه را ولويد او ٤۹ کلن تر ۲۵ کلو پاچهی وروسته

وفات او په ډهلي کي ښخ سو.

عبدالطيف بن عبدالمؤمن احمدی د ابهار الاسرار مؤلف مړ سو.

شهزاده جلال الدين محمد اکبر ۱۳ کلن د لاهور په کلا نور کي د همايون تر مرگ وروسته د هند پر تخت کښېنوست (جمعه ۲ ربيع الثاني).

ميرزا سليمان له بدخشانه راغی او شهزاده محمد حکيم ئې څلور مياشتي په کابل کي کلابند کئ خو ناکام بيرته ولاړ.

**۱۵۵۵-۱٦۰۵م ۹٦۳-۱۰۱٤ق**

د جلال الدين محمد اکبر پادشاه د پاچاهئ دوره.

**۱۵۵٦م ۹٦٤ق**

بهادر خان سيستاني له زمينداوره پر قندهار حمله وکړه خو شاه محمد کلاتي قندهار وساتئ او وروسته بيا سلطان ميرزا صفوی قندهار ونيوئ.

شهزاده کامران د بابر ړوند زوی په مدينه کي وفات او په معلمی هديره کي ښخ سو (۱۱ ذي حجه).

د رونقي بدخشاني شاعر وفات.

**۱۵۵۷م ۹٦۵ق**

ملک سدو د معروف زوی وزيږيدئ (۱۷ ذی حجه) دی د سدوزو پلار دئ.

ميرزا عسکري د بابر زوي چي همايون شړلي و په حجاز کي مړ او ښخ سو.

نطام الدين حيدر د نيمروز ملک وفات سو.

شاه محمد کلاتي د قندهار حکمران په هند کي د اکبر پاچا دربار ته ولاړ.

د رکن الدين بن بايسنقر ميرزا د ژوند وخت، چي سلطان ابراهيم ئې زوی و.

**۱۵۵۸م ۹٦٦ق**

مير علی هروي خطاط او شاعر د سلطان علی شاگرد په هرات کي وفات سو.

**۱۵۵۹م ۹٦۷ق**

ميرزا سليمان د خان ميرزا زوی د بدخشان حکمران د پير محمد خان اوزبک سره د بلخ په چشمهٔ گازران کي وجنگيدئ او مات سو. د ده زوی ميرزا ابرهيم د پير محمد خان په امر وواژه سو.

اکبر شاه له کابله منعم خان وغوښت او پخپل وکالت يې د خان خانان په لقب مقرر کئ او د منعم خان زوی غني خان د کابل حکمران سو (دوشنبه ۱۸ ذي حجه).

آخوند قاسم پاين خيل شينوارخيل پښتو کتاب فوائد الشريعه وکيښ.

**۱۵٦۰م ۹٦۸ق**

د کابل حکمرانی د شهزاده محمد حکيم مور او شاه ولي اتکه کوله او عني خان هند ته وتښتيدئ.

د واصلي کابلي شاعر وفات.

**۱۵٦۱م ۹٦۹ق**

شمس الدين اتکه د مير يار محمد غزنوي زوی د اکبر پاچا د دربار لوی وزير په هند کي د ادهم خان په لاس وواژه سو (رمضان).

نيکبخته د شيخ الله داد مموزی لور د اشنغر اوسيدونکی وه چي خپل کتاب ارشاد الفقراء ئې په پښتو نظم کئ.

**۱۵٦۲م ۹۷۰ق**

د اکبر پاچا له درباره منعم خان د کابل د نیولو لپاره راغي او د جلال آباد د چارباغ سره ئې د کابل د امیرانو سره جنگ وکړ، خو مات سو او هند ته ولاړ (ذی حجه).

بایزید پیر روښان په پښتنو قبیلو کي قوت وموند او د اشنغر په کله ډېر کي مرکز ونیو. خو محسن خان د کابل حکمران دی ونیو او بندی ئې کړ.

**۱۵٦۲م ۹۷۰ق حدود**

سلطان محمد بن درویش محمد مفتی خپل کتاب مجمع الغرائب د بلخ د پاچا پیر محمد خان په نامه وکیښ.

**۱۵٦۳م ۹۷۱ق**

شاه ابو المعالي د همایون د لور فخر نساء بیگم مېړه د میرزا محمد حکیم مور مړه کړه او د کابل اختیار دار سو. ده د غوربند د پله سره د بدخشان د میرزا سلیمان سره جنگ وکي او ووژل سو (۱۷ رمضان) او میرزا سلیمان کابل میرزا محمد حکیم ته پرېښو.

خواجه باقي بالله د قاضي عبدالسلام کابلي زوی مشهور نقشبندي صوفي په کابل کي وزیږیدئ ( د ده وفات په ډهلي کي ۲۵ جمادی الاخری ۱۰۱۲ق) د سلسلة الاحرر مؤلف دئ.

شیخ احمد سرهندي د مولانا عبدالاحد فاروقی کابلي زوی په سر هند کي وزیږیدئ (۱٤ شوال).

**۱۵٦٤م ۹۷۲ق**

میرزا سلیمان له بدخشانه راغی او کابل ئې کلابند کئ، میرزا محمد حکیم د اکبر پاچا په مرسته له پیښوره راغي او سلیمان ئې بیرته بدخشان ته وشاړه او د کابل مستقل حکمران سو.

**۱۵٦۵م ۹۷۳ق**

سلیمان میرزا څلرمه پلا پر کابل حمله وکړه او د میرزا محمد حکیم گومارلی حکمران معصوم خان ئې کلابند کئ، خو بیرته بدخشان ته ولاړ.

مولانا محب علی هروي خطاط او نقاش او موسیقي پوهاند د رستم علی هروي زوی په هرات کي وفات سو.

بیکسي غزنوي شاعر په پیښور کي وفات سو.

مولانا ماتمی هروي شاعر په هرات کي وفات سو.

صبوحي بدخشاني شاعر په هند کي مړ سو.

آتشي قندهاري شاعر په لاهور کي مړ سو.

**۱۵٦٦م ۹۷٤ق**

میرزا محمد حکیم د کابل حکمران د خپل ماما فریدون په لمسون له پیښوره ولاړ او لاهور ئې کلابند کئ څو اکبر پاچا پخپله لاهور څنی ونیوي او محمد حکیم پیښور ته را وتښتیدئ (جمادی الاولی) او وروسته کابل ته راغئ.

مولانا ویسی هروي خطاط د مولانا جامي د نفحات الانس یوه نسخه په ښکلی نستعلیق وکښله (د هرات موزیم).

حافظ کمال الدین حسین هروي خطاط په مشهد کي وفات سو.

سید حسین خواجه نقیب الله شریف نثاري

بخاري خپله تذکرهٔ شعراء مذکر احباب وکښله (متوفا ۱۰۰۵ق) چه د افغانستان د ډیرو شاعرانو احوال لري.

بوالعجب د کابل ظریف شاعر په کابل کي وفات سو.

**۱۵٦۷م ۹۷۵ق**

خرد بیګي کابلي شاعر وفات سو.

**۱۵٦۸م ۹۷٦ق**

قاسم کاهي کابلي شاعر او عالم خپل کتاب په ادبي علومو کي د هند په تونک کي تالیف کئ.

مولانا مسیحي بلخي شاعر ۸۰ کلن په بلخ کي وفات سو.

**۱۵٦۹م ۹۷۷ق**

شهزاده سلیم (جهانګیر) د جلال الدین اکبر زوی د آګرې په فتح پور کي د جوده بائي له نسه وزیږیدئ (چهار شنبه ۱۷ ربیع الاول).

د مولانا والهي بلخي شاعر وفات په بلخ کي.

**۱۵۷۰م ۹۷۸ق**

پیر روښان بایزید خپل کتاب صراط التوحید په فارسی ژبه تالیف کئ.

د نیمروز ملک شاه حسین غیاث الدین محمد وزیږیدئ.

**۱۵۷۱م ۹۷۹ق**

د خواجه حسن هروي شاعر وفات په کابل کي.

قاسم خان موجي بدخشي شاعر د لیلا مجنون او یوسف زیلخا ناظم په آګره کي وفات سو.

**۱۵۷۲م ۹۸۰ق**

بایزید پیر روښان له بنده ایله سو او بیا ئې په تیراه کي د آزادیخواهۍ تبلیغ شرو کئ.

د مولانا عیسي هروي خطاط د ژوند وخت.

د مولانا یاري هروي نقاش او مذهب او نستعلیق لیکونکي او شاعر وفات.

**۱۵۷۲م ۹۸۰ق حدود**

بایزید پیر روښان خپل خیر البیان په څلورو ژبي: پښتو، فارسي، عربی، پنجابی وکیښ.

د علی محمد مخلص پښتو شاعر د ژوند وخت. دی د پیر روښان مخلص و.

د پښتو شاعر ارزاني خویشکی روښانی د ژوند وخت.

محمد یوسف کابلي شاعر د شاه بیګ کابلي زوی د هند په سورت کي ووژل سو.

**۱۵۷۳م ۹۸۱ق**

د سید اماني کابلي شاعر وفات د هند په جونپور کي.

**۱۵۷٤م ۹۸۲ق**

محمد بن علاء الدین زره هروي د امیر خسرو خمسه په خفي نستعلیق په خاف کي وکښله چه تصاویر ئې د محمدی مصور په قلم دی (رجب) د کابل د خطی نسخو کتابخانه.

خواجه امین الدین محمود هراتي خطاط په هند کي وفات سو.

معزی هروي شاعر په هند کي وفات سو.

**۱۵۷۵م ۹۸۳ق**

په بدخشان کي د میرزا سلیمان او د ده د

لمسی شاهرخ تر منځ جنګونه وسوه، څو چي شاهرخ قندوز ونيوئ. ميرزا سليمان هم بدخشان او تالقان ور پريښودل او پخپله هند او بيا حجاز ته ولاړ.

مجنون هروي خطاط د کمال الدين مومود رفيقي زوی د ''توامان'' خط مخترع او د آداب المشق مؤلف په هرات کي وفات سو.

ويسی هروي شاعر او خطاط په مکه کي اوسيدئ او د مذکر احباب يوه نسخه ئې وکښله (د برلين موزيم).

خلقي قلندر بلخی شاعر د بلخ په مزار شريف کي وفات سو.

سيد ميرک وصالی بلخي شاعر او خطاط د بلخ په سمانه کي اوسيدئ.

ميرزا قلی ميلی هروي شاعر د هند په مالوه کي مسموم او مړ سو.

مير کلان هروي عالم سل کلن د هند په اکبر آباد کي وفات سو.

**١٥٧٦م ٩٨٤ق**

شاه طهماسپ صفوي د هرات بديع الزمان ميرزا مړ کئ (محرم)، شاه طهماسپ صفوي د هرات د تصاويرو البم سلطان مراد ته اهداء کئ، چي د عبدالله هروي خط او د شاه غريب ميرزا او بهزاد تصاوير هم لري (د استانبول پوهنتون ١٤٢٢).

عبدالخالق بن حبيب الله هروي خطاط يو قرآن شريف په ښکلي نسخ وکيښ (د ايران باستان موزيم).

**١٥٧٨م ٩٨٦ق**

د نيمروز د ملکانو شخړه د افشار او قزلباش سره.

د خان محمد خانی کابلي شار د ژوند وخت.

**١٥٧٨م ٩٨٦ق**

د نيمروز ملک اسحاق بن ملک محمد وفات سو.

استاد محمدي هروي نقاش د سلطان محمد نقاش زوی ژوندی و.

د ملا محمد حسين تبريزي خطاط وفات چي د مير عماد قزويني استاد و.

حاجي عارف قندهاري مورخ په هند کي خپل کتاب مقطع وکيښ چي د هند تاريخ ئې د سلطان محمود له وخته تر اکبر پاچا پوری راوړي دئ. د ده بل کتاب مطلع يا تاريخ اکبري دئ.

حاجي عارف قندهاري مورخ په هند کي د اکبر پاچا په حکم د پنجاب په ديواني مقرر سو.

**١٥٧٩م ٩٨٧ق**

ميرزا سليمان د ايران او هرات او قندهار له خوا کابل ته راغي او د ميرزا محمد حکيم په مرسته ئې بيا په تالقان کي د خپل لمسی شاهرخ سره جنګ وکئ او له تالقانه تر هندوکشه مځکي ئې ونيولې او بدخشان شاهرخ ته پاته سو.

عباس خان سروانی (تاريخ شير شاهي) په هند کي تاليف کئ.

**١٥٨٠م ٩٨٨**

ميرزا محمد حکيم له کابله ولاړ او لاهور ئې

کلابند کړ خو د اکبر پاچا حکمران سعید خان دغه ښار په کلابندۍ کې وساتي او تسلیم نسو (ذیحجه).

پیر روښان د شنوارو په تور راغه کې د کابل د حکمران محسن خان سره جنګ وکړ او په دغه جنګ کې ۵٦ کلن ووژل سو.

ابو القاسم نجم الدین قاسم کاهي کابلي شاعر او مؤلف په آګره کې وفات سو (۲ ربیع الثانی).

حاجي عارف قندهاری مورخ د هند په حصار تانده کې د مظفر خان سره وواژه سو.

**۱۵۸۰-۱٦۰۰م ۹۸۸-۱۰۰۹ق**

جلال الدین د بایزید پیر روښان زوی د پښتنو د آزادیخوایۍ د حرکت رهنما و.

**۱۵۸۱م ۹۸۹ق**

پخپله اکبر پاچا د میرزا محمد حکیم مقابلې ته پر لاهور راغئ او میرزا محمد حکیم ئې بیرته کابل ته را وشاړه. خو اکبر کابل ته پسې راغئ، او میرزا محمد حکیم ئې وباخښه، د کابل او زابل حکمراني ئې ورکړه (۱٤ صفر).

جلال الدین د بایزید پیر روښان ۱٤ کلن زوی په تیراه کې د خپل پلار پر ځای کښینوست او د افغانانو آزادیخواهان پر را ټول سول.

د نیمروز ملک حیدر بن ملک محمود وفات سو (۲ رمضان).

د نیمروز ملک غیاث الدین محمد مړ سو (۹ ذی حجه).

**۱۵۸۲م ۹۹۰ق**

جلال الدین روښاني شل زره پلی او پنځه زره سپاره لښکر له تیراهه راوستل او د پیښور حکمران سید حامد بخاري ئې په جنګ کې وواژه.

قاضي محمد سالم لغماني د درویش محمد غازي جنګنامه تالیف کړه چې نوم ئې (صفت نامه) دي او د کافرستان د درو د خلکو سره جنګونه بیانوی (د روما طبع ۱۹٦۵).

محمد صالح فارغي کابلي شاعر په هند کې ژوندی و.

عشقي کابلي شاعر د شیخ اسماعیل له پښته په هند کې وفات سو.

شیخ قاسم د شیخ قدم زوی تذکرهٔ الولیاء افغان وکښله (دا کتاب ورک دئ).

ملا محمد هروي عالم په هند کې وفات سو.

**۱۵۸۲م ۹۹۰ق**

د میر کلان غزنوي شاعر او حکمران د ژوند وخت.

د غیوری کابلي شاعر د وفات وخت په هند کې.

د فاضل منشي کابلي د ژوند وخت په کابل او هند کې.

امیر د پښتو تجوید نظم کړ.

میرزا محمد حکیم د همایون زوی په کابل کې سکه ووهله.

**۱۵۸۳م ۹۹۱ق**

سید صفایي د قندهار د بابا ولی لمسی د بکهر شیخ الاسلام هلته وفات سو (ذیقعده).

محمد هاشم کشمي بدخشي د محمد قاسم زوی د حضرت مجدد د مکتوباتو د دریم جلد

جامع او مؤلف صوفی وزیرېدئ (۱ رجب).

پیر بابا سید علی قندوزي په باجوړ کي وفات او ښخ سو.

**۱۵۸۴م ۹۹۲ق**

پر بدخشان او تالقان باندی عبدالله خان اوزبک حمله وکړه او میرزا سلیمان او شاهرخ کابل ته راغلل او شمالي ولایات عبدالله خان ونیول.

قاضي نظام غازي خان بدخشي عالم او د شرح عقاید محشي ۷۰ کلن د هند په اوده کي وفات سو.

ملا عالم کلبهاري د فواتح الولایه او صلصلة الجرس مؤلف په هند کي وفات سو.

**۱۵۸۵م ۹۹۳ق**

شهزاده محمد حکیم د همایون زوی چي له کوچینوالي څخه د کابل حکمران و، وفات سو او په کابل کي د بابر په هدیره کي ښخ سو (جمعه ۱۲ شعبان) او کابل مستقیماً د کنورمان سنگه تر اداري لاندي سو، چي اکبر له هنده را لیږلي وو. (د محمد حکیم ولادت ۱۵ جمادی الاولی ۹۶۰ ق).

د خواجه محمود بن اسحاق شهباني هروي خطاط ژوند وخت.

په جارونک کي د نیمروز د لښکر مقابله له صفوی مظفر حسین میرزا سره.

**۱۵۸۶م ۹۹۴ق**

میرزا پاینده حسن غزنوي د بابر نامې د شپږو کالو برخه په فارسي ترجمه کړه او وروسته بیا محمد قلی حصاري هغه د ۹۳۵ق کال تر واقعو پوری ترجمه کړه.

د اکبر پاچا له خوا کنورمان سنگه د کابل سر لښکر او میر شریف ئې صدر و.

د اکبر پادشاه او د جلال الدین روښانی جنگونه په خیبر، تیراه، ننگرهار کي.

میر شمس الدین داعي کشمی شاعر د میر جلال الدین زوی په کابل کي مړ سو.

خواجه ملیزي مؤرخ، تواریخ افاغنه یا تواریخ خان کجو په یوسفزو کي تالیف کړ. دا کتاب پیر معظم شاه په هند کي د تواریخ رحمت خانی په نامه لنډ کړی دئ. (د پېښور چاپ ۱۹۷۰).

**۱۵۸٦م ۹۹۵ق**

میرزا سلیمان له لغمانه پر تالقان ورغی، خو عبدالمؤمن خان د بلخ حکمران دی مات کړ او هندوستان ته ئې وشاړه.

د کنورمان سنگه پر ځای د اکبر پاچا له خوا زین خان کوله د کابل حکمران مقرر سو او هغه له کابله تر اټکه خپل حاکمان د لارو د ساتني لپاره مقرر کړل.

عبدالله خان د توران پاچا پر خراسان حمله وکړه (۲۸ جمادی الاخری).

**۱۵۸٦م ۹۹٦ق**

عبدالله خان اوزبک سیستان ونیوئ.

سلطان حسین میرزا د بدیع الزمان میرزا زوی سیتان ته راغئ.

په سوات، باجوړ، وزیرستان، تیراه کي د اکبر پادشاه د لښکرو جنگونه د جلال الدین روښانی سره.

**۱۵۸۸م ۹۹۷ق**

د اکبر پاچا لښکر په باجوړ او سوات کي پر پښتنو ورغلل، او پخپله اکبر دوهمه پلا کابل ته راغئ، او قاسم علی خان کابلي ئې د دې ځای حکمران مقرر کئ.

میرزا سلیمان د خان میرزا زوی د بدخشان پخوانی حکمران ۷۷ کلن په لاهور کي مړ سو، دی د فارسي او اوزبکی ژبي شاعر هم و.

شیخ بوستان بړیځ بستان الاولیاء وکیښ (پښتو).

د نیمروز ملک محمد بن غیاث الدین محمد مړ سو او سیستان اوبو یووړ.

**۱۵۹۰م ۹۹۸ق**

عبدالرحیم خان د بیرم خان زوی د اکبر پاچا په امر بابر نامه له ترکی څخه په فارسي ترجمه کړه.

ملک جلال الدین محمود د نیمروز پاچا سو (ذی قعده) رستم مرزا صفوی پر نیمروز راغئ او ملک نصر الدین نیمروزی ئې له خپلو زامنو سره وواژه (رجب).

سید معصوم قندهاری د تاریخ سند مؤلف د اکبر پاچا په عسکري ماموریت کي داخل سو.

د شیخ ابن یمین کوسوی هروي وفات او په سینان کلی کي ښخیدل.

د اکبر پاچا په امر شهباز کلا د هندوکش په لمنو کي جوړه سوه.

**۱۵۹۰م ۹۹۹ق**

په سیستان کي وچ کالی او کاختي راغله.

**۱۵۹۱م ۱۰۰۰ق**

د جلال الدین روښاني لوی جنګونه د اکبر پادشاه له لښکرو سره په سرکاوی، میني، توره بیله کي چي د جلال الدین وروڼه شیخ عمر، خیرالدین، نورالدین پکښی ووژل سوه.

سلطان محمود ګدون د مهابن په لمنو کي د آزادئ غورځنګ وکئ، اخوند پنجو، مولانا عبدالوهاب اکبر پوری د ده ملګري و. دوی د غرو د کاپرانو سره غزاوي کولې، او اخوند څالاک خټک ئې تاریخ د سلوک الغزات په نامه په پښتو وکیښ.

د شهباز خان خټک د خوشحال خان د پلار ولادت د خټکو په اکوړه کي.

ملک علی د ملک اسحق زوی د نیمروز امیر وفات سو (رمضان).

عبدالله نیازي عارف او صوفي ۹۰ کلن په سر هند کي وفات سو.

**۱۵۹۱م ۱۰۰۰ق حدود**

الله یار د شیخ صالح الکوزی قندهاری زوی خپل کتاب تحفهٔ صالح وکیښ.

سلطان قندهاری شاعر په هند کي ژوندی و.

د ابتری بدخشی د ژوند وخت.

**۱۵۹۲م ۱۰۰۱ق**

جلال الدین روښانی له تیراهه تر سواته پښتانه سره را غونډ کړل او د اکبر پاچا ۵۰ زره لښکر ئې تباه کړل. د هند وزیر راجه بیربل ئې مړ کئ او زین خان کوکه بل لوی امیر اټک ته ځنی وتښتیدئ.

**۱۵۹۲م ۱۰۰۱ق حدود**

ملا عمر خويشکی روښاني عالم او مؤلف په اکوزو کي هستيدئ او پر تصوف ئې رسالې کښلي دي.

مولانا سليمان هروي انصاري په هند کي مقامات العارفين و مرآة السالکين وکيښ.

عبدالرحمن مانکروی د هزاره ضلع عالم او قائد او مؤلف ژوندی و.

**۱۵۹۳م ۱۰۰۲ق**

د اکبر پادشاه له خوا شاه بيگ خان کابلي د قندهار نيولو ته را واستول سو، او هغه ښار ئې له مظفر حسين صفوی څخه ونيوئ (۱۰۰۳ق) او د اکبر پادشاه په مملکت کي داخل سو.

راجه تودرمل او قاسم خان کابلي د خيبر او کابل د لاری په ساتنه مقرر وو.

شيخ بستان بړيڅ پښتون شاعر او زاهد د گجرات په احمد آباد کي وفات سو (۱۱ ربيع الثانی) دی د اولياي افغان مؤلف دئ.

مقصود هروي خطاط او هنرمن او د اسطرلاب او کرو پوهاند په هند کي ژوندی و.

عبدالرحيم مانگراوي عالم درد البدع مؤلف ژوندی و.

**۱۵۹۴م ۱۰۰۳ق**

د اکبر پاچا لښرو قندهار ونيوئ.

مير معصوم نامی د سيد صفائي قندهاری زوی د قندهار کومکي مقرر سو.

خواجه نظام الدين احمد هروی د محمد مقيم زوی د طبقات اکبری ليکوال مؤرخ په هند کي وفات سو.

ملک جلال الدين محمود د نيمروز ملک قلعه سبز ته نقل مکان وکئ.

عيسی د اخوند پنجو شاگرد او عالم د اهل بيت پر فضيلت يو کتاب وکيښ.

**۱۵۹۵م ۱۰۰٤ق**

جلال الدين روښاني د اکبر پاچا عسکری مشر قليچ خان کابل ته وتښتاوه، او له تيراهه تر کابل او غزني پوري ئې د پښتونخوا سيمي ونيولې.

شاه بيگ خان کابلي چي د اکبر پادشاه له خوا د قندهار حکمران و، د کاکړانو ښورښت ئې کښيناوه، او قندهار د اکبر په پاچاهی پوري اړه درلوده.

ملک جلال الدين محمود د نيمروز ملک د ملک شاه حسين سره د قندهار نيولو ته ولاړل.

شاه محترم شاه کټور چي ځان ئې د هرات د سلطان حسين له پښته باله په چترال کي د حکمرانۍ کورنۍ تاسيس کړه.

مولانا آگه ابن يمين شبرغانی شاعر او عالم په شبرغان کي وفات سو، د شعر ديوان لري.

سيد معصوم نامی د قندهار په سپيروان کي د خپل نيکه سيد شير قلندر سبزواري بن سيد مير انصاري ترمذی پر مزار يو ډبر ليک وکيښ (۱۹ شوال).

عماد هروي خطاط د محيي هروي خطاط زوی په بلخ کي د عبدالمؤمن خان لپاره د مولانا بلخی د مثنوي يوه مزينه نسخه وکښله (د کابل د خطي نسخو کتابخانه).

صادق محمد خان د محمد باقر هروي زوی

د هند عسکري مشر په دهولپور کي وفات سو.

عیاني کابلي شاعر د هند په یوه جنگ کي ووژل سو.

شیخ هاشم کشمي د خواجه قاسم زوی مشهور نقشبندی صوفي د زبدة المقامات مؤلف په هند کي ژوندی و.

**۱۵۹۷م ۱۰۰۶ق**

ملک شاه حسین د نیمروز له ترقون څخه قندهار ته ولاړ.

**۱۵۹۸م ۱۰۰۷ق**

جلال الدین روښانی غزني ونیوئ او د پښتنو منلئ مشر سو.

د سیستان ملکان او خلک له هراته قلعهٔ فتح ته راغلل، او ملک حسین د شاه عباس لیدو ته قندهار ته ولاړ.

**۱۵۹۹م ۱۰۰۸ق**

د نیمروز ملک شاه حسین په هرات کي د شاه عباس لیدو ته ولاړ.

عبدالله د ملا رکن الدین زوی د پښتو شاعر ژوندی و.

**۱۶۰۰م ۱۰۰۹ق**

د اکبر پاچا لښکرو په غزنی کي پر جلال الدین روښانی حمله وکړه، او د جنگ پر میدان د شادمان نومی په لاس تپي سو او شریف خان اتکه د اکبر پاچا سپه سالار مراد بیگ مقرر کئ چي جلال الدین مړ کي او سر ئې د ډهلی دربار ته واستوي.

تر جلال الدین روښانی وروسته د ده وراره احداد د عمر شیخ زوی د بایزید لمسی ئې پر ځای کښېنوست.

**۱۶۰۰-۱۶۲۵م ۱۰۰۹-۱۰۳۵ق**

احداد د عمر شیخ زوی د پښتنو د آزادیخواۍ د نهضت مشر و.

میر معصوم نامی قندهاري شاعر او عالم او د ډېرو آثارو مؤلف تاریخ سنه یا تاریخ معصومي وکیښ (۱۰۰۹ق).

دولت خان لودي د هند پښتون قائد په احمد نگر کي مړ سو.

**۱۶۰۱م ۱۰۱۰ق**

شیخ متی کاسي افغاني زاهد او صوفي په هند کي وفات سو.

مولانا نیازي شاعر د مولانا وصالي بدخشي زوی له دکنه حجاز ته ولاړ او هورې مړ سو.

سدو خان د معروف زوی د قندهار په مشرتوب د شاه عباس صفوی له خوا پېژندل سوی و او مرکز یې ارغسان و.

زین خان کوکه د خواجه مقصود هروي زوی د لاهور صوبدار او شاعر موسیقي دان وفات سو.

د نیمروز ملک شاه حسین په مرو کي د شاه عباس ملگری و.

میر دوست کابلي خطاط او عیار شناس په هند کي ژوندی و.

**۱۶۰۲م ۱۰۱۱ق**

میرزا حسن د شاهرخ بدخشاني زوی پر قندهار حمله وکړه، خو شاه بیگ کابلي د قندهار حکمران دی مات کئ او چخچران ته وتښتیدئ (ذی حجه).

محمد صالم ندايي چه په کابل کي د خسر و شيرين مثنوی د خواجه حسن خالدار په نامه او صرف بهائي هم نظم کړې و، په دغه کال هند او حجاز ته ولاړ.

**۱٦۰۳م ۱۰۱۲ق**

مير معصوم نامي قندهاري د تاريخ سند مؤلف د اکبر پاچا له خوا د ايران صفوی دربار ته سفير واستول سو او د ده زوی مير بزرگ چه ورسره و، د فراه او قندهار تر منځ ئې د ښوراو پر غره يو ډېر ليک وکيښ.

خواجه محمد باقي کابلي نقشبندي صوفي او عالم په هند کي وفات سو.

**۱٦۰٤م ۱۰۱۳ق**

د احمد بن ابی القاسم بن محمد بن سالم بن عبدالعزيز بن شعيب هروي صوفي د ژوند وخت (ولادت ۹۲۰ق).

**۱٦۰۵م ۱۰۱٤ق**

جلال الدين محمد اکبر د همايون زوی ٦٤ کلن پسله ۵۲ کالو پاچهۍ د هند په اکبر آباد کي وفات سو (۱۳ جمادی الاخری) او د ده زوی شاهزاده سليم د نور الدين محمد جهانگير په لقب په آگره کي ۳۸ کلن پر تخت کښېنوست (۱۸ جمادی الاخری).

**۱٦۰۵-۱٦۲۷م ۱۰۱٤-۱۰۳۷ق**

د نور الدين محمد جهانگير بن اکبر پادشاه د پاچهۍ دوره.

د صفويانو لښکر له هراته راغلل او قندهار يې کلابند کئ خو د جهانگير له درباره ميرزا غازی ترخان راغئ او قندهار يې وساتي، صفوي لښکر ئې وشړل (۱۲ شوال) وروسته د قندهار حکمران ميرزا غازي و.

شيخ محمد صالح الکوزی په قندهار کي ژوندی و. دئ د پښتو شاعر او عالم او زاهد سړی و چي ملا الله يار د ده پر احوال باندی تحفۀ صالح وکيښ.

ملا يحيی (محيی) باغدشتي هروي خطاط او شاعر د محمد حسين زوی د هرات په گازر گاه کي يوه نوشته په عالي ثلث وکښله چي د عمل امام قلي خاتم ډېر ليک هم لری. يحيي د فتوح الحرمين ناظم او د ديوان خاوند دئ.

عبدالکريم د اخوند درويزه زوی د خپل پلار پښتو مخزن اسلام تکميل کئ.

**۱٦۰٦م ۱۰۱٤ق**

د علی بن محمد سلطان هروي مشهور په ملا علی قاري مشهور فقيه او مؤلف وفات په مکه کي. دی د خورا ډېرو کتابو مؤلف دئ.

**۱٦۰٦م ۱۰۱۵ق**

جهانگير پاچا د پېښور له خوا کابل ته راغئ (۱۸ صفر). د شير خان افغان د پېښور او عرب خان د جلال آباد حکمرانان او عارف د ملا صادق حلويي زوی ئې د کابل په قضا او صدارت مقر کړل او د کابل د حکمران کفالت ئې تاش بيگ خان ته وسپاره.

د جهانگير په امر د کابل په بالا حصار کي ودانۍ جوړي سوې او د نيمروز ملک عياث الدين محمود وفات سو.

**۱٦۰۷م ۱۰۱٦ق**

خان دوران شاه بيگ خان کابلي د

جهانګیر له خوا د کابل او تیراه او بنګښ او بنیر صوبدار مقرر سو (جمادی الاولی). دئ تر ۱۰۲۶ق پوری د کابل صوبدار و.

د جهانګیر په امر د بابر پاچا د قبر شنخته د ده پر قبر په کابل کي ودرول سوه.

محمد صدیق هدایت کشمي د مبداء و معاد رساله د شیخ احمد مجدد سرهندی له افاداتو څخه ولیکله.

د شیخ قاسم متی زی د تذکره اولیا افغان د مؤلف وفات د هند په چنارګړ کي.

**۱۶۰۸م ۱۰۱۷ق**

د نیمروز ملک شاه حسین د هرات له لاري حجاز او حج ته ولاړ.

**۱۶۰۹م ۱۰۱۸ق**

د نیمروز ملک شاه حسین له مکرانه را ستون سو (۱۵ شعبان).

**۱۶۱۰م ۱۰۱۹ق**

میر معصوم نامی قندهاری په بهکر کي امین الملک و، او په دغه ښار کي وفات او ښخ سو (جمعه ٦ ذی حجه).

د نیمروز شاه ابو القاسم او شاه حبیب الله او امیر سید علی او امیر حسن مړه سول. او ملک شاه حسین له فراه څخه اصفحان ته ولاړ.

قندهاری ملا الف هوتک خپل پښتو بحر الایمان منظوم کئ.

حسن بن محمد الخاکي شیرازی احسن التواریخ وکیښ، چي د افغاني شاهانو احوال هم پکښي سته.

**۱۶۱۱م ۱۰۲۰ق**

احداد د عمر شیخ روښانی زوی د پښتنو قائد، پر کابل حمله وکړه او په بالاحصار کي یې د معزالملک سره جنګ وکئ، چي د احداد ملګري بارکي په دې جنګ کي مړ سو، نو احداد بیرته لوګر ته ولاړ (دو شنبه ٦ صفر).

د جهانګیر له درباره د پنجاب حکمران قلیچ خان کابل ته د احداد مقابلې ته مقرر سو.

احمد خان کنبود د بهنګ خان زوی معدن اخبار احمدی (مجمع التواریخ) په هند کي د پښتنو پاچهانو پر احوال وکیښ.

امام الدین متی زی د شیخ کبیر زوی د تاریخ افغانی مؤلف په پیښور کي وزیږیدئ.

**۱۶۱۳م ۱۰۲۱ق**

خواجه نعمت الله بن خواجه حبیب الله هروي نورزی خپل د پښتنو تاریخ (مخزن افغانی) د هند په برهان پور کي تمام کئ (جمعه ۱۰ ذی حجه، ۲۲ جنوری) په فارسی ژبه.

اخوند درویزه ننګرهاری خپل فارسی کتاب تذکرة الابرار و الاشرار وکیښ.

خوشحال خان خټک د شهباز خان زوی د خټکو د اکوړې په سرای کي وزیږیدئ. دې د پښتو لوی شاعر او قومي زعیم و (ربیع الثانی، مئي).

احمد یادګار په هند کي تاریخ شاهي، یا تاریخ سلاطین افاغنه وکیښ (د کلکتې چاپ ۱۹۳۹م).

**۱۶۱٤م ۱۰۲۳ق**

ملک شاه حسین له نیمروز څخه کیچ او

مکران ته ولاړ (۱۷ شعبان).

**۱٦۱۵م ۱۰۲٤ق**

احداد روښانی په چرخ کي د جهانګیر پاچا له لښکرو سره جنګ وکړ چي درې زره تنه ملګری یې مړه سول او احداد د قندهار خوا ته ولاړ.

عبدالطیف د عبدالله عباس زوی د بنیر اوسیدونکی په تیراه کي د مولوی معنوی د مثنوی اتیا خطي نسخي سره مقابله کړې او یوه صحیحه نسخه یې ځني جوړه کړه (د کابل او پیښور خطی کتابخانه).

میر عماد حسني مشهور خطاط او نستعلیق لیکونکی چي ډېر وخت په هرات کي و، د شاه عباس په امر د مسعود بک مسګړ په لاس وواژه سو، مولانا ابوالبقا خراساني خطاط د ده معاصر و.

**۱٦۱٦م ۱۰۲۵ق**

میرزا ارشد برنابادی هروي شاعر او مؤلف او خطاط په برناباد کي وزیږیدئ.

د نیمروز ملک غیاث محمودی او میر محمد وفات سول.

**۱٦۱۷م ۱۰۲٦ق**

مهابت خان د بنګښ د صوبې حکمران مقرر سو او رشید خان یې کومکی و (ربیع الاول).

خان دوران شاه بیګ خان کابلي د تهتې صوبدار سو، او په عوض کي قلیچ خان د کابل صوبدار سو.

**۱٦۱۷م ۱۰۲۷ق**

دلاور خان کاکړ د کشمیر صوبدار مقرر سو.

شاه حسین بن ملک غیاث الدین محمد د سیستان د ملکانو تاریخ احیاء الماوک تالیف کئ.

**۱٦۱۸م ۱۰۲۸ق**

د احداد روښانی او امان الله د مهابت خان زوی د جهانګیري لښکر مشر جنګ او د احداد ماته.

د نیمروز ملک جلال الدین محمود اصفحان ته ولاړ.

ملا یحیی محیی د هرات خطاط او شاعر وفات سو.

**۱٦۱٦م ۱۰۲۹ق**

د جهانګیر له خوا خواجه عبدالعزیز نقشبندي د بهادر خان اوزبک پر ځاي د قندهار صوبدار او بابا خواجه ئې کومکي مقرر سو.

**۱٦۲۰م ۱۰۳۰ق حدود**

پیر محمد حنیف پلوسي پران مجموعهٔ تاریخ افغانان وکیښ. له مخزن افغاني او اسرار الافغان او تذکرهٔ ابرار و اشرار څخه اقتباس (د پیښور موزیم خطي نسخه).

ابراهم بیټنی د نعمت الله هروي پر مخزن افغاني باندي ملحقات زیات کړل.

**۱٦۲۱م ۱۰۳۱ق**

د شاه عباس صفوی لښکرو قندهار ونیوئ او خواجه عبدالعزیز د جهانګیر حکمران تسلیم سو (جمادی الاولی).

شیر خان ترین د پښین ملي مشر و.

**۱۶۲۲م ۱۰۳۲ق**

د شاه عباس صفوي له خوا گنج علی خان د قندهار حکمران سو.

حسین خان په پښتو او فارسي تواریخ افغان وکیښ.

**۱۶۲۳م ۱۰۳۳ق**

مدار المهام خواجه ابو الحسن د کابل حکمران او د ده زوی احسن الله ظفر خان يې په وکالت د جهانگیر له خوا مقرر سول.

د پیر سباک د کلی پیر معظم شاه په هند کي تواریخ حافظ رحمت خاني د خواجو ملیزي د تواریخ افاغنه څخه اقتباس او لنډ کړ.

**۱۶۲۴م ۱۰۳۴ق**

شیخ احمد مجد د الف ثاني د مولانا عبدالاحد کابلي نقشبندي زوی ٦۳ کلن په سر هند کي وفات او ښخ سو (سه شنبه ۲۸ صفر).

میر محمد صلاح او بهي خطاط د شرازي عرفي کلیات په هرات کي وکیښ (د هرات د ملا محمد علی خطاط نسخه).

مولانا شیر علی هروي خطاط ژوندی و.

**۱۶۲۵م ۱۰۳۵ق**

جهانگیر د پیښور له خوا کابل ته راغی (یکشنبه ۲۱ شعبان) دی له کابله د دې کال په آخر کښي هند ته ولاړ.

د احداد روښاني په مشري د تیراه د پښتنو او د جهانگیر د کابل د حکمران ظفر خان تر منځ جنگ او د احداد وژل او د ده پرې کړي سر ډهلي ته استول.

تر ده وروسته ئې زوی عبدالقادر روښاني پر ځاي کښېنوست.

**۱۶۲۵-۱۶۳٤م ۱۰۳۵-۱۰٤٤ق**

عبدالقادر د احداد روښاني زوی د پښتنو مشر و.

**۱۶۲٦م ۱۰۳۵ق**

د بهاکو خان یوسف زی او د شهباز خان خټک جنگ په جهانگیره کي.

امیر خلیل قلندر هراتي خطاط په حیدر آباد دکن کي وفات سو.

د کابل په جلگه کي د راجپوتانو او کابلیانو جنگ او د ۹۰۰ راجپوتو وژل او ۵۰۰ راجپوت نیول او خرڅول.

یحیا سبزواری هروي منشي او شاعر په مکه کي وفات سو.

**۱۶۲۷م ۱۰۳٦ق**

د نظام الدین بن عبدالشکور بلخی حنفی مفسر د ریاض القدس او شرح لمحات عراقی د مؤلف وفات.

**۱۶۲۸م ۱۰۳۷ق**

جهانگیر د جلال الدین اکبر زوی په لاهور کي ٦۰ کلن پسله ۲۲ کاله پاچهي وفات سو او د ده زوی شهزاده خرم د شهاب الدین محمد شاه جهان په نامه په آگره کي پاچا سو (دوشنبه ۷ جمادی الثانیه).

**۱۶۲۸-۱۶٦۵م ۱۰۳۷-۱۰۷٦**

د شاه جهان بن جهانگیر پادشاه د پاچهي دوره.

**۱۶۲۸م ۱۰۳۷ق**

ندر محمد خان د ماورا النهر پاچا او د ده

زوی عبدالعزیز بامیان ونیوی او په قلعه ضحاک کي خنجر خان محاصره کئ (۱۵ رمضان) وروسته ئې دری میاشتي کابل هم کلابند کئ ځو چي شاه جهان خواجه ابوالحسن مهمند او مهابت خان د ۳۵ زرو لښکرو سره کابل ته راواستول (۱۵ ذیقعده).

**۱٦۲۹م ۱۰۳۸ق**

د شاه جهان لښکر راورسیدل او کابل ئې د ندر محمد خان له محاصرې څخه خلاص کئ (جمعه ۱٦ محرم) ندر محمد خان د غوري له لاري بلخ ته ولاړ.

د مهابت خان له خوا عوض بیگ د ضحاک د کلا په قلعه داری مقرر سو.

شیر خان ترین د حسن خان زوی د قندهار او هند تر منځ د پښین لار ونیوله او د قندهار د صفوی حکمران علی مردان خان سره ونښت.

کامران خان سدوزی په قندهار کي خپل کتاب (کلید کامراني) وکیښ.

پیر علی هروي خطاط د عبدالرحیم عنبرین قلم زوی د سعدی گلستان په ښکلي نستعلیق د شاه جهان د کتابخانې لپاره وکیښ (۲٤ صفر غره آبان د کابل د خطی نسخو کتابخانه).

مخلص الدوله افتخار خان کابلي د احمد بیگ اتکه زوی د جمون فوجدار سو.

**۱٦۲۹م ۱۰۳۹ق**

د کمال الدین پښتون غورځنگ او په یولم گذر کي د عبدالقادر او کریمداد او محمد زمان روښانیانو په ملگری د دهلی له لښکرو سره جنگ او د پیښور کلابند کول او د سعید خان صوبدار مقاومت.

**۱٦۳۰م ۱۰٤۰ق**

پیرا خان د دولت خان زوی چي په ''خان جهان لودی'' مشهور او د هند لوی امیر و د شاه جهان د لښکرو سره په جنگ کي وواژه سو (دو شنبه غره رجب).

میرزا خان د نوارالدین روښاني زوی د پښتو شاعر په دکن کي وواژه سو.

احمد بیگ اتکه کابلي د شاه جهان له خوا د ملتان فوجدار شو.

دریا خان روهیله داودزی په هند کي ووژل سو.

محمد عالم بن شیخ محمد صالح ندایي سمرقندی د غزنی خان لپاره د غزنی د مشایخو تاریخ (مرآه الاولیا) وکیښ (د تاشکند خطی نسخه ۱۰۹٦ق).

سید عبدالوهاب د سید غازی زوی مشهور مجاهد او عالم او مؤلف (اخوند پنجو) د پیښور په اکبر پوره کي ۹٦ کلن وفات او ښخ سو (دوشنبه ۲۷ رمضان) دی په ۹۹۰ ق اکبر پوری ته راغلی و او د پښتو کنز الدقایق ئې منظوم کئ.

**۱٦۳۱م ۱۰٤۱ق**

خواجه خضر خان د سدو خان زوی د قندهار مشر شو. د ده نور وروڼه مغدود خان، زعفران خان، کامران خان، بهادر خان ور سره ملگري وو.

شیر خان ترین له پښینه پر سیوری لشکر کښی وکړه او د صفوی لښکرو مشر علی مردان

خان له قندهاره پر پښين حمله وکړه او شير خان د ملتان له لاري د شاه جهان دربار ته پناه ورووړه (رمضان).

**۱٦۳۲م ۱۰٤۲ق**

رحمان بابا د پښتو صوفی شاعر د پيښور په بهادر کلي کي وزيږيدی. دی د عبدالستار مومند زوی و (وفات ئې ۱۱۱۸ق).

اسد خان د معصوم کابلي زوی د غزني تهانه دار شو.

**۱٦۳٤م ۱۰٤٤ق**

سعيد خان د کابل حکمران عبدالقادر روښاني او الله داد د جلال الدين روښاني زوی ونيول او په هند کي بنديان شول. ۱٦۳٦م ۱۰٤٦ق

عبدالقادر د روښاني احداد زوی په پيښور کي محبوس وفات سو.

**۱٦۳۷م ۱۰٤۷ق**

کريمداد د جلال الدين روښاني زوی په پيښور کي د شاه جهان په حکم وواژه سو (رمضان).

شاه جهان د کابل حکمران سعيد خان وگوماره چي د قندهار د نيولو هڅه وکي، د قندهار حکمران علی مردان خان د ملک مغدود او ملک کامران د سدو خان د زامنو په ملگری د صفويانو اقتدار په قندهار کي ختم کئ او د شاه جهان لښکرو قندهار ونيو (۲۳ شوال) او سعيد خان د شاه جهان له خوا دلته حکمران سو (۱۷ ذيقعده).

**۱٦۳۸م ۱۰٤۸ق**

سعيد خان د شاه جهان لښکر مشر د قندهار مشران ملک مغدود سدوزی او ملک علاول ترين او حيات ترين د ځان ملگري کړه او ساروان کلا ئې ونيوله. وروسته ئې د زمين داور ښار کلابند کئ او په ۱٦ صفر ئې له روښن سلطان څخه ونيوي.

سعيد خان په ۲۳ د ربيع الثاني کلابست له محراب خانه څخه ونيو او د ربيع الثانی په ۲۱ ورځ ئې له صفی قلی څخه گريشک هم ونيو او په دې ډول د قندهار ټوله سيمه د شاه جهان لښکرو لاس ته کړه (۸ جمادی الاولی).

اخوند درويزه ننگرهاری د گدای زوی په پيښور کي مړ او ښخ سو (د پښتو مخزن اسلام او فارسي تذکره الابرار و الاشرار او ارشاد الطالبين مؤلف).

**۱٦۳۹م ۱۰٤۹ق**

شاه جهان له پيښوره کابل ته راغی (۲۵ محرم) دارا شکوه ئې غزنی ته واستاوه او سعيد خان ئې د هزاره جات د پلنگتوش د غورځنگ مقابلې ته واستاوه او هغه د هزاره مشر مير اسماعيل د ۲۷ تنو مشرانو سره کابل ته راوستل (۲۱ صفر).

د قندهار مشران ملک مغدود او کامران سدوزی په کابل کي شاه جهان ته راغلل او پخپله پاچا له کابله لاهور ته ولاړ (۲۵ ربيع الثاني). قليچ خان د قندهار او سعيد خان د کابل حکمرانان سول.

ملک اودل د قندهار قومی مشر او ملک حمزه د سيستان د ملک جلال الدين زوی سره ملگري سول او د هلمند په خانشين کي په ملی غورځنگ لاس پوري کړ خو ملک اودل په جنگ کي ووژل سو او حمزه د سيستان قلعهٔ فتح ته ولاړ (شعبان).

اشرف خان هجري د خوشحال خان زوی د پښتو ديوان خاوند شاعر په اکوړه کي وزيږيدی.

قاضي تولک د بلخ قاضي القصاة په بلخ کي وفات سو.

د بنير عبداللطيف عباسی د مولينا بلخي د مثنوی او حديقه سنايي د نسخو مرتب او د لطايف اللغات مؤلف وفات شو.

**١٦٤٠م ١٠٥٠ق**

محمود ابن ولی خپل دائرة المعارف د بحرالا سرافی مناقب الاخبار په نامه د ندر محمد خان لپاره په بلخ کي په فارسي وکيښ. دا کتاب په ١٠٤٤ق شرو سوی و (خظي د شوروی کتابخانې)

علي مردان خان د کشمير حکمران د کابل او صفدر خان د قندهار او سردار خان د بنگښ په صوبداری مقرر شول (شوال).

ملک مغدود خان او کامران د سدو خان زامن د قندهار مشران دهلی ته ولاړل.

د مولانا نورالدين هروي خطاط وفات.

خواجه محمد صديق هدايت بدخشانی نقش بندی صوفی اوشاعر په ډهلی کښي وفات شو (شوال).

حسين شهابي هروي خطاط په هرات کي ژوندی و.

**١٦٤٠م ١٠٥٠ق حدود**

د اخوند قاسم شنواری پاپين خپل د پښتو فوايد الشريعه د مؤلف د ژوند وخت.

په همدغه وخت کي بابو خان د پښتو بل مؤلف ژوندی و.

خداداد سلطان (خودکی) سدوزی د خضر خان زوی د قندهار مشر و ده د خپلي سيمي ټک له غلجو سره د جلدک پل سنگي وټاکه، ړوب او بوری ئې هم ونيول.

**١٦٤١م ١٠٥١ق**

د خوشحال خان خټک حکمرانی په خټکو کي.

**١٦٤٢م ١٠٥٢ق**

د شاه صفی صفوی سپه سالار رستم خان گرجي د قندهار نيولو ته وگومارل سو، خو شاه جهان شهزاده دارا شکوه او مراد بخش د ډيرو لښکرو سره قندهار ته را واستول.

ځکه چي شاه صفی په ١٢ صفر مړ سو، نو پر قندهار لښکر کشی هم وځنډيده او دواړه شهزادگان بيرته هند ته لاړل (١٥ جمادی الاخری).

حسن خان شاملو د هرات حاکم او تکړه نستعليق ليکوال به هرات کي وفات او ښخ سو.

د سعادت خان د خوشحال خان د زوی ولادت (٦ محرم، ١٧ اپريل).

**١٦٤٣م ١٠٥٣ق**

ملک مغدود سدوزی د قندهار مشر د کابل ديوان مير يحيي سره په جنگ کي وواژه سو. نو

دی معزول سو او پر ځاي ئې میر صمصام الدوله کابل ته مقرر سو.

خلیل بیگ د غوربند او قلعهٔ ضحاک تهانه دار سو.

بهرام خان د خوشحال خان زوي وزیږیدئ (ربیع الاول، جون).

**١٦٤٤م ١٠٥٤ق**

صفدر خان د قندهار صوبدار مړ سو او پر ځای ئې سعید خان ظفر جنگ مقرر سو.

راجه جگت د کلات قلعه دار کابل ته مقرر او پر ځای ئې خان زاد خان د سعید خان زوی مقرر سو.

پردل خان بړیخ د بست او گریشک قلعه دار سو وروسته نو خان زاد خان د زمینداور قلعه دار سو او د ده ورور عبدالله کلات ته مقرر سو.

ندر محمد خان خپل زوی سبحان قلی د پلنگتوش پر ځای بلخ او بدخشان ته را واستاوه او پر قندهار هم د صفویانو د حملې خطر و، نو راجه جگت او قلیچ خان قندهار ته واستول سو (ربیع الاول).

**١٦٤٥م ١٠٥٥ق**

محمد طاهر بن قاسم (ابولقاسم) خپل کتاب عجائب الطبات په بلخ کي د ندر محمد خان لپاره تالیف کئ ( د کابل خطي کتابخانه او د ازبکستان اکادیمي علوم).

اصالت خان او علی مردان خان د ندر محمد خان مقابلې ته له کابله غوربند ته ولاړل (٢٦ جمادی الاولی) او په هندوکش او اندراب کي جنگونه وکړه. نو شاهزاده مراد بخش د ٦٠ زرو لښکرو سره د شمالی افغانستان د نیولو لپاره له لاهوره کابل ته را رهی سو.

خوشحال خان ختک د شاه جهان په لښکرو کي تر اندراب او بدخشانه ولاړ.

**١٦٤٦م ١٠٥٦ق**

شاهزاده مراد بخش له پېښوره کابل ته را ورسیدئ (٩ ربیع الثاني) او په ٢١ چاریکار ته ولاړ او د ربیع الثاني بغه ٢٢ پخپله شاه جهان هم دوهمه پلا کابل ته راغئ.

شاهزاده مراد بخش د بلخ تر نیولو وروسته کابل ته راغئ او د شاه جهان له خوا مداالمهام سعدالله خان د شمالی ولایاتو حکمران او نور حاکمان هم داسی مقرر سول:

د بلخ صوبدار بهادر خان داؤد زی.

د بدخشان حاکم قلیچ خان او نظر بهادر خویشکی.

د اندخود حاکم رستم خان او راجه پهار.

د غوري حاکم شاه بیگ خان.

د میمنې حاکم شاد خان.

د اندخود قلعاه دار دولت خان.

د خان آباد حاکم حیات ترین.

د رستاق حاکم خنجر خان.

د شبرغان حاکم جبار قلی.

د سر پل او سانچاریک حاکم خوشحال بیگ.

د آقچې حاکم شاد مان پکلي وال.

د خلم حاکم خواجه عبدالعزیز.

د درهٔ گز حاکم پهار لوانی.

د بابا شاهو حاکم محمد شاه قدیم.

د نارین حاکم شاه محمد.
د مومن آباد حاکم شیخ فتح الله.
د ایبک حاکم افلاطون بیگ.
د رباط ریزگان حاکم سلطان بایزید.
د خنجان حاکم میرک بیگ.
د دوشاخ حاکم عبدالغفور بیگ.
د فتح آباد حاکم فرخ حسین.
د قریشک حاکم محمد زمان.
د اندراب حاکم قاسم بیگ.
د کولاب حاکم جلال الدین دروازي.

سپړو زرو المانانو پر قندوز حمله وکړه، خو راجروپ د قندوز لښکري مشر دوی وشړل او ښار ئې وساته (رجب). دوی اندخود چور کړ او تر آمو واوښتل.

د شاه جهان په امر د بابر شاه د مرمرو سپین مسجد په څلویښت زره روپۍ جوړ سو.

د شاه جهان په امر د نملې باغ ودان سو.

محمد صالح کمبود (محاربهٔ بلخ) کتاب د دې ښار د کلابندۍ په شرحه کي وکیښ (د برتانیا د موزیم خطی نسخه).

محمد یوسف د شیخ رحمت الله رانکي زوی منتخب التواریخ وکیښ (د کیمبرج خطي کتابخانه).

د شاه جهان له خوا خواص خان د قندهار په صوبداري او خواجه عبدالرحمن د بدخشان بخشي او سعادت خان د ترمذ په قلعه داری او سید اسد الله د زمینداور په حکمرانی او ذوالقدر خان د کابل په قلعه داری مقرر سول او پخپله پیښور ته لاړ (۲٦ شعبان).

**١٦٤٦م ١٠٥٦ق حدود**

الهام داد د الله داد روښاني زوی د هند په ناندیر کي وفات سو.

**١٦٤٨م ١٠٥٨ق**

شاه عباس صفوی د ۵۰ زرو لښکرو سره قندهار تر دوو نیمو میاشتو کلا بندۍ ورسته ونیو (۹ صفر) او محراب خان ئې د کلا بست او زمینداور په نیولو وگوماره او پخپله بیرته د هرات له لاری ایران ته ولاړ.

څکه چي د افغانستان پر شمالي ولایتو حملې کیدې او عبدالعزیز خان د ندر خان زوی پر بلخ راتئ او پخپله ندر محمد خان هم له ایرانه راغئ نو شاه جهان کابل ته راغی او شهزاده اورنگ زیب ئې د هندوکش شمال ته واستاوه (سلخ ربیع الاول). ده د عبدالعزیز خان له لښکرو سره سخت جنگونه وکړه او هغه ناچاره سو چي تر آمو واوړي (۱۸ جمادي الاولي).

شاه جهان د رجب په میاشت کي له کابله پیښور ته رهی سو او شهزاده اورنگ زیب هم په ١٤ شعبان له بلخه کابل ته ولاړ.

له بلخه تر میمنې پوري سیمي ندر محمد خان او د ده زوی عبدالعزیز خان ته پاته سوې.

الله داد د جلال الدین روښانی زوی (رشید خان) په دکن کي وفات سو.

**١٦٤٩م ١٠٥٩ق**

دولت خان سدوزی د قندهار کوټوال ته دوهم صفوی شاه عباس یو د دوستی فرمان صادر کړ او د قندهار مشر سو، ده د صفوی حکمران زمان خان سره جنگونه وکړل، او آزاد

حکمران و، د ده په وخت کي حیات سلطان او لښکر خان د سلطان خداداد زامن د شپږو زرو ابدالی کورنیو سره ملتان ته ولاړل.

شهزاده اورنگ زیب د ملک حسن افغان په ملگري راغئ او د قندهار په ښار کي صفوی حکمران محراب خان کلابند کئ (١٤ جمادی الاولي). شاه عباس د محراب کومک ته ٣٠ زره سپاره واستول او د قندهار په سیمه کي سخت جنگونه وسوه. په دغه وخت کي شاه جهان ځلرمه پلا کابل ته راغی، خو قندهار ئې صفویانو ته پرینښود او د روژې په میاشت بیرته لاهور ته ولاړ. اورنگ زیب هم د قندهار محاصره پرینښوه او لاهور ته ولاړ (ذیقعده).

مولانا نور محمد (محمد یونس) د اباسین د کوهستان مجاهد او مدرس وفات سو.

**١٦٥٠م ١٠٦٠ق**

شاهزاده شیر خان د خضر خان سدوزی زوی د قندهار مرزبان وو ده خپل رقیب حسین د مغدود خان زوی ملتان ته وشاړه او ټولو ابدالیو تر فراه پوري دې په مشری ومانه، ابدال خان بامیزی او میر الکوزی هم د ده تابعان وو.

حاجی عبدالعلی تالقاني منشي او د انشاء د کتاب مؤلف په هند کي مړ سو.

شیخ امام الدین محمد عنایت الله د شیخ کبیر بالا پیر متی زی زوی د تاریخ انساب افغانی مؤلف په پیښور کي مړ او ښخ سو (ولادت ١ محرم ١٠٢٠ ق).

**١٦٤٣م ١٠٦١ق**

شاه جهان خپل زوی اورنگ زیب د ٦٠ زرو لښکرو ٤٠ توپو او لسو جنگی فیلانو سره د ملتان له لاري پر قندهار را واستول (١ جمادی الاولی) او شاه جهان هم پنځه پلا کابل ته راغئ (١٦ ربیع الاول). قندهار دوې میاشتي کلا بند سو، خو اورنگ زیب ناکامه کابل ته ولاړ. او شاه جهان هم له کابله په ناکامي هند ته ستون سو (رمضان) او دارا شکوه ئې د کابل په حکمراني پرینښو.

میرمن نازو توخی د سلطان ملخی لور د میرویس خان مور د پښتو شاعره د قلات په توخو کي وزیږیده.

قاضي محمد اسلم هروي مشهور عالم او د کابل قاضي وفات او په لاهور کي ښخ سو.

میرک بلخي شاعر (فکري) په اصفحان کي وفات سو.

**١٦٥١م ١٠٦٢ق**

شاه جهان خپل زوی دارا شکوه د یو لک لښکرو او ٥٤ توپو او ١٧٠ جنگي فیلانو سره د کابل له خوا پر قندهار را واستاوه او دریمه پلا ئې محراب خان صفوي په قندهار کي کلا بند کئ خو تر ٥ میاشتو کلا بندي وروسته ناکامه هند ته ستون سو (ذیقعده) او قندهار صفویانو ته پاته سو.

خواجه فاضل بیگ د کابل امیر وفات سو، قبر او شنخته ئې د کابل په عاشقان او عارفان کي ده.

**١٦٥٢م ١٠٦٣ق**

د شیخ رحمکار کستیر کاکا صاحب بن ابک صاحب مشهور صوفی او مرشد وفات ٨٠

کلن جمعه ۲٤ رجب مساوي ۲۱ جون. دئ د پیښبور د نوښاره سره ښخ او د کاکا خیلو نیکه دئ (ولادت جمعه ۱ رمضان ۹۸۳ق).

رشید خان بدیع توني لطایف الاخبار یا تاریخ قندهار وکیښ، د تیر کال د کلابندي حال (د برتانیا د موزیم او انډیا آفس خطي نسخې).

**۱٦٥۳م ۱۰٦۳ق**

عبدالقادر خان د خوشحال خان زوی د پښتو شاعر او مؤلف وزیږیدئ (۲۵ ذی حجه، نومبر).

موبد شاه په دبستان مذاهب کي د روښانیانو ښه معلومات وکښل.

توکل بیگ بن لویک (تولک) بیگ حسیني واقعه نویس په غزنی کي د شاهنامې منتخب او منثور کتاب تاریخ دلکشاي شمشیر خانی د غزني د حکمران شمشیر خان لپاره وکیښ. (د کابل خطی کتابخانه او د برتش موزیم خطي نسخه).

**۱٦٥٤م ۱۰٦٤ق**

بنگښو سره د خوشحال خان او خټکو جنگ.

مبارک خان نیازي د محمد خان زوی د بنگښ د صوبې تهانه دار سو.

**۱٦٥٥م ۱۰٦٦ق**

هادیداد د جلال الدین روښانی زوی د هند په ناندیر کي وفات سو.

**۱٦٥٦م ۱۰٦۷ق**

بهادر خان افغان د کابل مستقل صوبدار معزول او پر ځای ئې د شاه جهان له درباره رستم خان مقرر سو. د دغه کال د لوی اختر د میاشتي په اومه شاه جهان ناروغه سو او اورنگ زیب پر ولیعهد دارا شکوه غالب سو او ډهلي ئې ونیوئ.

د صالح محمد زایر بدخشي شاعر وفات.

**۱٦٥۷م ۱۰٦۸ق**

شاهزاده اورنگ زیب عالمگیر محی الدین خپل پلار شاه جهان ونیوئ او د هند پادشاه سو (غره ذیعده). دی د شاه جهان دریم زوی ؤ چي په ۱٥ ذیقعده ۱۰۲۷ق زوکړي و، ٤۰ کلن پر تخت کښینوست او خپل ورور دارا شکوه ئې وواژه.

حیات ترین د علی خان ترین زوی د کابل حکمران سو.

**۱٦٥۸م ۱۰٦۹ق**

شاه حسین د مغدود خان سدوزي زوی د هند په رنگپور کي مړ سو. دی د ملتان د سدوزو ناظمانو شجاع خان او شریف خان او مظفر خان رکن الدوله نیکه کیږي.

د اورنگ زیب له خوا په افغانستان کي دغه مامورین وو:

مهابت خان د کابل صوبدار.

مغول خان او سعادت خان د کابل کومکیان.

رعایت خان او اسحاق خان د کابل بخشیان.

میر یعقوب د کابل دیوان.

شمشیر خان د غزني حاکم.

سعید خان د بنیر او نوښار فوجدار.

**۱٦٥۹م ۱۰۷۰ق حدود**

ښالم خان د کرم خان هوتک زوی د کلات د سيمي مشر و، چي نازو د سلطان ملخی توخی لور ئي وکړه.

ملا شاه بدخشي عالم او صوفي وفات سو.

**۱٦٦۰م ۱۰۷۱ق**

ميرک هروي عالم د دار شکوه معلم او ديوان حرم په هند کي مړ سو.

**۱٦٦۱م ۱۰۷۲ق**

عبدالکريم (کريمداد) د خواند درويزه زوی د پښتو مؤلف وفات سو.

**۱٦٦۲م ۱۰۷۳ق**

محمد حسين بن حسين سبزواري محدث او اخباري زبدة الاخبار تاليف کړ ۱۷ ربيع الاول.

**۱٦٦٤م ۱۰۷٤ق**

سيد امير خان د پيښور صوبدار خوشحال خان بندي کړ (جمادی الثانيه، جنوری) او ډهلي ته ئې بندي واستاوه (رمضان، اپريل).

ضياء الدين حسين اسلام خان (والا) تخلص قطغني خوستي شاعر او د کشمير صوبدار په اکبر آباد کي مړ سو.

**۱٦٦٥م ۱۰۷٥ق**

خوشحال خان له ډهلي څخه رنتبور ته بندي واستول سو.

خرمي بدخشي شاعر او ليکوال روضة العشاق د سعدي د گلستان په تقليد وکيښ (خطی).

**۱٦٦٥م ۱۰۷٦ق**

خوشحال خان دستار نامه په پښتو نثر وکښله (۱۷ ربيع الاول، ستمبر). دا کتاب د ده د جهانداری سياسي نظريه څرگندوي.

شاه جهان چي ۳۱ کاله د هند او افغانستان پاچا ؤ، تر اته کاله حبس وروسته ۷٦ کلن په آگره کي مړ سو (دو شنبه ۲٤ رجب).

**۱٦٦٦م ۱۰۷۷ق**

امير خان د کابل صوبدار معزول سو او پر ځای ئې محمد امين بخشي مقرر سو (ذيقعده).

په پکهلی او مهابن کي د باکو او ملا څالاک او سلطان محمود گډون په مشری د پښتنو يوسفزو غورځنگ او د اټک د فوجدار کامل خان سره د دوی جنگونه چي د هزاره په جنگ کي دوه زره تنه مړه سوه (شوال).

خوشحال خان د ډهلي په بازار کي له آسه ولويدی او پښه ئې ماته سوه (غره رجب، دسمبر).

توماس هيکس د جان هيکس زوی انگريزی گرزندوی په کابل کي مړ او ښخ سو (۱۱ اکتوبر).

**۱٦٦۷م ۱۰۷۸ق**

د ډهلی له خوا حکمران شمشير خان او د يوسفزو جنگ په شاه منصور کي او د شمشير ماته (د محرم منځ، د جولايي اوايل).

مهابت خان د سيد امير خان پر ځای د کابل صوبدار مقرر سو او هغه د يوسفزو د ايلولو لپاره خوشحال خان هم له ډهلی څخه ور سره راوست.

**۱٦٦۹م ۱۰۷۹ق**

مهابت خان د مغولیه دربار له خوا د کابل او پیښور صوبدار د یوسفزو په سیمه کي د لنگر کوټ جنگي کلا جوړه کړه.

علی مکی بن طیفور بسطامي د شاهنامې د لغاتو شرح وکښله.

**۱٦٦۸م ۱۰۷۹ق حدود**

ایمل خان مهمند په خیبر کي د ایمل شاه په نامه سکه ووهله او محمد امین د کابل صوبدار ئې مات کئ او د خوشحال خان خټک په گډه اورنگزیب ته ولاړ سول.

**۱٦٦۹م ۱۰۸۰ق**

د اورنگزیب د لښکرو مشر اغر خان د کابل د صوبدار فدایي خان په مرسته په علی مسجد کي د پښتنو سره وجنگیدي، خو تر خیبر را تیر نسو.

خوشحال خان کابل ته راغئ.

میا محمد معصوم مجددي نقشبندی د حضرت شیخ احمد مجدد زوی په سر هند کي وفات سو.

محمد صالح هروي خطاط د هرات د سعدیه مسجد نوشته وکښله.

**۱٦٦۹م ۱۰۸۰ق**

سرمست خان د شیر خان سدوزی زوی د قندهار مشر ؤ.

عبدالحلیم د عبدالله زوي د اخوند درویزه لمسی د پښتو مؤلف ژوندی ؤ.

حاجي یادگار بلخي استاد نستعلیق لیکونکی ژوندی ؤ.

**۱٦۷۰م ۱۰۸۱ق**

مهابت خان د کابل صوبدار پیښور ته ولاړ (۱۰ ربیع الاخر، اگست).

شهزاده محمد اعظم له کابله لاهور ته ولاړ او امیر خان د خلیل خان زوی د کابل صوبدار او اغر خان ئې کومکي سو.

اورنگ زیب درې کاله په حسن ابدال کي پښتنو په مقابله کي تیر کړه او ډهلي ته ولاړ.

میر محمد شفیع هروي (شفیعا) مشهور خطاط، ادیب، نقاش او مذهب وفات سو.

**۱٦۷۲م ۱۰۸۳ق**

د ایمل خان او خوشحال خان په مشری د پښتنو غورځنگ د هند د مغولي حکومت پر خلاف.

د خیبر په لنډي خانه او تاتره کي د محمد امین خان صوبدار د ٤۰ زرو لښکرو سره د شنوارو او مومندو او اپریدو جنگ د ایمل خان په مشرئ او د مغولو د لښکرو تباهي (۳ محرم، مئي).

امیر خان د کابل صوبدار او اغر خان فوجي کومکي د ایمل خان سره په لغمان کي سخت جنگ وکئ.

ندایي خان د اورنگزیب نوی صوبدار پیښور ته راغئ او مستحاب مومندي مړ کئ. تر دې وروسته د ده پر ځاي بیا مهابت خان مقرر سو.

**۱٦۷۳م ۱۰۸٤ق**

د خوشحال خان جنگونه له خپل زوی بهرام خان سره چي د مهابت خان صوبدار په لمسون جنگیدئ.

خوشحال خان له دريا خان اپريدي او تاتار خان او شاه بيگ کوهاټي او ملک خواص خان او نورو پښتنو مشرانو سره د تيراه په راجگل کي لويه جرگه وکړه او پر نوښار باندی د حملې کولو فيصله ئې وکړه.

د دی کال په منځ کي خوشحال خان او تاتار اپريدي د اپريدو او خټکو په کومک پر نوښار حمله وکړه او عالمگير د پښتنو مقابلې ته شجاعت خان او مهاراجه جسونت سنگه را وليږل (١٧ شعبان).

ايمل خان مومند او پښتنو کړپه کي د عالمگير صوبدار شجاعت خان او د ده په زرو لښکر ووژل (١٨ ذی قعده = فبروري).

د دغه کال په آخره مياشت ذی حجه کي دريا خان او اپريدو د کوهاټ پر کلا حمله وکړه، خو شير محمد خان د کلا ساتندوی دوی وشړل او تاتار خان د دريا خان اپريدی ورور په دې جنگ کي ووژل سو.

**١٦٧٤م ١٠٨٥ق**

اورنگ زيب عالمگير د هند پاچا د پښتنو د مقابلې او د خوشحال خان د ماتولو لپاره حسن ابدال ته راغئ (١١ محرم = اپريل) او خوشحال خان تيراه ته ولاړ (غره ربيع الاول = جون). وروسته نو د يوسفزو سيمو ته راغئ او عالمگير پير محمد اغر خان د پښتنو مقابلې ته مقرر کئ.

شهزاده محمد اکبر او فدايي خان صوبدار د عالمگير له خوا کابل ته واستول سوه (رجب = اکتوبر). دوی د پښتنو سره ډير جنگونه وکړل او د دې کال په آخر کي فدايي خان له کابله پيښور ته راغئ.

**١٦٧٥م ١٠٨٦ق**

د پښتنو قبايلو د ايمل خان او دريا خان په مشري د عالمگير لښکر چي مکرم خان او شمشير خان ئې مشران ؤ په خاپخ کي ټوله تباه کړل، شمشير خان د دريا خان په لاس ووژل سو او مکرم خان زخمي وتښتيدئ. د خاپخ د پښتنو فتح په ربيع الاول = جون کي وه.

د خاپخ تر ماتي وروسته عالمگير بخشي الملک سر بلند خان د نو زرو سپرو سره د پښتنو مقابلې ته مقرر کئ. اغر خان ئې د جلال آباد تهانه دار او هربز خان ئې جگدلک او الله داد خان ئې لنډي کوتل او خنجر خان ئې بنگښو ته وليږل (٣٠ ربيع الاول). د دغه کال په جمادی الاخر کي (ستمبر) پښتنو هربز خان په جلدک او عبدالله خان د عالمگير منصب دار ئې په باجوړ کي وواژه.

په دغه کال کي خوشحال خان د اورنگزيب مقابلې ته د پښتنو قبايلو په تياره ولو بخت و، خو اورنگزيب ناکام له حسن ابداله لاهور ته رهي سو (١٥ شوال، دسمبر). تر دې وروسته د گنبت په جنگ کي شير محمد خان بنگښ پر خوشحال خان غالب سو او دې په جنگ کي زخمي سو (٩ ذی حجه). نظام خان د خوشحال خان زوی وفات سو (جمادی الاولي = اگست). د ده ولادت ٤ محرم ١٠٦٠ق.

**١٦٧٦م ١٠٨٧ق**

عالمگير پاچا خپل زوی محمد معظم د شاه عالم بهادر په لقب د پښتنو د مقابلې لپاره کابل

ته را واستاوه او امیر خان ئې د ده په ملگری مقرر کئ. دوي په ۲۵ جمادی الاخری (۲۵ اگست) کابل ته ورسیدل.

**۱٦۷۷م ۱۰۸۸ق**

اعظم خان کوکه (فدایي خان مظفر حسین) د کابل صوبدار مقرر سو.

په دغه کال سخته وچ کالي وه.

**۱٦۷۹م ۱۰۸۹ق**

خوشحال خان خپله فضل نامه په پښتو مثنوي منظومه کړه.

**۱٦۷۹م ۱۰۹۰ق**

سلطان ملخي توخي د زابل حکمران او د ډهلي له خوا په رسمیت پیژندل سوی و.

قاسم خان د پښتو دیوان خاوند شاعر ژوندی و.

سید حسین د پیر بابا لمسی د پښتو دیوان خاوند او د جنگنامه حسنین او خلاصة الاسلام لیکونکي ژوندی و.

**۱٦۸۰م ۱۰۹۱ق**

د کوهات په دوړه کي د خوشحال خان او بنگښو جنگ او د بنگښو ماته (رجب = اگست). دا جنگ د عالمگیر د مامورینو په لمسون د پښتنو په منځ کي اچول سوی و. خوشحال وایي:

چه په نام پښتون غوځیږی پری خوښیږی
اورنگ زیب هسی پاچا دی د اسلام

اخوند ملا سید ابلخی شاعر، خپل فارسي دیوان په بخارا کي تکمیل کئ.

**۱٦۸۱م ۱۰۹۲ق**

میر محمد عیسی همت خان امیر الامراء او د اجمیر صوبدار قطغني شاعر په اجمیر کي وفات سو.

**۱٦۸۲م ۱۰۹۳ق**

اشرف خان هجري د خوشحال خان زوی د هند په بیجاپور کي بندي سو.

**۱٦۸۲م ۱۰۹٤ق**

جلال خان (دلیر خان روهیله) داؤد زی د هند لوی پښتون صوبدار مسموم او مړ کړ سو.

ملا شریف الدین سمرقندي تاریخ راقم یا تاریخ کثیره وکیښ، چي د افغانستان د شمالی خواو احوال هم لري.

عبدالرحمن چشتي د مراة مسعودي مؤلف په هند کي وفات سو. دا کتاب د سالار مسعود غزنوی د ژوند احوال دی.

**۱٦۸۳م ۱۰۹۵ق**

د دې کال په محرم میاشت کي د خوشحال ماتي شرو سوې (دسمبر) او امیر خان د عالمگیر صوبدار په پښتنو کي نفاق واچاوه او دریا خان چي په جنگ کي زخمي سوی ؤ خپلو ملگرو خوست ته یووی او هلته مړ سو.

فقیر الله سیف خان خوستي (تخاري) د کشمیر صوبدار چي یو کشف الایات او بل کتاب ئې د هند پر راگ او موسیقي باندیي کښلی وو وفات سو (۲۵ رمضان).

**۱٦۸٤م ۱۰۹۵ق**

د خوشحال خان د پښتو اشعارو دیوان ٤۰ زرو بیتو ته ورسیدی چه په آخر کي ٤۵ زره بیته

سو.

**۱٦٨٥م ۱۰۹۷ق**

په دغه کال د پيښور په سيمو کي وچ کالي او کاختي او وبا وه.

**۱٦٨٦م ۱۰۹۸ق**

شيخ محمد امين بدخشي عالم او زاهد د قطرات در او رساله ضروريه مؤلف په کشمير کي ۷۰ کلن وفات سو (۱۱ رمضان).

سکندر خان د خوشحال خان ختټک زوی چي د پښتو شعر ديوان هم لري د مهر او مشتري قصه په پښتو نظم کړه (د ۱۰۹۸ق حدود).

**۱٦٨٩م ۱۱۰۰ق**

خوشحال خان د اپريدو په ډنبره کي ۷۸ کلن وفات او په اکوړه کي ښخ سو (جمعه ۲۸ ربيع الثانی، ۲۰ فروری، حوت). دی جنګي مشر او د پښتنو لوی شاعر او ليکوال دی.

حاجي عادل د سلطان ملخي توخي زوی د کلات د شاوخوا حکمران و.

تاش محمد قندوزي حجة الاورنګ شاهيه تاليف کي (د کابل ارګ کتابخانه). حافظ نظام مومند د ليلي مجنون قصه په پښتو نظم کړه.

د محمود بن علی ميمندی خراساني امامی عالم د اشراف العقائد، حدايق الاخبار، حياة القلوب د مؤلف وفات.

**۱٦٨٩م ۱۱۰۰ق حدود**

الله يار بن حاجي محمد يار بلخي، خپل دوه کتابونه او صاف نامه عالمګيري او اعظم نامه په هند کښي وکښل.

قاضي عبدالکريم راجن غزنوي د ملتان په امير پور کښي انيس الشعراء د ملتان د والی احمد خان بن پير خان په نامه د شعراوو پر اصطلاحاتو باندی تاليف کئ.

اخوند مياداد محمد زی د اشنغر اوسيدونکی د شيخ رحمکار مريد او د پښتو شاعر د ژوند وخت.

نازو د سلطان ملخی توخی لور د حاجي ميرويس خان مور د پښتو شاعره ژوندئ وه.

**۱٦٩۰م ۱۱۰۲ق**

آغر خان د کابل فوجدار له کابله پيښور ته تئ، په لار دی پښتنو مړ کئ او خپل انتقام ئې ځنی واخيست.

امير الامرا شير علی خان لودی د مراة الخيال تذکره په هند کي وکښله.

**۱٦٩۳م ۱۱۰۵ق**

شير خان سدوزی په کوږک کي د صفويانو لښکر پوپنا کړل، دی د قندهار د پښتنو مشر و.

**۱٦٩٤م ۱۱۰٦ق**

اشرف خان ختټک (هجري) د پښتو شاعر د خوشحال خان ختټک زوی په بيجاپور کي تر ۱٤ کالو قيد وروسته پرديس وفات سو.

**۱٦٩٥م ۱۱۰۷ق**

مصطفی خان خښي د محمد سعيد زوی افغاني عالم او لښکري مشر د امارات الکلم په نامه يو کشف الايات په هند کي تاليف کئ.

**۱٦٩۷م ۱۱۰۷ق**

شيخ محمد ضيا او شيخ نياز خرقه شريفه له بخارا او بلخه د جوزجان فيض آباد ته راوړه (يکشنبه ۲٤ محرم) چي اوس په قندهار کي ده.

**۱٦۹۸م ۱۱۱۰ق**

خواجه محمد بنگښ د پښتو ديوان خاوند شاعر ژوندی و.

محمد بديع بن ميرزا بدخشي د روضة الانساب تاريخ وکيښ.

امير خان هجري چي د پښتو شعر دوه ديوانه لری د پيښور په سيمو کي ژوندی و (د انډيا آفس خطی نسخې).

**۱٦۹۹م ۱۱۱۱ق**

قاضي مير محمد زاهد هروي د قاضي محمد اسلم زوی مشهور عالم او مؤلف د زوايد ثلاثه مؤلف او عسکری محتسب او د کابل وقايع نگار وفات او په کابل کي ښخ سو.

**۱۷۰۰م ۱۱۱۲ق**

مصطفی محمد د نور محمد زوی د کريمداد لمسی د اخوند درويزه پر مخزن اسلام باندي په پښتو الحاقات زيات کړل.

عبدالقادر خان ختک پښتو يوسف و زليخا نظم کړه (څلور زره بيته).

**۱۷۰۲م ۱۱۱٤ق**

د پښتنو مشر پردل خان له خوسته پر کابل راغی، خو د شهزاده محمد معظم لښکرو دی مړ کي.

ميرزا محمد ارشد د خواجه علی اکبر برنابادی هروي زوی شاعر او منشي او خطاط او مورخ په برناباد کي وفات سو (ولادت ئې ۱۰۲۵ق).

شاه حسين هوتک د ميرويس خان زوی د کلات په سوری کي وزيږيدي.

**۱۷۰۳م ۱۱۱۵ق**

دولت خان سدوزی د سرمست خان زوی د قندهار مرزبان او د ده زوی نظر محمد خان په ښار صفا کي د قندهار بيگلر بيگي گرگين خان گرجی په يوه شبخون کښي ووژل.

بای خان د حاجي عادل توخي زوی د زابل حکمران و.

د سيد حسن بن عبدالله بن سيد محمود پيښوری قادري مرشد وفات په پيښور کي.

غلام محمد د شير خان موگاخيل زوی د اشنغر د دواوي اوسيدونکي معراجنامه په پښتو نظم کړه، د سيف الملوک د قصې ناظم هم دئ.

**۱۷۰٤م ۱۱۱٦ق حدود**

رستم خان د خپل پلار دولت خان سدوزی پر ځای د سرور خان باميزي او کټه خان الکوزي په مرسته د قندهار مشر سو. د ده کشر وررور زمان خان په کرمان کي د صفويانو سره يرغمل و، او ده د بلوڅو په لاس صفوي لښکر د قندهار جنوب ته تباه کړل.

**۱۷۰۵م ۱۱۱۷ق**

حاجي ميرويس خان د قندهار په کوکران کي لومړۍ لو جرگه وکړه او د صفوي پاچا پر خلاف د آزادۍ غورځنگ شرو سو.

محمد صلاح سياه گردی بلخي سبحان قلی نامه وکښله.

**۱۷۰٦م ۱۱۱۸ق**

اورنگ زيب عالمگير تر ۵۰ کلو پاچهۍ وروسته نيوی کلن د هند په احمد نگر کي مړ سو (جمعه ۲۸ ذيقعده) د ده زوی شهزاده محمد

اعظم په احمد نگر کي پاچا سو (۱۰ ذی حجه).
بابا سعید د پښتو شاعر په پیښور کي ژوندی و.
صدر خان خټک د خوشحال خان زوی د دلي او شهئ قصه په پښتو مثنوی نظم کړه. په همدغه کال ده د آدم خان او درخانئ قصه پښتو کړه.
عبدالرحمن مومند د پښتو صوفي شاعر وفات او د پیښور جنوبي خوا ته په هزار خانئ کي ښخ سو.
خیر الله عارف لاهوري مسعود نامه د سلطان مسعود غزنوی پر احوال باندي په فارسي نظم کړه.
عبدالرسول د سید علی زوی د ملک فتح خان په غوښت خپل کتاب مجمع اللغات و الاسماء وکیښ (د کابل ارگ کتابخانه).

**۱۷۰۷م ۱۱۱۹ق**

حاجي میرویس خان د قندهار د مانجې په دوهمه لو جرگه کي د استقلال اعلان وکئ، او د صفویانو بیگلر بیگي گرگین خان ئې وواژه (۲۹ ذی قعده). په قندهار کي ملي حکومت جوړ سو.

**۱۷۰۷-۱۷۱۵م ۱۱۱۹-۱۱۲۷ق**

د حاجي میرویس خان د ښالم خان زوی ملي ریاست په قندهار کي.

**۱۷۰۷م ۱۱۱۹ق**

شهزاده معظم بهادر شاه چي د پلار د مرگ پر وخت په کابل کي و، له دې ښاره ولاړ، او په لاهور کي پاچا سو (د محرم سلخ) ده خپل ورور محمد اعظم د دهولپور په جنگ کي مړ کئ.

**۱۷۰۷-۱۷۱۲م ۱۱۱۹-۱۱۲٤ق**

د معظم شاه بن عالمگیر د پاچهئ دوره.

**۱۷۰۸م ۱۱۲۰ق**

گوهر خان د خوشحال خان زوی خپل کتاب قلب السیر په پښتو د افضل خان بن اشرف خان بن خوشحال خان په نامه تالیف کئ، دا د سیر نبوی یوه مجموعه ده (د پیښور موزیم خطي نسخه).

**۱۷۰۸م ۱۱۲۰ق حدود**

ملا نور محمد غلجی د ملا یار محمد کندهاري زوی په پنجوایي کي خپل پښتو کتاب نافع المسلمین د اخوند درویزه په ډول وکیښ (د پښتو ټولني خطي نسخه).
مهري هروي شاعره په هند کي ژوندئ وه.
ملا محمد علی هروي خطاط د سلطان حسین صفوي لپاره د میر خواند د روضة الصفا یو ټوک وکیښ (د کابل خطی کتابخانه).

**۱۷۰۹م ۱۱۲۱ق**

محمد خان بلوخ د هرات صفوي حکمران د قندهار میرویس خان ته په سفارت راغئ.

**۱۷۱۰م ۱۱۲۲ق**

د هرات له خوا صفوي لښکرو پر قندهار حمله وکړه او میرویس خان مات کړل او وئي شړل.

**۱۷۱۱م ۱۱۲۳ق**

۲۵ زره تنو صفوي لښکرو د خسرو خان گرجي په مشرئ قندهار محاصره کئ، مگر د میرویس خان ۱٦ زرو لښکرو دوی ټول ووژل او خپله آزادي ئې وساتله (۲۸ رمضان).

حيات سلطان دحداد د سلطان سدوزی زوی د هرات مشر و.

معزالدين جهاندار شاه د بهادر شاه زوی په دهلي کي پاچا سو.

**۱۷۱۲م ۱۱۲٤ق**

معظم بهادر شاه تر پنځه کالو پاچهۍ وروسته په ډهلي کي مړ سو (محرم).

عبدالقادر خان خټک د سعدی گلستان په پښتو ترجمه کئ او نوم ئې گلدسته پر کښيښو (۲٤ رمضان).

**۱۷۱۳م ۱۱۲۵ق**

حاجي ميرويس خان خپل ورور حاجي امکو د ډهلي دربار ته واستاوه او ډهلي تيموري دولت د قندهار ملي حکومت د حاجي ميرويس خان په مشرئ په رسميت وپيژاند.

**۱۷۱۳م ۱۱۲۵ق**

ميرمن مسرئ د قاضي احمد گل خټک لور ژوندی وه چي د پښتو فالنامه ئې نظم کړه.

**۱۷۱٤م ۱۱۲٦ق**

رستم خان صفوي حکمران ډير لښکر پر قندهار راوستل، خو ميرويس خان دوي بيا وشړل.

محمد مظفر د ملا اسماعيل زوی د افضل خان خټک په غوښتنه د اعثم کوفی تاريخ له فارسي څخه په پښتو ترجمه کئ (د پيښور د فتح محمد خټک قلمی نسخه).

**۱۷۱۵م ۱۱۲۷ق**

حاجي ميرويس خان د قندهار ملی مشر تر ۸ کالو مشرتابه وروسته وفات او په کوکران کي ښخ سو (۲۸ ذی حجه). د ده ورور عبدالعزيز ئې پر ځای کښينوست.

**۱۷۱۵-۱۷۱٦م ۱۱۲۷-۱۱۲۹ق**

د عبدالعزيز د ښالم خان زوی اقتدار په قندهار کي.

**۱۷۱۵م ۱۱۲۷ق**

مهين د پښتو شاعر خپل کتاب تذکرة الابرار د عظمت داود زی په غوښت منظوم کئ. دی پښتو غزل هم لري.

**۱۷۱٦م ۱۱۲۸ق**

صدر دوران امير الامرا بهادر خان د قندهار د شاه حسين هوتک د دربار سپه سالار او د پښتو شاعر د ژوند وخت.

**۱۷۱٦م ۱۱۲۹ق**

عبدالعزيز خان د ميرويس خان ورور د قندهار د نارنج مانۍ څخه را ولويد او مړ سو، يا خلکو وواژه (مارچ) او پر ځاي ئې شاه محمود د ميرويس ۱۸ کلن زوی پاچا کئ.

**۱۷۱٦-۱۷۲٤م ۱۱۲۹-۱۱۳۷ق**

شاه محمود د ميرويس خان زوی له قندهاره تر اصفهانه پاچا و.

**۱۷۱٦م ۱۱۲۹ق**

په هرات کي د سدوزو او ابداليو ملي حکومت جوړ سو.

عبدالله خان بن حيات سلطان سدوزی او د ده زوی اسدالله خان په هرات کي پر عباسقلی شاملو صفوي حکمران باندي ورغلل، او هرات ئې له جعفر خان څخه ونيوئ (۲٦ رمضان).

بابو جان بابی د اته غر اوسيدونکي د کرم

خان زوی د شها او ګلان قصه په قندهار کي په پښتو نظم کړه.

د محمد حسن بن محمد خراساني کیمیاوی پوهاند د شرح المفتاح فی الصناعه او شرح شذ و الذهب مؤلف وفات.

**۱۷۱۷م ۱۱۳۰ق**

ټول هرات او غوریان او کوسان او مرغاب او بادغیس او غور د هرات د سدوزو تر ملي حکومت لاندي راغلل.

په قندهار کي د هوتکو شاهي وه.

محمد شاه د خجسته اختر زوی په ډهلي کي پاچا سو (ذیقعده).

محمد حسن د ملا یحیي زوی هروي خطاط وفات سو.

د محمد یونس خیبری د پښتو دیوان خاوند شاعر د ژوند وخت.

**۱۷۱۷م ۱۱۳۰ق حدود**

ملا پیر محمد هوتک د ملا سرور اخوند کندهاری زوی (پیر افغان) خپل کتاب افضل الطرایق په پښتو مثنوی نظم کي او بل کتاب القرایض في رد الروافض ئې وکیښ.

**۱۸۱۸م ۱۱۳۱ق**

فرخ سیر د عظیم الشان زوی د ډهلی پاچا ووژل سو او رفیع الدرجات در فیح الشان زوی مړ سو او رفیع الدوله ورور ئې پر ځاي ودریدئ.

**۱۷۱۹م ۱۱۳۲ق**

د دلارام په جنګ کي اسد الله خان سدوزی د شاه محمود هوتک په مقابل کي ووژل سو. او د هرات حکومت زمان خان د دولت خان سدوزی زوی ته وسپارل سو.

**۱۷۱۹م ۱۱۳۲ق حدود**

محمد فاضل بریخ د قندهار په ښوراوک کي د روضهٔ ربانی کتاب وکیښ.

**۱۷۲۰م ۱۱۳۳ق**

زمان خان سدوزی د هرات ملی مشر صفوی حکمران صفی قلی خان په کافر کلا کي مات کئ او جعفر خان صفوي بیګلر بیګي ئې وواژه.

میرزا عبدالقادر بیدل (متولد ۱۰۵٤ق) په شاه جهان آباد کي وفات او ښخ سو.

**۱۷۲۰م ۱۱۳۳ق حدود**

محمد حافظ د محمد اکبر بارکزی زوی په قندهار کي د تحفهٔ واعظ پښتو کتاب وکیښ.

**۱۷۲۱م ۱۱۳٤ق**

شاه محمود هوتک له قندهاره پر کرمان ورغی او د هغه ځای د حاکم لطف علی خان سره ئې روغه وکړه. وروسته بیا پر اصفحان ورغی او د صفویانو پایتخت ئې محاصره کئ.

شاه حسین هوتک د میرویس خان زوی په قندهار کي پاچا و.

**۱۷۲۲م ۱۱۳۵ق**

د ګناباد په جنګ کي د شاه محمود هوتک لښکرو صفویان مات کړل (۸ مارچ).

شاه محمود هوتک اصفحان تر ۸ میاشتي کلابندئ وروسته ونیوي او د ایران پاچا سو، د صفویانو سلطنت ئې ختم کئ (۱۵ محرم) شاه حسین صفوي د ایران تاج شاه محمود ته وړاندي کئ (اکتوبر).

زمان خان سدوزی د هرات ملي مشر وفات سو او پر ځای ئې محمد خان د عبدالله خان زوی کښېنوست.

احمد خان ابدالي د زمان خان سدوزی زوی د زرغونې له نسه هرات یا ملتان کي وزيږيدي.

**۱۷۲۲- ۱۷۳۷م ۱۱۳۵-۱۱۵۰ق**

شاه حسين د ميرويس خان زوی د کندهار پاچا و.

**۱۷۲۳م ۱۱۳٦ق**

محمد خان سدوزی له هراته ولاړ او مشهد ئې څلور مياشتي کلا بند کئ مگر زوالفقار خان د زمان خان مشر زوی له ښوراوکه راغي او د هرات ملي مشر سو (تر ۱۱٤٤ق پوري).

داؤد خان هوتک د قادر خان زوی د پښتو شاعر د کندهار په کوکران کي وفات سو.

ريدی خان مومند د غياث خان زوی له کندهاره د شاه محمود هوتک سره اصفحان ته ولاړ، چي بيرته راغی په پښتو ئې محمود نامه نظم کړه. د پښتو شعر ديوان ئې هم درلود.

استاد العلماء ملا يار محمد هوتک د شاه حسين هوتک د دربار ملا د مسايل ارکان خمسه کتاب وکيښ.

**۱۷۲۵م ۱۱۳۷ق**

شاه محمود هوتک په اصفحان کي ۲۷ کلن تر اتو کلو پاچهئ وروسته ووژل سو (۱۲ شعبان) او د ده پر ځای شاه اشرف د عبدالعزيز زوی د ميرويس وراره په اصفحان کي پاچا سو.

**۱۷۲۵-۱۷۲۹م ۱۱۳۷-۱۱٤۲ق**

شاه اشرف د عبدالعزيز هوتک زوی د ايران شهنشاه و.

**۱۷۲۵م ۱۱۳۷ق**

عبدالحميد ماشو خيل د شاه گدای قصه په پښتو مثنوي منظومه کړه (۱۲۰۰) بيته.

ميرمن زينبه د حاجی ميرويس خان لور په کندهار کي ژوندئ وه او په پښتو ئې د خپل ورور شاه محمود ويرنه وويله.

**۱۷۲۵م ۱۱۳۷ق حدود**

د هوتک د سلطنت په وخت کي د ايران اداري تشکيلات او ماليات يوه نامعلوم مؤلف د تذکرة الملوک په کتاب کي د شاه اشرف هوتک په نامه سره را ټول کړل (د مينارسکي طبع لنډن ۱۹٤۳م).

**۱۷۲۵م ۱۱۳۸ق**

د هرات ملي جرگې باخرز او بادغيس ذوالفقار خان او فراه ئې رحمان خان د عبدالله خان زوی او هرات ئې الله يار خان د عبدالله خان زوی ته وسپارل (تر ۱۱٤٤ ق پوري).

**۱۷۲٦م ۱۱۳۹ق**

احمد پاشا د بغداد والی پر ايران لښکر راوستل، خو شاه اشرف هوتک دوی مات کړل.

شاه اشرف هوتک په اصفحان کي جامع مسجد جوړ کئ چي د ملا زعفران او يعقوب خان افغان نوشته د محمد علی مولوی په خط لري.

**۱۷۲۷م ۱۱٤۰ق**

شاه اشرف هوتک عثماني لښکر وشړل، او له عثماني دولت سره ئې روغه وکړه.

شاه اشرف هوتک افغان په اصفحان کي

سکه ووهله (د اصفحان موزیم). شاه حسین هوتک د کندهار پاچا له هرات او فراه څخه تر غزني او گومل او ډیره اسماعیل خان او ملتان او دره بولان پورې پاچهي کوله.

ناصر خان د کابل او پېښور او باقر خان د غزني حکمرانان و.

**۱۷۲۷م ۱۱۴۰ حدود**

میا عبدالحکیم کاکړ نقشبندي عارف په کندهار کي خپله (مقاله) وکښله، چي په هند کي چاپ سوې هم ده.

نصر الدین خان اندړ د غزني اوسیدونکی په کندهار کي د نصر په تخلص خپل پښتو دیوان د شاه حسین هوتک په دربار کي ترتیب کئ.

**۱۷۲۸م ۱۱۴۱ق**

الله یار خان سدوزی په تربت جام او کافر کلا کي د نادر شاه افشار سره جنگونه وکړل او د نادر پښه زخمي سوه او بیرته مشهد ته ولاړ.

محمد هوتک د داؤد خان زوی د شاه حسین هوتک د دربار منشي په کندهار کي پټه خزانه تالیف کړه. د ده بل تالیف خلاصة الفصاحة دي.

محمد عادل بړیڅ د محمد فاضل زوی د کندهار په ښوراوک کي محاسن الصلوة په پښتو نظم کئ.

**۱۷۲۸م ۱۱۴۲ق**

د هرات د ملیونو مشرتوب ذوالفقار خان ته وسپارل سو (۳ شوال).

**۱۷۲۹م ۱۱۴۲ق**

د خلیفه سلطان احمد خان ثالث له خوا راشد پاچا اصفحان ته د شاه اشرف هوتک دربار ته د سفیر په توگه راغی او د شاه اشرف له خوا هم محمد علی خان بلوڅ استانبول ته سفیر ولیږل سو، او د افغان او ترک روابط قائم سول.

**۱۷۲۹م ۱۱۴۲ق**

شاه اشرف هوتک تر ۵ کالو ۷ میاشتو سلطنت وروسته د نادر افشار له خوا مات سو او د ښوراوک په ژیړ غره کي د ابراهیم بلوڅ په لاس ووژل سو (ذی حجه ۲۹ نومبر). پر ایران د پښتنو سلطنت هم ختم سو.

**۱۷۳۰م ۱۱۴۳ق**

ذوالفقار خان د هرات ملي مشر د اتو زرو لښکرو سره مشهد کلابند کئ (۱۳ محرم).

**۱۷۳۱م ۱۱۴۴ق**

الله یار خان له مروچاق څخه راغي او د هرات د دفاع کار ئې په لاس کي ونیو (۱۸ صفر). ذوالفقار خان د خپل کشر ورور احمد خان سره کندهار ته ولاړل.

هرات تر یوه کال محاصرې وروسته نادر افشار ونیو (۱ رمضان) او د هرات د ابدالیانو د مشرئ وخت ختم سو.

**۱۷۳۲م ۱۱۴۵ق**

محمد فهیم د کاکا صاحب لمسی پښتو نور نامه په لنډ بحر منظومه کړه.

**۱۷۳۳م ۱۱۴۶ق**

میا عبدالحکیم کاکړ عارف د شاه حسین هوتک په حکم له کندهاره ویوست سو.

**۱۷۳۴م ۱۱۴۷ق حدود**

ملا زعفران تره کی د کندهار د شاه حسین د

دربار طبیب او ریاضي دان او شاعر د گلدسته زعفراني کتاب په طب کي وکیښ.

**۱۷۳۵م ۱۱۴۸ق**

نادر شاه د امام قلی افشار زوی د ایران پاچا سو.

ملا یونس توخی د قندهار د شاه حسین د دربار مدرس د جامع فرایض کتاب وکیښ.

عبدالحمید ماشو خیل د رکن الدین محمد بخاری شرعة الاسلام په ۱۵۰۰۰ بیته په پښتو مثنوي نظم کئ (۲٦ شوال).

**۱۷۳٦م ۱۱۴۹ق**

نادر افشار د سیستان او هلمند له خوا راغی او شاه حسین هوتک ئې په قندهار کي کلا بند کئ (د ذی قعدې اوائل).

**۱۷۳۷م ۱۱۵۰ق**

نادر افشار قندهار تر یوه کال کلابندئ وروسته له شاه حسین هوتک څخه ونیوی (د ذی حجې اوائل) او د هوتکو پاچهی تر ۳۰ کالو وروسته په قندهار کي ختمه سوه.

نادر شاه افشار د قندهار نادر آباد بنا کئ او دلته ئې سکه ووهله.

سیدال خان د ابدال خان ناصر زوی افغاني لوی سپه سالار او د ایران د جگړو فاتح او د پښتو شاعر په کلات کي د نادر شاه افشار په لاس گنبیوت او ړوند کړ سو.

شاه عالم د علی خان زوی د سلطان ملخی توخي وراره د زابل او کلات حکمران و.

تاج خان افغان (ممنون شاعر) په هند کي مړ سو.

د مسری خان مرداني پښتو شاعر د ژوند وخت. دی د اشعارو دیوان لري.

عبدالحمید ماشو خیل د پښتو لوی شاعر د پیښور په ماشو خیلو کي وفات او ښخ سو (ولادت ئې د ۱۱۰۰ (حدود) د پښتو دیوان خاوند او د نیرنگ عشق پښتو مترجم.

سعادت خان د پښتو مثنوی کیمیای سعادت منظوم کئ.

عبدالرحیم هوتک قندهاری شاعر له قندهاره فرار سو او د خراسان په ورامین او بخارا کي اوسیدي. د پښتو دیوان لري.

قلندر اپریدی د پښتو دیوان خاوند په خیبر کي اوسیدي.

**۱۷۳۸م ۱۱۵۱ق**

د نادر افشار له خوا عبدالغنی خان الکوزی د هرات مشر سو، پیر محمد خان هروي د بلوچ حاکم او حاجي اسماعیل الکوزی د اسفزار او اشرف خان غلجی د کلات حاکمان سول. نور محمد خان علی زي (میرزا افغان) د ٤٠ زرو پښتنو لښکرو مشر سو او ذوالفقار خان او احمد خان ته په مازندران کي جاگیر ورکړه سو.

شاه حسین هوتک مازندران ته نفي سو او هلته په زهرو ووژل سو (۱۰ شعبان). د ده پاچهي په قندهار کي ۱۵ کاله وه. نادر شاه د قندهار ښار وران کئ.

نادر افشار غزني ونیو او د کابل د ناصر خان او شرزه خان سره ئې جنگ ونښلاوه، رحیم داد خان د کابل کوټوال ئې کلا بند کئ، څو چي دا ښار ئې ونیو بیرته ئې ناصر خان ته وسپاره او

تر هندوکش او باميانه سيمي ئې فتح کړې.

**۱۷۳۹م ۱۱۵۲ق**

نادر افشار د پيښور له لاري پر لاهور او ډهلي حمله وکړه او هندوستان ئې ونيوئ، او د ۸۷ مليونو پونډو ثروته سره بيرته کابل ته راغي، او تر بنگښ او ډيرو پوري ئې ونيول او د درهٔ بولان له خوا قندهار او هرات ته ولاړ.

سيد جعفر روهي تدقيق التحقيق وکيښ.

مجهر بن عيسى داؤد اشرف العنوان في معرفة انساب افغان وکيښ (د بمبئي د ملا فيروز کتابخانه).

**۱۷۴۰م ۱۱۵۳ق**

نادر شاه افشار د خپلو فتوحاتو جشن په مشهد کي جوړ کړ، د ده مملکت له سنده تر فراته او له سيحونه تر بلوچو پوري رسيدئ.

ميان عبدالحکيم بن سکندر شاه سنټيا کاکړ د قندهار د سيمى نقشبندي مشهور پير او د حض الايمان مؤلف وفات او په تهل چوټيالئ کي ښخ سو (ولادت ئې ۱۰۷۰ق).

**۱۷۴۱م ۱۱۴۵ق**

نادر شاه افشار احمد خان ابدالى له مازندارنه را وغوښت او د خپلو همرکابو ابداليانو په مشرتوب ئې وگوماره.

**۱۷۴۲م ۱۱۵۵ق**

خوشحال خان توخى د على خان زوى د کلات حکمران و.

حافظ عبدالکبير د در مجالس او مناجات او معجزاتو ناظم خپل در مجالس په پښتو نظم کي.

**۱۷۴۵م ۱۱۵۸ق**

محمد اکرم هروي خطاط د هرات د سعديه مدرسې نوشته وکښله.

**۱۷۴۷م ۱۱۶۰ق**

نادر شاه افشار د خبوشان په فتح آباد کي د خپلو درباريانو له خوا ووژل سو (د يکشنبې شپه ۱۱ جمادى الاخرى).

احمد خان ابدالى او نور پښتانه د هرات له لاري له مشهده قندهار ته راغلل (رجب).

د قندهار په شير سرخ کي د پښتنو لويه جرگه جوړه سوه او په نهمه ورځ ئې احمد خان سدوزى د زمان خان زوى ۲۵ کلن ځوان په افغانى سلطنت د احمد شاه درانى په نامه انتخاب کئ او د غنمو وږى ئې د ده په بگړئ کي وتومبه (شوال ۱۱۶۰ق، اکتوبر).

تيمور شاه په مشهد کښي وزيږيدئ.

**۱۷۴۷-۱۷۷۲م ۱۱۶۰-۱۱۸۶ق**

د احمد شاه بابا ابدالي د زمان خان سدوزى د سلطنت دوره چي پايتخت ئې قندهار و.

تقى خان اخته بيگي ۲۶ کروړه روپئ د پيښور او کابل ماليات نادر شاه افشار ته وړې، چي قندهار ته راغلل نو احمد شاه دغه خزانه واخيستله.

احمد شاه غزني او کابل او پيښور له ناصر خان څخه ونيول.

اشرف خان او الله يار خان د خوشحال خان توخى زامن د کلات او توخو سرداران وو، او احمد شاه ابدالى منلي وو.

اخوند گدا د پښتو نافع المسلمين ناظم او د

دیوان خاوند شاعر ژوندی و.

معزالدین خټک خپل پښتو کتاب ربقة الاسلام په پښتو لنډ مثنوي منظوم کړ، دی د شعر دیوان هم لري.

محمد نظام معجز کابلي شاعر په ډهلي کي وفات سو.

**۱۷٤۸م ۱۱٦۱ق**

احمد شاه د دیرش زرو لښکرو سره د کابل او پیښور له لاري تر اټک او جیلم پوري ونیول او د لاهور څخه تر ۱۳ ربیع الاول ۱۱٦۱ق سر هند ته ورسیدئ، په سندهـ کي ئې میان نور محمد کلهوره پاچا کړ. د ده په امر محمد قاسم د عندلیب په نامه یو توپ په پیښور کي جوړ کړ.

احمد شاه د محمد شاه گورکاني زوی په ډهلي کي پاچا سو.

شاه حسام الله پر هند د احمد شاه د لومړی یرغل فتح نامه په فارسي منظومه کړه (د پاریس ملی کتابخانه).

علم خان اپریدی خپل پښتو دیوان ترتیب کي (د هند د تونک کتابخانه).

سردار زاهد خان سدوزی له ۱۱۳۲ ق تر ۱۱٦۱ق پوری د ملتان حکمران و.

**۱۷٤۸م ۱۱٦۲ق**

میا فقیرالله جلال آبادي ښکاپوري مرشد له ښکاپوره د حجاز په سفر ولاړ او په ۱۲ د جمادی الاولی په مدینه کي و.

قاضی نصرالله بارکزی خوانچه زی د ارغستان اوسیدونکي د احمد شاه له خوا د قندهار قاضي سو، د خان علوم کورنۍ د ده له پښته ده. د ده زوی محمد اسماعیل ژلی بیکه او د هغه زوی قاضي محمد سعید و.

ملا محمدی (املا) د علاءالدین زوی د سنگ چارک شاعر او صوفي په بخارا کي وفات سو، دو شنبه ۱۸ ربیع الاول (ولادت ۱۱۰۰ق).

لقمان خان د ذوالفقار خان سدوزی زوی د قندهار نائب الحکومه وفات سو.

**۱۷٤۹م ۱۱٦۳ق**

احمد شاه هرات ونیو او میرزا شاهرخ د نادر شاه لمسی ته ئې مشهد وسپاره او په هرات کي درویش علی خان هزاره مقرر کړ.

عابد خان سدوزی مغدورخیل د شاه حسین کړوسی د ملتان د پښتنو مشر مړ سو.

میا محمد عمر بن ابراهیم د پیښور د څوکنو اوسیدونکی خپل شمایل نبوي په پښتو منظوم کړه.

**۱۷۵۰م ۱۱٦٤ق**

احمد شاه قلات ونیو او امیر نصیر خان بلوڅ ته ئې وسپاره.

د هراته پر نشاپور حمله او نیول او عباس قلی خان ته سپارل.

وزیر شاه ولي خان مرو، میمنه، اندخود، تر بدخشانه ونیول.

شاهرخ د نادر شاه افشار لمسی په مشهد کي د احمد شاه په نامه سکه ووهله:

یافت از الطاف احمد پادشاه
شاهرخ بر تخت شاهي تکیه گاه

احمد شاه له زور آباده ملا میرزا د ملا محمد سلجوقی زوی راوست او د هرات د پای حصار

په مدرسه کي مدرس کېږ.

د وزیر شاه ولیخان بامیزی په امر شاه نظیر توپ ساز "توپ زمزمه" په لاهور کي د احمد شاه بابا په نامه جوړ کېږ.

**۱۷۵۱م ۱۱٦۵ق**

احمد شاه د لاهور جنگی سفر وکېږ او ښاغاسي عبدالله خان کشمیر ونیوېږ.

قلندر خان دهلی ته د احمد شاه له خوا په سفارت ولاړ او پنجاب، سند، کشمیر په احمد شاهي سلطنت کي داخل سوه.

حاجي ملا ولی ساکزی قندهاری ملا باشي و.

محمد علی حزین ایراني شاعر (متولد ۱۱۰۳ق متوفا ۱۱۸۰ق) په تذکرة الاحوال کي د پښتنو په لاس د ایران او اصفحان د نیولو احوال په هند کي وکیښ.

کامگار ختک د پښتو شاعر وفات سو.

**۱۷۵۲م ۱۱٦٦ق**

سردار خان جهان پوپلزی د احمد شاه په امر د کابل کلا ترمیم کړه او لس دروازې ئې ورکړې.

سید فتح علی حسیني گردیزی د سید عوض خان زوی مورخ او شاعر او مؤلف په هند کي تذکره ریخته گویان وکښله (د ده وفات ۱۲۲٤ق).

**۱۷۵۳م ۱۱٦۷ق**

احمد شاه سند ته ولاړ او بیا ئې مشهد محاصره کېږ او نور محمد خان افغان ئې د شاهرخ میرزا نایب وټاکه او ټول خراسان ئې په هرات پوري ونښلاوه.

میرمنو د لاهور حاکم مړ سو او احمد شاه د ده زوی میر مومن ته لاهور وسپاره.

په ٤ محرم ۱۱٦۷ق احمد شاه سند ته ورسیدی او د ښکار پور ولایت ئې په قندهار پوري وتاړه او محمد مراد یاب خان د نور محمد زوی ئې د سربلند خان په لقب د سند پر تخت کښیناوه.

ملا محمد غوث د اخوند ترکمان بن تاج خان زوي چه له کندهاره پیښور ته تللی و د احمد شاه له خوا د پیښور لوي قاضي سو. ده د منطقو پر میرزا باندي حاشیه کښلې او د احمد شاه بابا عرفاني خبري ئې د شرح الشرح په کتاب کي بیان کړي.

میرزا هادي عشرت د احمد شاهی دربار منشي په پیښور کي یو قصر جوړ کېږ چي تاریخ ئې "مسکن عشرت هادی آباد" دئ.

د کندهار په دربار کي د سند سفیر گدومل هندو و، او د احمد شاه سفیر په سند کي اسماعیل خان پني و.

دوهم عالمگیر د جهاندار شاه زوی د ډهلي پاچا سو.

**۱۷۵٤م ۱۱٦۸ق**

په کندهار کي لومړی موزیم (بیت الاشراف) جوړ سو (ربیع الثاني).

**۱۷۵۵م ۱۱٦۹ق**

آزاد خان افغان په اصفحان کي سکه ووهله (د اصفحان موزیم).

غلام محی الدین خان افغان په هند کي د

احمد شاه ابدالی (ظفر نامه) د میرمنو قمر الدین خان په نامه وکښله (د لاهور پوهنتون خطی نسخه). ملا عبدالرشید د حسین زوی په لنگر کوټ کي پښتو مثنوی او درسي کتاب رشید البیان وکیښ (د فقه احکام).

**۱۷۵٦م ۱۱۷۰ق**

د شاهزاده تیمور په امر حضم افگن توپ په لاهور کي جوړ سو او په پنجاب کي ۲۰۰ کښتۍ جوړي سوې.

احمد شاه دهلي په ۷ د جمادی الاولی ۱۱۷۰ ق ونیوی. دوهم عالمگیر ئې د هغه ځای پر تخت کښیناوه او د هغه وریره ئې شهزاده تیمور ته وغوښته. نظام الدوله ئې د دهلي وزیر او نجیب الدوله ئې سپه سالار مقرر کړ.

په مکه کي د افغاني حاجیانو لپاره سلیماني کاروانسرای د احمد شاه په امر حاجي عبدالکریم بارکزي او حاجي محراب خان نورزي جوړ کړ (ربیع الاول غره ۱۱۷۰ق).

په هرات کي نوی کلاوی او پل مالان جور سول.

بي بي صاحبه بنت کامران د شاه محمود هوتک ماینه په کابل کي مړه او ښخه سوه (سه شنبه ۹ رجب شنخته ئې په کابل کي ده).

واقف بتا لوي مشهور شاعر په لاهور کي د شهزاده تیمور حضور ته راغي.

شاکر خان سدوزی له ۱۱٦۳ تر ۱۱۷۰ق د ملتان حکمران و.

**۱۷۵۷م ۱۱۷۱ق**

محمود المنشي د ابراهیم حسیني زوی د احمد شاه د دربار منشي تاریخ احمد شاهي له ۱۱٦۰ تر ۱۱۷۱ق پوری وکیښ (د برټش موزیم او لنین گراد خطي نسخې).

**۱۷۵۸م ۱۱۷۲ق**

یوه خراساني شاعر چي د قاسمي لمسی و د حسین خان فراهي د خراسان د حاکم په خواهښت نادر نامه به ۱۷ زره بیته کي د احمد شاه بابا په نامه منظومه کړه (ربیع الاول، د کراچي موزیم خطي نسخه).

په کندهار کي د شاه واله اشرف الانهار جوړه سوه.

اختیار خان بامیزی د احمد شاهي دربار مهر بردار و.

**۱۷۵۹م ۱۱۷۳ق**

احمد شاه د هندو دتا ۸۰ زره لښکر په شمالي هند کي مات کړل (جمادی الاخری).

**۱۷٦۰م ۱۱۷۳ق**

شاه عالم د دوهم عالمگیر زوی د ډهلي پاچا سو.

محسن الملک معتمد الدوله یعقوب علی خان بامیزی په ډهلي کي د احمد شاه له خوا مقرر سو چي دا ښار له مرهټانو څخه وساتي.

یاقوت خان خواجه د ملتان صوبدار سو.

سردار علی محمد خان سدوزی په ملتان کي د پښتنو مشر و.

**۱۷٦۰م ۱۱۷٤ق**

احمد شاه د ٦۰ زرو لښکرو سره د پاني پت پر ډگر د لسو لکو مرهټانو او هندوانو سره جنگ وکړ او په ٦ د جمادی الاخری ۱۱۷٤ق ئې بری

ومونډ. دوه لکه تنه ووژل سوه، ۵۰ زره آسان او ۲ لکه غوايي او ۵۰۰ فيلان او ۲۲ زره بنديان ئې ونيول. وروسته ئې شاه عالم د ډهلي پر پاچهي پرېښو.

په همدغه کال کي احمد شاه د کندهار اوسني ښار بنا کئ او شهزاده تيمور ئې د هرات حکمران کئ.

سردار شجاع خان سدوزی لومړي پلا تر ۱۱۹۷ق پوري د ملتان حکمران و.

**۱۷٦۱م ۱۱۷۵ق**

په پنجاب کي د جيسا سنگه شورش او په ۱۱ رجب ۱۱۷۵ق له دوي سره د احمد شاه جنگ او ماتول او پر دوي بری او تر ۱۱۷۷ق پوري په پنجاب کي پاتيدل. احمد شاه بابا يو سفارت چين ته واستاوه.

د تاشقرغان (خلم) د ښار بنا چي په ۱۱٦۵ق نوی شروع سوي وه، په ۱۱۷۵ق د شهزاده سليمان او عبدالله خان په امر بهرام خان د هغه ځای حاکم تمامه کړه.

ملا شير محمد هوتک کندهاري د اسرار العارفين پښتو ناظم او د تجويد افغاني ليکوال په قندهار کي وفات سو (ولادت ئې ۱۰۹۲ق).

**۱۷٦۱م ۱۱۷۵ق حدود**

شاه عزت الله مجددي له کابله يارکند ته تللی و چي اولاده ئې هورې وه.

**۱۷٦۲م ۱۱۷٦ق**

حافظ مرغزي د مردان پښتو شاعر احمد شاهي شاهنامه په پښتو مثنوي نظم کړه.

**۱۷٦۳م ۱۱۷۷ق**

احمد شاه سلطان مصطفی خان خليفه عثماني ته وليکل چه دی په مدينه کي يو مسجد جوړول غواړي مگر خليفه جواب ورکی او وئي نه منل. دا ليک په دفتر همايون نمبر ۳ کي ساتلی دئ (استانبول).

د احمد شاه په امر زمان خان د لاش کلا په فراه کي جوړه کړه.

په هرات کي د حسين شاملو باغ جوړ سو.

معراج الدين خټک خپل طبی مثنوي دليل العليل منظوم کئ.

**۱۷٦٤م ۱۱۷۸ق**

شاه غلام محمد مجددي نقشبندي صوفي په پېښور کي وفات او ښخ سو، د ده اولاده په کندهار کي وه.

**۱۷٦۵م ۱۱۷۹ق**

واقف بټالوي مشهور شاعر کندهار ته راغی.

**۱۷٦٦م ۱۱۸۰ق حدود**

محمدي صاحبزاده د ميا عمر څوکني زوی د پښتو ديوان خاوند شاعر خپل ديوان ترتيب کئ.

استاد احمد علی خان د توره باس باروت ساز زوی له ملتانه کندهار ته راغي او د ده زوی پاينده خان په کابل کي د آهنگری او باروتو کارخانې جوړي کړې.

قاضي دل محمد افغان په طب کي بحر الفوائد تاليف کئ ۵۵۸ مخه.

سردار محمد شجاع خان سدوزی دوهمه پلا تر ۱۱۸٦ پوری د ملتان حکمران و.

**۱۷٦۷م ۱۱۸۱ق**

شاه ولی خان وزير له کندهاره د ٦ زرو سپرو سره بلخ ته ولاړ او وروسته پخپله احمد شاه هم د هرات له لاري ميمنې ته ورسيدي او د بخارا د پادشاه مراد بي سره ئې درياي آمو سرحد وټاکه.

پير معظم شاه د پير محمد فاضل د پيښور د پير سباک اوسيدونکي د پښتنو تاريخ (تواريخ رحمت خاني) په پښتو وکيښ (يوه مقدمه په فارسی اوه مقامات). دا کتاب په هند کي د حافظ رحمت خان بړيڅ لپاره کښل سوی دئ، چي د مؤلف ماخذ يو بل پښتو کتاب (تواريخ افاغنه) و، چي په ۱۰۳۱ق کښل سوی و، او مؤلف ئې خواجو مليزی و.

کاظم خان شيدا د افضل خان خټک زوی چي هند ته شړلی سوي و خپل د پښتو ديوان ئې ترتيب کئ.

علی خان د پيښور د شاوخوا اوسيدونکي خپل پښتو ديوان بشپړ کئ.

مير غياث الدين غياثي د ميرک بدخشي زوی چي د فارسي شعر ديوان لري په بدخشان کي وفات او په فيض آباد کي ښخ سو (ولادت ۱۱۱۷ق).

**۱۷٦۸م ۱۱۸۲ق**

احمد شاه په سند کي د حيدرآباد ښار بنا کئ.

خرقه شريفه له جوزجانه د کابل له لاري شاه ولی خان کندهار ته يووړه (يکشنبه ۹ ربيع الاول).

وکيل الدوله عبدالله خان پوپلزی په ميدان کي (قلعه دراني) ودانه کړه.

**۱۷۲۹م ۱۱۸۳ق**

احمد شاه مشهد ته ولاړ او نصير خان بلوڅ هم د ۲۰ زرو بلوڅانو سره د ده ملګری و. هلته ئې نصرالله ميرزا د شاهرخ زوی د نادر افشار لمسی پر تخت کښيناوه او ګوهر شاد د شاهرخ لور ئې تيمور شهزاده ته وغوښته. په ۸ د صفر ۱۱۸٤ق قندهار ته را ورسيدئ د مجمل التواريخ ليکوال وايي چي احمد شاه په دغه سفر کي درې لکه سپاره او اوه سوه توپه لرل.

ميرزا محمد هادي متخلص په عشرت هروي د هرات منشي باشي او شاعر ژوندی و.

ملا عبدالله زوری او اباسهل او ملا مسکين په هزاره ګي لهجه شعرونه ويلي دي.

د کابل د شاه شهيد اسحاق ختلانی پر هديره ګنبده جوړه سوه. شهزاده داراب په کابل کي حکمران او ملا عبدالله قاضي او ملا شاه بيګ مفتي و.

د افضل خان خټک د اشرف خان زوی د خوشحال خان لمسی وفات. دی د پښتو تاريخ مرصع او پښتو کليله دمنه مؤلف دئ.

محمد مسعود د پيښوري لوی نقشبندي صوفي وفات سو (ذيحجه).

**۱۷۷۰م ۱۱۸٤ق**

حافظ رحمت خان بړيڅ په بريلي کي د پښتو خلاصه الانساب وکيښ (رجب).

حافظ محمد صادق په هند کي په فارسي تواريخ رحمت خانی وکيښ (اوه مجلسه د لندن

موزيم).

**۱۷۷۱م ۱۱۸۵ق**

د شهزاده تيمور په امر په هرات کي يو لوی توپ جوړ سو.

قاضي عبدالرسول دراني پوپلزی ته چي د عسکر قاضي و د خان بالاستقلال مرتبه ورکړ سوه او شيخ الاسلام سو.

محمد اعظم د خيرالزمان حسيني دومړ زوی چي مورخ او مفسر و وفات سو. ده د قرآن تفسير او معيار العلوم ليکلي دي.

اخوند ملا گندم علی د هرات د خلچان کلی مشهور عارف ۸۵ کلن وفات سو (ولادت ئې ۱۱۰۰ق).

**۱۷۷۲م ۱۱۸٦ق**

احمد شاه پسله ۲٦ کاله سلطنته په جمعه ۲۰ رجب ۱۱۸۸ق د قندهار د توبی په غره کي مړ او په قندهار کي ښخ سو. په قندهار کي د ده زوی شهزاده سليمان د شاه ولی خان وزير په سعی پادشاه سو، خو شهزاده تيمور له هراته راغی، او شاه ولی خان ئې په بکوا کي مړ کئ او په قندهار کي پادشاه سو.

د شاه ولی خان وزير سره اعتماد الدوله دوست محمد خان او شکرالله خان د ده زامن هم ووژل سوه.

سردار محمد شريف خان سدوزی تر ۱۱۸۷ق پوري د ملتان حکمران و.

**۱۷۷۲-۱۷۹۲م ۱۱۸٦-۱۲۰۷ق**

تيمور شاه شيخ عبدالطيف د لوی افغانستان پادشاه و.

**۱۷۷۲م ۱۱۸٦ق**

شجاع خان دسدوزی د ملتان حکمران په بهاولپور کي مړ سو.

تيمور شاه شيخ عبدالطيف د وکالت په منصب او التفات خان خواجه سرای خزانه دار او نور محمد خان بابړ ئي امين الملک او فتح الله خان سدوزی ئې خپل نديم او مير هزار خان الکوزی ئې د خپل قوم به سرداري او قاضي فيض الله ئې مدار المهام او ملا عبدالغفار جديد الاسلام ئې د ديوان په مستوفي گری وټاکل. شاهزاده همايون د قندهار او شاهزاده سلطان محمود د هرات حکمرانان سول.

نظام الدين عشرت سيالکوتي شهنامۀ احمدي په فارسي نظم کړه د احمد شاه بابا په نامه.

پير محمد کاکړ خپل کوچنی کتاب معرفة الافغاني د شهزاده سليمان بن احمد شاه ابدالي په نامه وکيښ.

**۱۷۷۲م ۱۱۸٦ق**

حسين علی يوسف زاده د احمد شاه بابا کرامت نامه وکښله (د کابل خطي کتابخانه).

محبت خان د حافظ رحمت خان بړيڅ زوی اخبار محبت په هند کي وکيښ.

**۱۷۷۳م ۱۱۸٦ق**

تيمور شاه پايتخت له قندهاره کابل ته تبديل کئ او په کابل کي د سردار جهانخان او ديوانبيگي عبدالله خان او قاضي فيض الله خان او مراد خان پوپلزائي او علی رضا خان موسوي مستوفي او اڅکزو په نامه کوڅې جوري سوې.

**۱۷۷٤م ۱۱۸۸ق**

په قندهار کي عبدالخالق خان سدوزی ياغي سو، خو تيمور شاه دی ونيوي او ړوند ئې کړ او سردار پاينده خان بارکزي ته ئې د سرفراز خان لقب ورکړ.

حافظ رحمت خان د شاه عالم خان بړيڅ زوی د هند پښتون جنگي سردار او مورخ او شاعر د خلاصة الانساب مؤلف په جنگ کي ووژل سو او د هند په بريلي کي ښخ سو.

کوديزي شاعر د جلات او محبوبا قصه په پښتو مثنوی نظم کړه.

**۱۷۷۵م ۱۱۸۹ق**

وکيل الدوله ديوان بيگي عبدالله خان پوپلزی په کابل کي يوه ماڼۍ د بالا حصار سره جوړه کړه.

وکيل الدوله پر فراه رود پل جوړ کړ.

سردار فتح الله خان سدوزی له ملتانه د تيمور شاه دربار کابل ته راغئ او د شاهي دربار خاص نديم سو.

**۱۷۷٦م ۱۱۹۰ق**

تيمور شاه د احمد شاه بابا د قبر گنبده او باغ په قندهار کي جوړ کړه.

ميا عمر څوکني د پښتو مشهور پيشوا او مؤلف وفات او د پيښور په څوکنو کي ښخ سو.

استاد محمد ياسين معمار له قندهاره د تيمور شاه په امر کابل ته راغئ، د کابل د معمارانو کورنۍ د ده اولاده ده.

محمد نور بن محمد حسن بن عبدالحبيب توخی نورخيلی جامع السلوک عربی په قندهار کي وکيښ. دی د ميا فقير الله شاگرد دئ.

مسعود گل پاسنی په پښتو يو تاريخي مثنوي نظم کړ (د لنډن موزيم خطي نسخه).

اخوند ملا خدابخش د قندهار او سند ملا باشی و، دی د ملا ولي ساکزي زوی دئ چي تر ۱۲۱٦ق پوري لا ژوندی و.

فيض الله د ملا بابړ موسی خيل کاکړ زوی په قندهار کي د تحقيق التوبه رساله په عربي وکښله. د ده بله رساله د منطق مبادي دي.

**۱۷۷۷م ۱۱۹۱ق**

سردار جهان خان پوپلزی سپه سالار د قندهار په دل آرام کي مسموم او په قندهار کي ښخ سو.

**۱۷۷۹م ۱۱۹۳ق**

په پيښور کي د فيض الله خان خليل او ارسلا خان مومند بغاوت او د هغو وژل او د څمکنو کلی چورول او د ياقوت خان خواجه سري وژل.

د پښتو شاعر بيدل د ژوند وخت د اشنغر په اتمانزو کي.

د کابل بالا حصار نوي کلا جوړه سوه.

کاشي راو په هند کي د احمد شاه او مرهټانو د جنگ تاريخ وکيښ (د برتانيا موزيم خطي نسخه).

کريمداد خان باميزی د احمد شاهي دربار عرض بيگي د کشمير حکمران و.

نواز خان خټک د خوشحال خان کړوسی د پښتو شاعر او خطاط په کابل کي و. د ده ژوند تر ۱۱۹۷ق پوری يقيني دي.

**۱۷۸۰م ۱۱۹۳ق**

خواجه عبدالکریم کشمیري له نادر افشاره تر تیمور شاه پورې وقایع په بیان واقع کتاب کې وکښل (د لندن موزیم خطي نسخه).

**۱۷۸۰م ۱۱۹۵ق**

میرزا محمد رفیع سودا د میرزا محمد شفیع کابلي زوی د اردو ژبې مشهور شاعر او ملک الشعراء په هند کې وفات سو (ولادت ئې ۱۱۲۵ق په ډهلي کې).

ملا عبدالطیف صدر العلماء وفات سو.

شاه فقیر الله بن عبدالرحمن حصارکي جلال آبادي نقشبندي مشهور عالم او روحاني مرشد په ښکارپور کې وفات او ښخ سو (۳ صفر). دی د احمد شاه ابدالي مرشد و. د قطب الارشاد او مکتوباتو او فتح الجمیل او ډېرو نورو پښتو او فارسی او عربی تالیفاتو خاوند.

په هند کې د عروج و خروج احمد شاه ابدالی کتاب تالیف سو (د مانچستر خطي نسخه).

د تیمور شاه په فرمان د کروخ د موقوفاتو متولي توب خواجه محمد سعید ته وسپارل سو چې د سلطان بابا لاش له اولادې څخه یو عارف او شاعر متخلص په ''سیدا'' و، او د شعر دیوان لري.

**۱۷۸۱م ۱۱۹۲ق**

تیمور شاه ملتان له سکهانو څخه بیا ونیو او هغه ئې شجاع خان سدوزی ته وسپاره.

محمد علی انصاري د هدایت الله خان زوی په هند کې تاریخ احمد شاهي وکیښ (د بریتانیا موزیم).

پیر محمد کاکړ خپل د پښتو دیوان ترتیب کئ.

**۱۷۸۲م ۱۱۹۷ق**

نائب امین الله د میر زایي خان لوگري زوی د لوگر په برکي راجان کې وزیږیدی، مور ئې د کمال خان وردک لور وه.

میر عبدالله د پښتو سواتي شاعر د ننگرهار اوسیدونکی د پښتو دیوان ''جام محبت'' خاوند او صوفي وفات سو (۲۵ رجب) ولادت ئې ۱۱۳۰ق کال دئ.

**۱۷۸٤م ۱۱۹۹ق**

د فارس میرزا محمد کلانتر چې د نادر افشار معاصر او ملگري و، تر ۱۱۹۹ق پورې ئې خپلې لیدني وکښلې چه د هوتکو آخرني حال هم لری (د تهران چاپ ۱۳۲۵ش).

قاضي محمد اکبر شاه د قاضي محمد غوث زوی د پیښور لوی قاضي و. محمد خان هزاره د محمد شاه خان زوی د تیمور شاه په فرمان د باخرز حاکم بالاستقلال مقرر سو (۸ ذی حجه).

**۱۷۸۵م ۱۲۰۰ق**

امو خان د اشرف خان توخی زوی د کلات د سیمې مشر و.

میان محمد عمر د محمد ابراهیم زوی د باجوړ د میا کلي اوسیدونکی (د څوکنو میا) مشهور عالم او مرشد او مؤلف وفات او د پیښور د څوکنو کلي کې ښخ سو (یکشنبه ۱٦ شعبان) ولادت ئې ۱۱۵۰ ق. تالیفونه ئې: (۱) معالی شرح امالي (۲) توضیح المعاني پښتو

منظوم (۳) د افغانانو شجره نسب (٤) شمایل نامه په ۱۱٦۳ق پښتو (٥) مخمس درود شریف په پښتو.

حافظ الپوري خپل پښتو دیوان ترتیب کړ.

مسعود بن عبدالله د آدم خان او درخانۍ قصه تالیف کړه.

محمد نور بن محمد حسن بن عبدالحبیب توخی کندهاري خپل کتاب جامع السلوک وکیښ (عربی).

**۱۷۸٥م ۱۲۰۰ق حدود**

بابه خان ریکا باشي او د ده زوی سرفراز خان د کابل د ریکاني مشران او د لښکر منصبداران وو، دا د ریکا قبیله احمد شاه له کردستانه را وستلي وو.

سردار رحیمداد خان د حاجي جمال خان بارکزی زوی د افغاني دربار د سلطنتي اسنادو محافظ او مهر بردار و. د جلال آباد د بهسود او د ښکارپور د ګړي یسین محمد زی د ده له پښته دی.

میرزا محمد هاشم بهشتي د احمد شاه بابا او تیمور شاه د حضور منشي "نګارستان سلطاني" وکیښ چي سیاسي او ادبي معلومات لري.

یوه نامعلوم مؤلف پښتو تذکرة الملوک د سدوزو په تاریخ کي وکیښ (د راورتي خطي نسخه).

محمد جعفر شاملو خراساني چي د احمد شاه سره د پاني پت په جنګ کي ملګری و، په هند کي منازل الفتوح د دې جنګ پر احوال وکیښ (د برتانیا موزیم خطي نسخه).

**۱۷۸٦م ۱۲۰۱ق**

مدد خان د تیمور شاه له خوا ځخه په سند کي د تالپورانو سر وکوټلي او بیا ئې میر فتح خان د سند حکمران کړ.

ملا حسن ساکزی د کندهار د تلکان پښتو او فارسي شاعر او عارف خپل فارسي دیوان تکمیل کړ (تحفة المدایح).

د کابل په بالا حصار کي د وکیل الدوله عبدالله خان پوپلزی په امر یو خانقاه جوړه سوه (پنجشنبه ۱ جمادی الاخری).

وکیل الدوله عبدالله خان پوپلزی د علی خان قندهاري زوی چي شاعر، اداره چي، او لښکري لوی وزیر و، په غزني کي وفات او ښخ سو (دو سنبه ۲۲ ذی قعده).

**۱۷۸۸م ۱۲۰۲ق**

د علیم الله بن عتیق الله بن فضل الله بلخي حنفي صوفي او فقیه او د زبدة الرویات د مؤلف وفات (ولادت ئې ۱۱۰۹ق).

**۱۷۸۸م ۱۲۰۳ق**

په کشمیر کي د آزاد خان ښورښت او د هغه آرامول دغه وقایع په "جنګ نامه آزاد خان" کي په فارسي منظوم سوی دي.

د تیمور شاه په فرمان شهداد خان پوپلزی د ننګرهار مستأجر او حاکم د جلال آباد کلا جوړه کړه. میر هوتک خان افغان پوپلزی د خپلو فارسي اشعارو کلیات ترتیب کړ، ١٤ زره بیته.

**۱۷۸۹م ۱۲۰٤ق**

د بخارا شاه مراد معصوم مرو ونیوله، او تیمور شاه دریا آمو د ده سره سرحد وټاکه.

تیمور شاه په کابل کي یو لوی قصر جوړ کړ.

**۱۷۹۰م ۱۲۰۵ق**

مولوي محمد عمر ساکزی د پښتو تجوید مؤلف په قندهار کي وفات سو.

**۱۷۹۱م ۱۲۰٦ق**

د شاهزاده محمود د هرات د حکمران په امر خان علوم قاضي القضاة احمد خان د هرات جامع بیا ودانه کړه.

سید ابو الحسن عنوان د جرم بدخشان شاعر ووژل سو (ولادت ئې ۱۱۲۳ق).

**۱۷۹۲م ۱۲۰٦ق**

اسدالله خان نورزی په ډهلي کي د تیمور شاه سفیر او غلام احمد خان ئې وقایع نګار و. د هند له خوا وجیه الدین سفیر کابل ته راغئ چي تیمور شاه وجیه الدوله لقب ورکئ.

**۱۷۹۲م ۱۲۰۷ق**

تیمور شاه تر ۲۲ کلو سلطنت وروسته ٤٦ کلن په کابل کي په یکشنبه ۷ شوال وفات او ښخ سو (ولادت ئې ۱۱٦۰ق). پر ځای یې د ده زوي شاه زمان پادشاه سو او د کابل پر تخت کښېنوست.

**۱۷۹۲-۱۸۰۰م ۱۲۰۷-۱۲۱۵ق**

زمانشاه د تیمور شاه زوی د لوی افغانستان پاچا و.

**۱۷۹۲م ۱۲۰۷ق**

رکن الدوله نواب مظفر خان سدوزی او امین الدوله سردار محمد خان د یار محمد خان سدوزي زوی کابل ته راغلل، او دواړه بیرته د ملتان او کچهي حکمرانان سول.

نواب مستجاب خان بړیڅ په هند کي ګلستان رحمت وکیښ.

سید انور شاه د تیراه په کلا کي د پښتو دیوان ترتیب کئ.

قنبر علی خان اورکزی د پښتو دیوان خاوند شاعر په پیښور کي مړ سو (پنجشنبه ۱۱ رجب).

میرزا محمد خلیل مرعشي په مجمع التواریخ کي د هوتکو فتوحات په ایران کي بیان کړه (د تهران چاپ ۱۳۲۸ش).

شاه زمان حافظ شیر محمد خان د شاه ولیخان وزیر زوی ته د مختار الدوله اشرف الوزراء لقب ورکئ او قاضي القضات مدار المهام فیض الله دولت شاهي ئې بندي کئ (شوال).

**۱۷۹۳م ۱۲۰۷ق**

شهزاده همایون چي د قلات نصیر خان بلوڅ ته ئې پناه ور وړې وه، دغه خان ئې شفاعت نامه د شاه زمان حضور ته راولیږله.

**۱۷۹٤م ۱۲۰۸ق**

د کابل شاهي باغ او دلکشاه قصر له بالا حصاره سره جوړ سوه.

شاه زمان د سکهانو د دفع لپاره پیښور ته ولاړ، خو بیرته قندهار ته را وګرزید او خپل ورور همایون ئې په لهیه کي ونیو او د حسن قزلباش په لاس ئې ړوند کئ، بلخ یې هم بیا ونیو.

د انگريزانو دوه تنه استاځي کابل ته راغله، چه يو ئې سيد غلام محمد خان نوميدئ.

**۱۷۹۵م ۱۲۱۰ق**

قاسم على افريدى خپل پښتو ديوان په هند كي ترتيب كئ (۲۰ ربيع الاول ۱٦ اكتوبر).

**۱۷۹۵م ۱۲۰۹ق**

محمد على خان انصاري په هند كي بحر مواج د درانو د عصر پر احوال باندى تاليف كئ (د لنډن موزيم).

ملا سعدالله خروټى قندهارى چه پر جلالين او مولوى عبدالغفور ئې حاشيې ليکلي دي وفات سو.

د زمان شاه له خوا ځخه شاه غفران الله مجددي بخارا او خوقند ته په سفارت ولاړ.

**۱۷۹۵م ۱۲۱۰ق**

د کابل د چهل ستون قصر په هند کي د شاه زمان لپاره جوړ سو.

په حسن ابدال کي شاه زمان د سکهانو سره وجنگيد او لاهور ئې بيا ونيو.

رحمت داوي قندهارى شاعر د ليلي مجنون قصه په پښتو د سردار عبدالله الکوزى د کشمير د والي او د شاه زمان سدوزى په نامه نظم کړه، دى پښتو ديوان هم لري.

آقا محمد خان قاجار پر مشهد تعرض وکئ او شاهرخ ئې بندى کئ د ده زوي نادر ميرزا د هرات له لاري شاه زمان ته بناه راوړه. قاجارى پاچا محمد حسين قراقوزلو کابل ته سفير را واستاوه او شاه زمان هم خپل سفير کدو خان درانى ايران ته وليږلئ.

ړوند شهزاده همايون په کابل کي بندي و.

**۱۷۹۵م ۱۲۱۰ق**

قاضي محمد حسين خان ملا پيښورى د مير زاهد د منطق پر حاشيه بله حاشيه وليکله.

گل محمد د هلمند د مالگير اوسيدونکي پښتو شاعر خپل پښتو ديوان بشپړ کئ.

حاجي درويش بهادر خان صوفي او شاعر د حاجي جمال خان بارکزى زوى په قندهار کي ژوندى ؤ (د محمد رحيم خان امين الملک او محمد کريم خان امين الملک پلار).

شيخ الاسلام مير خيرالدين د شاه زمان د دربار ملا او قاضي القصات ؤ.

**۱۷۹٦م ۱۲۱۱ق**

د ډهلى سفير سيد محمود خان کابل ته راغئ او شاه زمان د ډهلى د ميرزا محمد اکبر د وليعهدئ تصديق وکئ.

شاه زمان د جيلم او سند دوابي ته احمد خان بارکزى او د راوي او چنار ناوې ته حسن خان قزلباش حاکمان مقرر کړل. محمد خان توخي او بوستان خان او نورالله خان ختک د اوه زرو سپرو او سلو زنبورکو او څلورو توپو سره د دغو دوو ولاياتو د سرحداتو ساتني ته وگومارل سوه.

شهزاده قصير د هرات نائب الحکومه او سردار احمد خان نورزى او سردار زمان خان باميزى د هرات د لښکر مشران او مشکى خان خواجه سردار ضراب خاني او باروت سازئ مشر او قليچ خان تيموري د هرات قلعه بيگي سو.

د شاه زمان په امر سردار شیر محمد خان بامیزی نادر میرزا افشار بوت او د افغانستان په حمایت ئې د مشهد پر تخت کښیناوه.

هارون خان د حاجي جمال خان محمدزی زوی د فارسي ژبې خورا ښه شاعر په ګریشک او قندهار او کابل او هند کې ژوندی و، د ده د شعر دیوان هم سته.

**۱۷۹۷م ۱۲۱۲ق**

شاه زمان سدوزی د جنوری په اوله لاهور ته ولاړ، او په ١٦ مارچ بیرته کابل ته راغئ.

د هند د رامپور نواب غلام محمد خان د فیض الله خان روهیله زوی کابل ته راغئ او د شاه زمان څخه ئې کومک وغوښت، چې د ده ولایت بیرته ور ونیسي (رجب).

په دې کال شاهزاده سلطان منصور د کابل حاکم، او جان نثار خان امیر الامراء قولر اقاسی ئې مختار کار ؤ. حسن خان توپساز په کابل کې د شاه زمان په امر د زبر زنګ توپ جوړ کئ.

د کابل په بالا حصار کې بنګله طلا جوړه سوه.

**۱۷۹۸م ۱۲۱۲ق**

په هرات کې شهزاده محمود یاغي سو، او شاه زمان ورغي، هرات ئې ونیوئ، او شهزاده قصیر ئې د هرات حکمران کئ (١٤ اکتوبر). محمود، کامران او فیروز الدین سدوزی شاهزادګانو تهران ته فتح علی شاه ته پناه یووړه (٢٨ رمضان).

شاه زمان ګدوخان سفیر، تهران ته واستاوه، چې قاجاري پاچا سدوزي شاهزادګان د شاه زمان پر خلاف ونه لمسوي.

شاه زمان له هراته کابل ته را ستون سو او لاهور ته رهي سو (دسمبر).

زمان شاه له خراسانه ١٢ زره کوره ناقلین د کابل سیمو ته را وکوچول.

مظفر خان رکن الدوله د شجاع خان سدوزی زوی د تیمور شاه له خوا د ملتان ناظم سو.

رنجیت سنګه د شاه زمان په فرمان د پنجاب حکمران سو، او د مهاراجه لقب ورکړ سو.

شاه زمان خپل ١٥ کلن زوی شجاع الملک د پیښور حکمران کئ.

شاه صفي الله صفي مجددي شاعر او صوفي د یمن په حدیده کې وفات او ښخ سو، دی د شعر دیوان لري او څلور کتابونه ئې په تصوف کې کښلي دي (ولادت ئې ١١٥٦ق).

میر عزت الله له اټکه خپل سفر د یارکند پر خوا بلخ، بامیان، کابل، پیښور او بخارا له لاري شرو کئ (٢٧ رجب). ده په ١٢٢٧ ق د ولیم مور کرافت په حکم خپله سفر نامه هم وکښه، چې یوه برخه ئې په ١٨٢٥م له کلکتې څخه چاپ سوه.

شیخ رحم علی هندي د ایسټ انډیا کمپني په امر راغي، او (بیان حالات منازل کابل از بلدهٔ شاه جهان آباد) ئې وکیښ.

**۱۷۹۸م ۱۲۱۳ق**

شاه زمان د خپل ورور د مقابلې لپاره قندهار ته ولاړ (٦ جولایي).

د شاه زمان د وژلو دسیسه چې د میان غلام

محمد هندي په لمسون د ده په کوټه کي په کندهار کي جوړه سوې کشف سوه او ۱۳ تنه سرداران چي په دسيسه کي ئې لاس درلود د شاه زمان په مخ کي ووژل سوه، چي سردار پاينده خان بارکزی هم و، مگر د ده زوی فتح خان ايران ته وتښتيد، او هلته شهزاده محمود ته ورغئ. غلام محمد درويش هم هند ته وتښتيدي خو پر لاري ونيول سو او ووژل سو (۱۳ رمضان).

علامه حبيب الله قندهاري محقق د مولوي فيض الله موسی خيل زوی په قندهار کي وزيږيد.

د افغانستان صادرات ايرا ن ته د کاله څلور مليونه روپی وې، او د ايرانه واردات تر ۳۰ مليونو روپي رسيدل.

شاه زمان د هند د بيا نيولو لپاره د يو لک عسکر سره پيښور ته ورسيد (۲۵ اکتوبر).

انگريزانو د هند د دفاع لپاره د ايران په دربار کي د افغانستان پر خلاف فعاليت شروع کئ چه قاجاری حکومت پر هرات حمله وکي، او د شاه زمان توجه د هند له خوا را وگرزوي.

امام الدين حسيني چشتي په هند کي تاريخ حسين شاهي د سدوزو پر احوال او شاه زمان باندي وکيښ.

معتمد الدله رحمت الله خان سدوزی د شاه زمان په فرمان وزير اعظم سو، او توره باس خان پوپلزی تهران ته واستول سو، چي د ايران صدر اعظم حاجي ابراهيم د شهزاده محمود له لمسولو لاس واخلي.

د شاه زمان د سلطنت رجال:

۱ــ رحمت الله خان سدوزی صدر اعظم معتمد الدوله.

۲ــ مختار الدوله حافظ شير محمد خان وزير او د درانو سردار.

۳ــ امين الملک نور محمد خان بابړ مهتمم ديوان ماليات.

٤ــ ميرزا علی رضا خان قزلباش مستوفي ديوان اعلی.

٥ــ ميرزا مير ابراهيم موسوي مشرف.

٦ــ مير محمد علی خان موسوي کفايت خان منشي.

۷ــ مير احمد خان موسوي منشي.

۸ــ ميرزا شريف خان قزلباش منشي باشي.

۹ــ مير هوتک خان پوپلزی د روغه دفتر او هر کاره باشي.

۱۰ــ التفات خان او يوسف خان خواجه سرا.

د شاه زمان کار داران:

۱ــ عبدالله خان مخلص الدوله پوپلزی د کشمير حکمران په ٤۰ لکه روپي اجاره چي فقط ۷ لکه ئې خزانې ته رسيدې نقدی يا تحفه.

۲ــ مظفر خان صفدر جنگ سدوزی د ملتان حکمران درې لکه روپې.

۳ــ عبدالرحيم خان هوتک د ډيرو اجاره دار په نه لکه روپې.

٤ــ مير فتح علی خان تالپور د سند مير شپږ زره لښکر.

۵- د قلات بلوڅان خانان نصير خان او محمود خان سپږ زره سپاره.

٦- زر داد خان پوپلزی د پيښور حکمران په اوه لکه روپې اجاره.

۷- عبدالله جان نثار خان د کابل حکمران.

۸- امين الدوله محمد خان سدوزی د لهيه حکمران.

۹- شهزاده قيصر د هرات حکمران.

۱۰- شهزاده حيدر د قندهار حکمران.

۱۱- په شمالي ولاياتو کې محلي ميران.

۱۲- احمد خان بارکزی شاهنچي باشي د جيلم حکمران.

۱۳- نواب جمال خان د قصور حکمران.

۱٤- ملک محمد عظيم خان د کالا باغ حکمران.

۱۵- امير گونه خان زعفران د خبوشان حکمران.

۱٦- ابراهيم خان شادلو افشار د اسفراين حکمران.

۱۷- ابراهيم خان کرد د اسفزار حکمران.

۱۸- عباس قلي خان بيات او جعفر خان بيات د نشاپور حکمران.

۱۹- جلال خان پوپلزی د کابل مستوفي.

په دې ډول د شاه زمان مملکت له لاهوره او کشميره او سنده تر نشاپوره و، چې جنوبي خوا ته ئې بحيره عرب و.

د شاه زمان عسکر:

۱۲ زره غلامان مغول او قزلباش.

۱۲ زره سپاره همرکابه چې امين الملک ئې مشر و.

۳۰ زره قندهاري سپاره.

۳۰ زره پياده.

۱۵ زره سپاره په سند او ملتان کې.

په جنگې سفرو کې گرده سل زره سپاره.

**۱۷۹۹م ۱۲۱٤ق**

د شهزاده محمود او وزير فتح خان خطر له ايرانه ډير سو، شاه زمان خپل ورور شجاع الملک په پيښور کې پريښو، کابل او قندهار ته راغی (۳۰ جنوری).

هارون خان د حاجي جمال خان بارکزی زوی د دري تکړه شاعر د گرشک حکمران ؤ.

**۱۸۰۰م ۱۲۱۵ق**

د توره باس خان ابدالي افغاني سفير تر مذاکراتو وروسته فتح علی شاه قاجار د شاه زمان په نامه يو خط وکيښ او خراسان يې خپله پدري موروثه وبلله، مگر شاه زمان پخپل جوابي فرمان (۱۸ جمادی الاخری ۱۲۱۵ق) کې ورته وکښل، چې که پر افغاني حدودو تجاوز وسي جواب به يئ په توره در کړه سي.

حضرت شاه د مردان اوسيدونکی پښتو شاعر خپل ديوان ترتيب کئ.

مدرس فيض الله اخوند زاده د اشنغر اوسيدونکی د پښتو ذخيرة القراء کتاب وکيښ (رمضان).

**۱۸۰۱م ۱۲۱٦ق**

جان ملکم د انگريز سفير په تهران کې له فتح علی شاه سره معاهده وکړه، چې که د افغانستان پاچا پر هند حمله وکي نو به د

قاجاریانو لښکر پر افغانستان باندي راځي.

شهزاده محمود او وزیر فتح خان له ایرانه راغلل او قندهار يې ونیوئ. شاه زمان له کابله ورغي او سردار احمد خان نورزی د شاه زمان د ۳۰ زرو لښکرو سره وزیر فتح خان ته ور واوښتل او شاه زمان مات سو، له تازي رباطه کابل ته راغي (صفر).

شاه محمود سدوزی ته په قندهار کي د ایران د قاجاري پاچا د تبریک مکتوب ورسیدئ او انگریزانو د هندوستان د نیولو رقیب شاه زمان په دې چم هیسته کئ.

شاه زمان له بالا حصاره د ننگرهار پر خوا رهي سو او شاه محمود په بالا حصار کي پاچا او سردار فتح خان شاه دوست يې وزیر سو (ربیع الاول اوائل).

شاه زمان ونیول سو او ړوند کړ سو، وزیر اعظم سردار رحمت الله خان بامیزی او ورور يې سردار خان او محمد زمان بامیزی په بالا حصار کي ووژل سوه.

د وزیر فتح خان په فرمان ملا محمد غني قزلباش د کابل د مراد خاني، خیابان، وزیر آباد د امامیانو په قضا مقرر سو (شعبان).

د شاه محمود سدوزی په فرمان نائب امین الله لوگري د لوگر او بتخاک خان سو، چي لقب يې امین الدوله او نائب السلطنه و.

شجاع الملک د شاه زمان سکه ورور د پيښور له خوا حمله وکړه، خو د اشپان په جنگ کي مات سو او بیرته خیبر ته ولاړ.

د وزیر فتح خان فرمان د فتح الله خان امین الملک په نامه صادر سو، چي د امین الله خان بره کي لوگري لپاره دوه سوه تومانه مواجب مقرر دئ (۱۹ صفر ۱۲۱٦ق).

**۱۸۰۲م ۱۲۱۷ق**

شهزاده کامران د خپل پلار شاه محمود له خوا د قندهار نائب الحکومه سو.

**۱۸۰۳م ۱۲۱۸ق حدود**

میر هوتک خان (افغان) د زمان خان پوپلزی زوی خپل د فارسي شعر دیوان ترتیب کئ.

غلجي قبایل شاه محمود ته وښوریدل او وزیر فتح خان د لسو زرو لښکرو په مرسته له دوی سره ډیر جنگونه وکړه، او سپږ زره تنه ئې مړه کړه.

غلجیان چي شاه محمود ته یاغي سوي ؤ په سجاوند کي مات سول، او د دوی مشر عبدالرحیم خان او دوه زامن يې په توپ کي والوزول سوه. په کابل کي د مختار الدوله شیر محمد خان ښورښت.

**۱۸۰۳م ۱۲۱۹ق**

په کابل کي د شیعه اوسني جنگ ونښت او خلکو بلوا وکړه، شاه محمود ونیول سو، او شاه شجاع پادشاه سو، بالا حصار ته راغی (۱۳ جولایي) او وزیر فتح خان قندهار ته ولاړ. ړانده شاه زمان نه پریښنو چي د شاه محمود سترگي ړندې سي، دی يې په بالا حصار کي بندي کئ، او د شاه شجاع د سلطنت لومړئ دوره تر ۱۲۲۵ق پوري وه.

شاه شجاع تر جلوس وروسته دغه لوړ

مامورین مقرر کړل:

مختار الدوله شیر محمد خان بامیزی وزیر.

شهزاده حیدر د شاه زمان زوی د قندهار نائب الحکومه.

گلستان خان اڅکزی مستوفي الممالک.

محمد اکرم خان پوپلزی امین الممالک گل محمد خان پوپلزی نظام الملک جلال خان پوپلزی د کابل مستوفي.

فتح الله خان شاهي مهر بردار.

شیردل خان دراني د کابل حاکم.

میر هوتک خان پوپلزی د شاهي دفتر مهتمم.

میرزا علی عسکر منشي.

ابو الحسن خان خزانه دار.

شیخ الاسلام محمد یوسف د قندهار لوی قاضي.

حاجي رسول خان هوتک شاه عالم خیل غلجي (د میرویس خان له کورنۍ څخه) په کابل کي اوسیدي.

**۱۸۰٤م ۱۲۱۹ق**

شاه شجاع د ۳۰ زرو لښکرو سره کشمیر او پنجاب ته ولاړ او سند ئې بیا ونیو، د کامران او قیصر مخالفت له شاه شجاع سره جاري ؤ.

**۱۸۰۵م ۱۲۲۰ق حدود**

قاضي محمد اکبر خان ملا د قاضي محمد غوث زوی په پیښور کي د محمد زاهد بن محمد اسلم پر تعلیقاتو یوه شرحه وکښله، دغه تعلیقات د علامه جلال دواني پر شرح تهذیب باندی دي.

قاجاریانو د انگریزانو په لمسون پر هرات حمله وکړه خو ناکام ولاړل.

**۱۸۰٦م ۱۲۲۰ق**

نواب محبت خان د حافظ رحمت خان بړیځ زوی ریاض المحبت د پښتو تاریخ په هند کي وکیښ.

میان محمدي صاحبزاده د میان عمر څوکني زوی د پښتو دیوان خاوند، شاعر وفات او د پیښور په څوکنو کي ښخ سو. آثار یې ریاحین الصلوه ۱۱۹۰ق، مقاصد الفقه ۱۲۰۲ق، د پښتو شعر دیوان.

**۱۸۰٦م ۱۲۲۱ق**

نواب محبت خان بړیځ د ریاض المحبه په نامه د پښتو گرامر په هند کي وکیښ.

دوهم اکبر د شاه عالم زوی په دهلي کي پر تخت ناست و تر ۱۲۵۳ق پوري.

**۱۸۰۷م ۱۲۲۲ق**

عبدالله خان مخلص الدوله د جمعه خان الکوزي زوی د کشمیر حکمران هلته وفات سو، او پر ځاي ئې د شاه شجاع له خوا عطا محمد خان بامیزی د شیر محمد خان مختار الدوله زوی مقرر سو.

دوهم الکسندر د روس پاچا او ناپولیون په تیلسیت کي د هند د گډ یرغل نقشه د ایران له خوا وټړله.

د هرات مشهور صوفي اسلام گروخي د قاجاریانو سره د شکیبان په جنگ کي شهید او په کروخ کي ښخ سو (ولادت یې د میمنې په هبرک کي ۱۱۳۸ق).

میرزا سنگ محمد بدخشي د بدخشان د

امیرانو تاریخ وکیښ.

مصطفی د محمد ابراهیم هروي زوی (مخلص) د خپل پیر شیخ سعدالدین انصاری شرح حال نشأة القدس په کابل کي وکیښ.

سید محمود الموسوي د افغاني څلورو قبیلو احوال او شجرې ترتیب کړې د چهار قبیله افغان په نامه (د برتانیا موزیم خطي نسخه).

عبدالرحمن عارض بدخشي شاعر وفات سو.

## ۱۸۰۹م ۱۲۲٤ق

شاه شجاع د کابل له بالا حصاره پیښور ته ولاړ او ملا عاشق شنواري ئې چي شاه زمان ئې شاه محمود ته په لاس ورکړی و په توپ کي والوزاوه او د کوه نور غمی ئې واخیست.

په پیښور کي د انګریز ایلچي ایلفنسټون له شاه شجاع سره دفاعی معاهده د فرانس او ایران د حملې پر خلاف وکړه، چي په ۱۷ جون ۱۸۰۹م لارډ منتو د هند ویسراي تصدیق کړه.

میر مجتبی الفت د میر مرتضی کابلي زوی د دري شعر دیوان خاوند په کابل کي وزیږیدئ.

امین الملک وزیر اکرم خان د حاجي درویش خان محمدزی زوي او عبدالغفور خان پوپلزی د نملې په جنګ کي ووژل سوه.

## ۱۷٤۹-۱۸۰۹م ۱۱٦۳-۱۲۲٤ق

د پیښور د سیمو مالیات د افغانستان د سدوزو حکومت ته ۷۵۹،۵۵۰ روپی وې هره روپي ۱۰ شاهي.

ملا ولیداد کاکړ په قندهار کي د عین العلم ترجمه په پښتو مثنوي وکړه.

## ۱۸۱۰م ۱۲۲۵ق

شیخ سعد الدین احمد انصاري د عبدالغفار زوی مشهور مجذوب صوفي او شاعر او مؤلف ۸۵ کلن وفات او کابل په ده یحیي کي ښخ سو (ولادت ئې رمضان ۱۱٤۰ق). د ده منثور او منظوم آثار تر ٤۳ پوري رسیږي.

شاه شجاع پیښور ته ولاړ او وزیر فتح خان د شهزاده قیصر په ملګرې له قندهاره راغی، او شاه شجاع هم له پیښوره را وګرزید او په ده مزنګ کي ئې شهزاده او وزیر فتح خان مات کړل او دوی بیرته قندهار ته ولاړل.

میر واعظ سید احمد د کابل د ښار پیش امام په کابل کي ووژل سو (د اګست اوایل د جمادی الاولی اواخر).

اشرف الوزراء مختار الدوله حافظ شیر محمد خان او حاجي میر احمد خان د شاه ولي خان بامیزي وزیر اعظم زامن په پیښور کي ووژل سوه.

## ۱۸۱۱م ۱۲۲۵ق

شاه محمود د بالا حصار له زندانه ووت او د وزیر فتح خان په مرسته ئې شاه شجاع د قندهار په جکان کي مات کئ او هغه ملتان ته ولاړ، خو شاه محمود کابل ته راغی بیا په بالا حصار کي پاچا سو.

شهزاده عباس د تیمور شاه زوی له بند څخه وتښتید او په کوهدامن کي ئې د پاچهي اعلان وکئ.

ملا یوسف عطار متخلص په مقتول دغه واقعې په فارسي مثنوي نظم کړې.

**۱۸۱۲م ۱۲۲٦ق**

شاه محمود او وزير فتح خان د کشمير د نيولو لپاره پيښور ته ولاړل، شهزاده عباس د سيد اشرف او نظر محمد او شاخل په ملگري کابل ونيوئ. خو سردار دوست محمد خان له پيښوره راغي او بالا حصار ئې ونيو، او سيد اشرف او سيد عطا ئې د پيل تر گونډو لاندي کړه.

په پيښور کي سخته وچ کالي وه.

مور گرافت انگريز د روس او شمال غربي هند پر تجارت خپل راپور ترتيب کئ (د هند آرشيف).

ابراهيم خان جمشيدی د کابل د عاشقان و عارفان (عبدالسلام او عبد الصمد د جابر زامن د خواجه عبدالله انصاري هروي لمسيانو) هديره جوړه کړه چي ډېر ليک لري.

**۱۸۱۲م ۱۲۲۷ق**

وزير فتح خان له عطا محمد خان باميزي بن شير محمد خان مختار الدوله څه کشمير ونيوئ او سردار محمد عظيم خان ته ئې وسپاره.

امير محمد انصاري د مير محمد زوی په کلکته کي د سعدی گلاستان په پښتو ترجمه کئ (د لنډن موزيم خطی نسخه).

**۱۸۱۳م ۱۲۲۸ق**

انگريزانو چي مير عزت الله هندي يارکند او بخارا ته ليږلی و، له بلخ او کابله بيرته هند ته ولاړ (ذي حجه). د ده سفر نامه په ۱۸۲۵م په کلکته کي چاپ سوه، چي اصل ئې په انډيا آفس لنډن کي دئ.

قاضي عبدالکريم د قاضي دادالله زوی د قاضي محمد غوث لمسی په پيښور کي نصاب التوحيد وکيښ.

مسعود گل د قاضي عبدالرحمن پيښوری محتسب زوی د سردار محمد عظيم خان په نامه خپل فارسي کتاب عجائب الاخبار وکيښ ٤٦٧مخه (د پيښور موزيم خظي نسخه).

نواب الله يار خان بړيڅ د حافظ رحمت خان زوی پښتو عجائب اللغات په هند کي تاليف کئ.

**۱۸۱۳م ۱۲۲۹ق**

حاجي رحمت الله خان د حاجي دريا خان پوپلزی زوی د کوهدامن اوسيدونکي وزير او سردار وفات او هوري ښخ سو (۱۷ شعبان).

**۱۸۱٤م ۱۲۳۰ق**

وزير فتح خان بيا سند او کشمير ونيول، سکهان ئې په اټک کي مات کړل او کشمير ئې سردار محمد عظيم خان ته وسپاره.

ميا نعيم متي زی د قندهار په ناکودک کي خپل پښتو ديوان بشپړ کئ (١٦ ربيع الثانی).

قاسم علی اپريدی په هند کي د خپلو پښتو اشعارو کليات ترتيب کي (د پيښور اسلاميه کالج خظي نسخه).

شهزاده فيروز الدين د تيمور شاه زوی په هرات کي مشر و.

**۱۸۱۵م ۱۲۳۱ق**

آغا اسمعيل شاه د سند د ميرانو له خوا د سفير په توگه پيښور ته د شاه محمود سدوزی دربار ته راغئ.

**۱۸۱۶م ۱۲۳۲ق**

قاجاریانو بیا هرات محاصره کړ خو هراتیانو له هغه ځایه وشړل او وزیر فتح خان هرات ته راغئ.

عایشه درانی د یعقوب علی خان بارکزی لور خپل فارسي دیوان په کابل کي ترتیب کړ (۱٦ رجب ۱۲۳۲ق).

میر عبدالکریم ندیم بن اسماعیل بخاری افغانی (احوال خوانین افغان و کابل و بخارا و خوقند) په فارسي وکیښ چي تر احمد شاهي جلوس وروسته د افغانستان تاریخ لري.

**۱۸۱۷م ۱۲۳۳ق**

وزیر فتح خان تر کهسانه مځکي په هرات پوري بیا ونښلولې (ذی حجه).

ملا احمد بن اسماعیل الکوزی قندهاري لوی قاضي او محقق په قندهار کي وفات سو (٦ ربیع الثاني).

د ده تالیلفونه:

۱ـ بیان الوافیه لطوایف الصوفیه.

۲ـ رساله کاشفه د توحید وجودي شهودي تحقیق.

۳ـ رساله فارقه.

ملا پیر محمد د اسماعیل الکوزي یعقوب زی زوی د ملا احمد قاضي ورور، خپل کتاب عقیدة المشایخ و العلماء په قندهار کي وکیښ. د ده بله رساله وافي نومیږي.

عبیدالله احمدی میاګل د ځوکنو د میا عمر صاحب زوی د هفت پیکر لیکوال او د پښتو عبرت نامی او شمایل نبوي او د دیوان شعر ناظم (غریب تخلص) وفات سو.

**۱۸۱۷م ۱۲۳٤ق**

آغا اسماعیل شاه د حیدر آباد سند د میرانو او حاجي شیر محمد خان د خیرپور د میرانو له خوا په افغاني دربار کي سفیران وو او د وزیر فتح خان سره هرات ته ولاړل.

شاهزاده کامران عبدالمنصور خان بارکزی مشهد ته د سفیر په توګه فتح علی شاه قاجار ته واستاوه او هغه د قاجاري پاچا مکتوب کامران ته راوړي چي باید وزیر فتح خان ړوند کي.

شاهزاده کامران له قندهاره هرات ته راغي او وزیر فتح خان ئې ونیوئ او ړوند ئې کړ چي په ټول افغانستان کي کورني جنګ ونښت.

**۱۸۱۸م ۱۲۳٤ق**

د بارکزو سردارانو او کامران او محمود جنګونه او د وزیر فتح خان وژنه د وردګو په سید آباد کي.

شاه زمان ړوند پاچا له مدینې منورې څخه د سلطان محمود ثانی په نامه یو خط وکیښ (محرم).

د وزیر فتح خان وروڼو د ده د مرګ په انتقام د سدوزو سره جنګونه وکړه چي سردار دوست محمد خان کابل ونیوی، نو یې پر شهزاده سلطان علی بن تیمور شاه د پاچا نوم کښیښو.

ملا عبدالحلیم کاکړ قندهاري په عربی ژبه خپل کتاب "رد حلیمیه علی مطاعن احمدیه" د ملا احمد قاضي د بیان الوافیه په رد کي وکیښ.

عبدالکریم کاکړ قندهاري د عین العلم عربی پښتو منظومه ترجمه د زین العلم په نامه وکړه.

**۱۸۱۹م ۱۲۳۵ق**

ټول افغانستان د بارکزو وروڼو (د سردار پاينده خان د زامنو) په لاس کي ولويد. فقط هرات شاه محمود ته پاته سو. رنجيت سنگه کشمير ونيوئ.

**۱۸۲۰م ۱۲۳٦ق**

علامه حبيب الله قندهاري د امام غزالی منهاج العابدين په پښتو په قندهار کي منظوم کئ

ملا زبردست کاکړ په قندهار کي روضة النعيم په پښتو نظم کئ.

**۱۸۲۳م ۱۲۳۸ق**

سردار محمد عظيمم خان ۳۸ کلن په لته بند کي وفات او په عاشقان و عارفان کي ښخ سو (ذی حجه).

کابل د ده د ناپوه زوی سردار حبيب الله په لاس کي ولويد (ولادت ئې ۱۲۰۰ق).

محمد فضل الله ولد غلام نبی مجددي په قندهار کي ٥٤ کلن وفات سو، دئ د عمدة المقامات مؤلف دی (ولادت ۱۱۸٤ق قندهار).

شمس الدين کاکړ د قندهار د کلچاباد اوسيدونکي خپل پښتو ديوان ترتيب کئ.

لعل محمد عاجز د پير محمد زوی چي د عبدالشافی په لقب د تيمور شاه د دربار طبيب او د ديوان خاوند شاعر و په کابل کي وفات سو.

**۱۸۲٤م ۱۲۳۹ق**

په کابل کي د سردار حبيب الله او شيردل خان او دوست محمد خان مقابله او د بارکزو وروڼو په منځ کي د لوی افغانستان د خاورو سره ويشه.

جنيدالله حاذق هروي د يوسف زليخا قصه په فارسي نظم کړه (طبع لکهنو ۱۳۳۳) د ده وفات ۱۲٥۹ق.

**۱۸۲٤م ۱۲٤۰ق**

نور محمد بن ميرزا محمد خراساني خپل کتاب سراج التواريخ د هند په کرناټک کي بشپړ کئ (۱۹ جمادی الاولی).

عبدالمنصور خان بارکزی ابازي افغاني اخرني حاکم له ښکارپوره نواب ولي محمد خان لغاري را ويوست.

**۱۸۲٤م ۱۲٤۰ق حدود**

علی اکبر اورکزی د قاسم خان زوی د تيراه اوسيدونکي خپل پښتو او فارسي ديوان گلشن افغان ترتيب کئ (د ايروان شوروی خطي نسخه ٥۳۸).

امير د مردان د سوابي پښتو شاعر د تميم انصاری قصه نظم کړه.

دوستم د سوابي د زيدي شاعر خپل پښتو کتاب مدح الابرار نظم کئ.

**۱۸۲٥م ۱۲٤۱ق**

هندي مهاجرين سيد احمد بريلوي او مولوي اسماعيل قندهار او کابل ته راغلل.

ويليم مورکرافټ د لندن جراح او آس پيژوندونکي د ايسټ انډيا کمپني له خوا د اسانو د پلټنې لپاره له کشميره کابل او بلخ او ميمنې ته راغي، او په اندخوي کي مړ سو، د ده سفر نامه په ۱۸٤۱م له لنډن نه ويلسن چاپ کړه.

شیخ فرح الدین د قندهار نقشبندي صوفي او مؤلف ۸۲ کلن وفات او په هرات بازار کي ښخ سو (۱۱ ذیقعده).

**۱۸۲٦م ۱۲٤۱ق**

شاه شجاع الملک سدوزی خپله روز نامه له ۱۲۱٦ تر ۱۲٤۱ق پوري ولیکله چه په کابل کي په ۱۳۳۳ش چاپ سوه.

انگریزي ترجمه ئې په ۱۸۲۷م په کلکته کي ختم او په ۱۸۳۹م خپره سوه، یوه نسخه ئې د برتانیا په موزیم کي سته چي له ۱۸۱٦ تر ۱۸٤٥م احوال لری.

**۱۸۲٦م ۱۲٤۲ق**

سردار دوست محمد خان د غزني حکمران کابل ونیو.

د سردار پاینده خان زامنو د لوی افغانستان د تقسیم میثاق سره لاس لیک کي، ۱۰ ربیع الثانی (د کابل موزیم).

سردار شیردل خان د سردار پاینده خان زوی ٤۱ کلن په قندهار کي وفات او ښخ سو (جمعه ۲٥ محرم).

محمد علم خان وکیل الدوله د عبدالله خان زوي ۸٥ کلن په میدان کي وفات او په غزني کي ښخ سو (۲۷ جمادی الثانیه).

گل احمد د کریم شاه بټي زی زوی د پښتو جواهر الانبیا او شهزاده رت و بیدمن او د توتي او مینا قصو ناظم وزیږیدي. ده هدایة المؤمنین په ٥ ذی حجه ۱۲۹٥ق پښتو نظم کئ.

**۱۸۲٦-۱۸۳۸م ۱۲٤۲-۱۲٥٤ق**

چارلس میسون په افغانستان کي و، او خپل یاد داشتونه ئې په دريو ټوکه کي په لنډن کي چاپ کړل ۱۸٤۲م.

**۱۸۲۸م ۱۲٤٤ق**

د پېښور د یوسفزو په سیمه کي سردار یار محمد خان محمدزی د سید احمد او هندي مهاجرانو په جنگ کي ۳۹ کلن وواژه سو (محرم).

میان عبدالغفور د سوات آخوند ډیر شهرت وموند، او د هندي مهاجرینو سید احمد او مولوي اسماعیل سره په جهاد کي ملگري سو.

**۱۸۰۰-۱۸۲۹م ۱۲۱٥-۱۲٤٥ق**

شاه محمود د تیمور شاه زوی د افغانستان پاچا و (په وقفو).

**۱۸۲۹م ۱۲٤٥ق**

په هرات کي شاه محمود د کامران په امر ووژل سو.

سردار غلام محمد طرزي د سردار رحمدل خان محمدزي زوی په قندهار کي وزیږیدئ.

ملا حسن ساکزی د قندهار د تلکان اوسیدونکي شاعر او عارف چي پښتو او فارسي دیوان لری ٦۸ کلن په تلکان کي وفات او ښخ سو (ولادت ئې ۱۱۷۷ق).

سردار پردل خان محمدزی په قندهار کي وفات او ښخ سو (شنبه ۳۰ ذی قعده).

سردار دوست محمد خان په کابل کي د عبدالصمد خان تبریزي په مشری په نوي ډول زر تنه فوج نظام ترتیب کئ.

نوره دین د پښتو عامی شاعر د پېښور په سیمو کي اوسیدئ.

مستوره غوري شاعره د سید محمد عظیم لور د پرچمن اوسیدونکې چې د شعر دیوان لری ژوندۍ وه.

**۱۸۳۱م ۱۲٤٦ق**

سید احمد بریلوي مجاهد او مولوی اسماعیل دهلوي د ۱۳۵مجاهدینو سره په بالا کوټ کي سکهانو شهیدان کړل (۲٤ ذی قعده ۱۰ مې).

حاجي فیروز الدین د تیمور شاه زوی په سلطان آباد کي د کامران په ټوپک وواژه سو (رمضان).

**۱۸۳۱م ۱۲٤۷ق**

قاضي محمد حسن د قاضي اکبر شاه پښوري زوی (خان علما) د شاه شجاع مشاور او پیش نماز د رنجیت سنگه او میر مراد علی خان تالپور دربارو ته د سفیر په توگه واستول سو او همده په ۱۲۵٤ق د لاهور مثلثه معاهده د شاه شجاع له خوا امضا کړه.

شاه شجاع د سند د والي میر مراد علی خان تالپور په مرسته له لودهیانې څخه شکارپور ته راغئ خو مراد علی خان مړ سو، او سندیان د سید کاظم شاه په مشری د شاه شجاع جنگ ته راغله، مگر شاه شجاع غالب سو، سید کاظم ووژل سو، او شاه شجاع شکار پور ونیوئ.

**۱۸۳۲م ۱۲٤۸ق**

الکسندر برنس د بخارایي سوداگر په بڼه په شمالي افغانستان او بخارا کي وگرزیدي.

عباس میرزا د قاجار کورني نائب السلطنه د هرات د نیولو لپاره شهزاده محمد مرزا را واستاوه، او شهزاده کامران سدوزی ئې په هرات کي محاصره کئ. خو بیرته ئې صلح وکړه او ایراني لښکر مشهد ته ولاړل، هرات شهزاده کامران او وزیر یار محمد خان ته پاته سو.

میر یزدان بخش د بهسود هزاره مشر د حاجي خان حکمران هزاره جات په لمسون ووژل سو.

اخوند زاده محمد اکرم د میان احمد زوی د بنون اوسیدونکي "عمدة الاملا" وکیښ.

**۱۸۳۳م ۱۲٤۹ق**

د سند میران نور محمد خان او محمد نصیر خان او د خیرپور میر شاه شجاع ته یاغي سول. خو په آخر کي روغه وسوه او هغو ٤ لکه روپې شاه شجاع ته ورکړې، څو چې شاه د دغه کال د میاني د میاشتي په سر کي له ښکارپوره قندهار ته رهي سو.

سعادت یار خان بړیڅ د حافظ رحمت خان بړیڅ لمسی (گل رحمت) د هند د پښتنو تاریخ وکیښ.

د ملا عبدالغفور هروي خطاط د ژوند وخت.

**۱۸۳٤م ۱۲۵۰ق**

رئیس العلماء خانملا قاضي عبدالرحمن خان د خانملا قاضي محمد سعید خان ابدالي بارکزی قندهاري زوی نصیحة المؤمنین و فضیحة الشیاطین وکیښ، چه د روافضو رد دئ (د قندهار د سلیمي کتابخانه).

قاضي طلا محمد بن قاضي محمد حسن په پیښور کي لوی عالم او مؤلف او شاعر او خطاط

ؤ. دی د فارسي او عربي شعر ديوان لري او د سلوة التحرير او نفحة المسلک او تسلية العقول مؤلف دئ.

عزيز خان رياخيل په پښتو جنگنامه هرات منظومه کړه.

د شاه شجاع او رنجيت سنگه معاهده ۱۲ مارچ ۱۸۳٤ او د شاه شجاع حمله په قندهار (۱ محرم ۱۲۵۰ق) او محاصره.

دوست محمد خان له کابله قندهار ته راغی، او شاه شجاع يې مات کي او دی بيرته هند ته وتښتيد.

سردار امير محمد خان د دوست محمد خان ورور ٤۱ کلن وفات او په کابل کي ښخ سو.

رنجيت سنگه پيښور ونيوي او سردار سلطان محمد خان باجوړ ته ولاړ، د پيښور حکمران هری سنگه سپه سالار و.

نايب عبدالصمد خان د سردار دوست محمد خان سره د قندهار په جنگ کي خيانت وکي او وشړل سو.

**۱۸۱۰-۱۸٤۳م ۱۲۲۵-۱۲۵۰ق**

د پيښور د سيمو ماليات بارکزو سردارانو ته ٦۹۲،۵۰۹ روپي وې.

**۱۸۳٤م ۱۲۵۰ق حدود**

محمد حسين قندهاري د مداح الکوزی زوی په قندهار کي د ميرزا هروي پر تصور او تصديق (شرح انکشافيه) په عربي وکښله (د قندهاری سليمي خطي نسخه).

ملا عبدالاحد هوتک قندهاری د قاضي غلام محمد زوی د ايقاظ النيام رساله په عربي وکښله.

نياز محمد هوش د حافظ رحمت خان بړيخ کړوسی د هند د روهيل کهنډ د پښتنو تاريخ په هند کي وکيښ.

ملا عبدالحق د ملا عبدالغفور خروټي زوی په قندهار کي په پښتو ياقوت السير منظوم کي او شرح اربعين يې وکيښ.

**۱۸۳۵م ۱۲۵۱ق**

سردار دوست محمد خان د کابل او قندهار مستقل حکمران سو.

کلب علی خان شرر قندهاري شاعر او منشي ژوندی و چي د شعر ديوان هم لري.

خواجه ملا د کابل عارف او عالم د احمد زنده پيل له پښته ۷۹ کلن په خواجه ملا کي وفات سو (۵ رجب)، کله چي سردار دوست محمد خان د سکهانو مقابلې ته د جهاد له پاره له کابله پيښور ته ولاړ، نو د شيخان په کلي کي د سوات اخوند ميان عبدالغفور د زرو مريدانو سره د امير په جهاد کي ملگري سوه (تر ۱۱ مي ۱۸۳۵م).

**۱۸۳٦م ۱۲۵۲ق**

علامه حبيب الله قندهاري خپل کتاب ابجد التواريخ د اسلام په تاريخ کي په عربي په قندهار کي وکيښ.

**۱۸۳۷م ۱۲۵۳ق**

پوټنجير پرنگی د اسانو د سوداگر په لباس کي کابل ته راغي، او بيا د ملايانو په کاليو کي هرات ته ولاړ، او هلته ئې د هرات د محاصرې په وخت کي ملايي او خپل پټ سياسي کار

کاوه.

عبدالعظيم سواتي شاعر د پښتو ديوان خاوند وفات سو (ولادت ئې ۱۱٦۷ق).

سردار دوست محمد خان د هری سنگه د مقابلې لپاره پېښور ته لښکر واستول.

سر الکساندر برنس د هند د انگريزي حکومت له خوا د مذاکرې لپاره کابل ته راغئ او په اپريل ۱۸۳۸ ولاړ.

د روس ايلچي ويتکويچ هم کابل ته راغي (د ستمبر ۱۸۳۷ تر جون ۳۸ پوري).

سردار سلطان محمد خان له باجوړه کابل ته راغئ چي د سردار دوست محمد خان څخه د پېښور د نيولو کومک واخلي.

د دوهم بهادر شاه (ظفر) جلوس په دهلي کي.

**۱۸۳۸م ۱۲۵٤ق**

محمد شاه قاجار د هرات د نيولو لپاره په ۷ شعبان غوريان ته را ورسيدئ او د هرات په ښار کي شهزاده کامران او وزير يار محمد خان کلا بند کړه خو هراتيانو د جهاد اعلان وکئ او د ايرانيانو سره يې مقابلې کولې.

د امير دوست محمد خان لومړی جلوس د کابل په امارت، سکه وهل او ځان امير المؤمنين بلل.

د امير دوست محمد خان او د روسيه د نماينده ويتکويچ تر منځ سياسي مذاکرې په کابل کي.

د شاه شجاع او انگريزي ويسرا او رنجيت سنگه تر منځ د لاهور دفاعي معاهده په ۲٦ جون ۱۸۳۸ امضا سوه چي شاه شجاع د افغانستان پادشاه کي.

مولوی عبدالحق توخي د هرات لوی عالم د هرات په محاصره کي وفات سو.

لارډ اکلينډ د هند ويسرا د اکتوبر په اوله د افغانستان سره لومړی جنگ اعلان کئ چي د ۱۸٤۳م تر نومبر پوري جاري ؤ.

سيد جمال الدين افغاني د شرق سياسي ويښونکی د کنر په اسعد آباد کي وزيږيدئ.

عصمت الدين د محمد اسماعيل زوی د مير محمد لمسی د امير دوست محمد خان د ژوند حال خلاصة الاخبار په نامه وکيښ (د بنگال د آسيائي ټولني خطي نسخه).

**۱۸۳۹م ۱۲۵٤ق**

انډس ارمي او شاه شجاع د سرجان کين په مشری د سند او بولان له لاري پر قندهار راغلل (فروری ۳۹) او په ۲۰ د اپريل ۱۸۳۹م ۱۲۵۵ق ئې قندهار ونيو او شاه شجاع بيا پر تخت کښينوست (دو شنبه ۱۳ صفر ۱۲۵۵ق).

برنس د انگريز استاځي او ميسن احوال ليکونکی له کابله د بتخاک پر خوا هند ته رهي سول (۲٦ ابريل). مکناټن انگليسي نماينده د شاه شجاع سره په قندهار کي نوې معاهده وکړه چي شاه شجاع تش په نامه پادشاه وي، نور ټول اختيار به د پرنگي په لاس کي وي (۷ مي ۱۸۳۹م، ۲۲ صفر ۱۲۵۵ق).

**۱۸۳۹م ۲۳ جولاي ۱۲۵۵ق**

د انگريز لښکر او شاه شجاع غزني ونيو او سردار غلام حيدر هم ونيول سو.

د هرات کلابندي لس میاشتي وه او هراتیانو د محمد شاه قاجار سره جنګونه کول، څو چي محمد شاه ناچار سو او په ۱٦ د څلورمي خور ۱۲٥٥ق ئې هرات پرېښو او بېرته ناکام تهران ته ولاړ.

سردار کندل خان او د ده زامن په ایران کي پناهنده سول.

شاه شجاع د انګریز د نماینده مکناټن له خوا د کابل پر تخت بیا کښېنول سو او امیر دوست محمد خان بخارا ته ولاړ (۱۷ اګست ۱۸۳۹م، غره جمادی الاخري ۱۲٥٥ق). شاه سجاع ملا عبدالشکور د کابل نائب الحکومه او شهزاده تیمور ئې نایب السلطنه وټاکه.

د امیر دوست محمد خان د پاچهي مالي عایدات ټوله ۲،٥۰۹،۲۳۹ کابلي روپي وې چه له ۲،۲۲٦،۹٤۳ کمپني د روپو سره برابري وې.

رنجیت سنګه د سردار مهن سنګه زوی د پنجاب مهاراجه په لاهور کي مړ او ښخ سو (۲۷ جون).

کله چي د پرنګي لښکر د کرنل ویډ په مشری د شاه شجاع د زوی تیمور سره کابل ته تلل، اپریدی په خیبر کي له دوی سره ونښتل.

سپینه د نور محمد الکوزی لور د پښتو شاعره په هرات کي ژوندی وه او د هرات د کلابندي حال ئې په یوه حماسه کي منظوم کئ.

اخوند مصطفی هروي په کابل کي د شاه شجاع په غوښت د شیخ سعدالدین انصاری شرح حال (نشاة القدس) وکیښ.

ملا عبدالاحد سلجوقي د ملا محمد میرزا زوی د هرات مشهور مدرس او صوفي وفات سو (۲٥ محرم).

**۱۸٤۰م ۱۲٥٦ق**

یوسفزی او خیبریان پر انګریزانو باندي را ولاړ سول.

د کابل په شمال کي د میر مسجدی خان په مشري خلک ولاړ سول، او امیر دوست محمد خان له بخارا څخه بیرته راغئ.

په ایبک کي امیر دوست محمد خان د انګریزانو څخه مات سو، او ځان ئې په کابل کي انګریزانو ته تسلیم کئ (۲۸ ستمبر ۱۸٤۰م).

انګریزانو امیر دوست محمد خان د خپل ټبره سره کلکتې ته واستاوه (نومبر ۱۸٤۰م).

شاهزاده کامران د شاه محمود سدوزی زوی د هرات حکمران هلته ووژل سو او هرات وزیر یار محمد خان الکوزي ته پاته سو، په هرات کي د ده اقتدار له ۱۸۱۸م ۱۲۳٤ق څخه شرو سوی و.

حاجي خان کاکړ ته د شاه شجاع له خوا د نصیر الدوله لقب ورکړ سو خو وروسته دی بندي هندوستان ته ولیږل سو او هورې مړ سو. ویګني T. Vigne د افغانستان د سفر احوال مصور له لنډنه په ٤۷۹ مخه کي ۱۲ فصله خپور کئ.

معین الدین پیښوری د وامق او عذار قصه په پښتو نظم کړه.

میر واعظ میر معصوم د میر واعظ سید احمد زوی د خپل عصر متنفذ روحاني او شاعر او سیاسي سړی په استالف کي ژوند کاوه.

مرزا محمد ابراهیم ګوهری هراتي شاعر او

مؤلف او خطاط مذهب چې په ۱۳۰۰ ق کابل ته راغلي و په هرات کې وزیریدي، دی تر ۱۳۲۱ق پورې لا ژوندی و.

میر محترم حافظجي د کابل د میر واعظ د کورنۍ د دري شعر خاوند ژوندی و.

شاه شجاع خپل زوی صفدر جنګ د قندهار په حکمرانۍ مقرر کړ.

## ۱۸٤۱م ۱۲۵۷ق

په ټول افغانستان کې پر انګریزانو باندې خلک را ولاړ سول، او په ۲ نومبر ۱۸٤۱م ۱۷ رمضان ئې په کوهستان کې د انګریزانو یو غنډ لښکر ووژل.

سردار اکبر خان او عبدالله خان اڅکزی او نور مجاهدین په کابل کې پر انګریزانو را ولاړ سول او برنس پرنګي ئې په ۲ نومبر ۱۸٤۱م مړ کړ. بیا یې نو د انګریزانو لوی سیاسي مشر مکناټن په ۲۳ دسمبر په کابل کې وواژه.

لوی مجاهد عبدالله خان اڅکزی په کابل کې د انګریزانو به لمسون وواژه سو (۲۷ رمضان).

علامه حبیب الله قندهاري محقق خپل ابتکاري کتاب مغتنم الحصول في علم الاصول په قندهار کې په عربي وکیښ.

میر مسجدي خان د کوهستان مجاهد چې په غزا کې زخمي سوی و (یا د انګریزانو په لمسون زهر ور کړه سوي و) شهید سو (۱۱ شوال ۲٦ نومبر).

محمد بدر الرحمن د (واقعات دراني کتاب له احمد شاه تر شاه شجاع پورې وکیښ (د کانپور چاپ). دا کتاب له اردو څخه سید حسین شیراز په فارسي ترجمه کړ (د برتانیه موزیم او د تهران پوهنتون خطي نسخې).

سر الکسندر برنس خپل کتاب (کابل) وکیښ چې د ده سکونت له ۱۸۳٦ تر ۳۸ پورې په کابل کې بیانوي او د ده تر قتل وروسته په ۱۸٤۲ له لندنه خپور سو.

پوتنجر انګلیس په پټ ډول د کابل په شمالي سیموکې فعالیت کاوه او ۱۹ لکه روپې ئې خرڅې کړې.

میر عصمت الله کشوري د بلخ دهدادي شاعر وفات سو، د شعرو دیوان لري.

## ۱۸٤۲م ۱۲۵۸ق

په اوله د جنوري ۱۸٤۲م د ملي مجاهدینو او انګریزانو تر منځ معاهده وسوه چه له افغانستانه ووزي.

له ٦ تر ۱۳ جنوري د انګریزانو قتل عام شرو سو.

په ٦ مارچ غزني هم ملي مجاهدینو ونیو، او انګریزان ئې هلته تباه کړل.

د کابل خلکو شاه شجاع هم وواژه (۲ صفر ۵۸ق، ۳ اپریل۱۸٤۲م). د ده زوی فتح جنګ په بالا حصار کې پاچا سو.

وزیر اکبر خان د فتح جنګ شاه سره د اطاعت عهد نامه وکړه او مغه دی پخپل وزارت وټاکه، مګر فتح جنګ وروسته د لباس په تغییر جلال آباد ته وتښتیدي او د جنرال پالک سره ئې پر کابل حمله وکړه او په بالا حصار کې پر تخت کښیناست (۱۸ شعبان ٦ ستمبر) خو وزیر اکبر

خان باميان او تاشقرغان ته ولاړ.

جنرال پالک او ناتهه د خيبر له خوا جلال آباد ته راغلل او په لار کي اپريدو پر دوي په خيبر کي اوربل کي (۱۸ اپريل تر ۱۱ ستمبر م).

انگريزان چي په جنگ کي وځبل سوه، نو له افغانستانه تر ۱۲ اکتوبر ۱۸٤۲م پوري ووتل، او د شاه شجاع ټبر هم د پرنگيانو سره هند ته ولاړل (لومړی جنگ ختم سو).

جيمس اټکين سون د انډس د لښکر جراح خپل کتاب (لښکر کښښي په افغانستان کي) ۸۲٤ مخه له لندنه خپور کئ، چي د ۱۸۳۹ تر ٤۰ پوري د افغانستان د لومړی جنگ احوال دئ.

**۱۸۰۳-۱۸٤۲م ۱۲۱۸-۱۲۵۸ق**

شاه شجاع د تيمور شاه زوي په وقفو د افغانستان پاچا و.

**۱۸۳۸-۱۸٤۲م ۱۲۵٤-۱۲۵۸ق**

جنرال ايبت د افغان او انگليس د لومړی جنگ روز نامچه په لندن کي چاپ کړه ۱۸۷۸م.

**۱۸٤۲م ۱۲۵۸ق**

چارلس ميسون د افغانستان او بلوچستان د سفر احوال به ۳ ټوکه کي له لندنه چاپ کئ چي له ۱۸۲٦ تر ۱۸۳۸م پوری د ده مشاهدات دي.

سر الکسندر برنس چه خپل کتاب (کابل) په ۱۸٤۱م ليکلی و په ۱۸٤۲م له لندنه خپور سو.

جنگي عمليات په افغانستان کي د ونسنت پاير تاليف له لندنه په دري ټوکه کي خپور سو.

احمد گل مومند شاعر او مدرس عالم د پښتو ديوان احمدي خاوند د ننگرهار په گلايي کي وزيږيدي.

**۱۸٤۳م ۱۲۵۹ق**

د افغانستان د شبخون روز نامچه د ليډي سيل په قلم په لندن کي خپره سوه (٤۵۱ مخه) دا وقايع د ۱۸٤۱م دي.

په خيبر کي د اپريدو غزاوي د پرنگي له هغو لښکرو سره چي له افغانستان نه په ناکامي راوتل.

امير دوست محمد خان له هنده راوستل سو او بيا د کابل پر تخت کښينوست او نائب امين الله خان لوگري يې په بالا حصار کي بندي کئ.

ايلن Allen د افغانستان د سفر يادداشتونه (۱۱) فصله په لندن کي خپاره کړه، دی د جنرال سر وليم ناتهه سره افغانستان ته راغلي و.

ملا غلام محمد اخندزاده د ملا محمد جي اخوندزاده گدون د تيمور زوی متخلص په غلامي کوهستاني (متوفا ۲۰ رجب ۱۳۰٦ق) د افغان او انگريز د لومړي جگړې (جنگنامه) په دري نظم کړه.

ملا جمعه بارکزی قندهاري د پښتو ديوان خاوند شاعر په قندهار کي وفات سو.

جنيد الله حاذق بن صوفي اسلام هروي شاعر د ديوان خاوند او د يوسف زليخا د مثنوي ناظم په قندهار کي وفات سو.

**۱۸٤٤م ۱۲٦۰ق**

شاه زمان د تيمور شاه زوی د افغانستان

ړوند او مخلوع پاچا په سر هند کي وفات او ښخ سو.

حميد کشميري مولوي حميد الله (متوفا ۱۲٦٤) فارسي مثنوي اکبر نامه د افغان او انگريز د لومړی جنگ پر احوال باندی منظومه کړه.

ميرزا محمود سالک بالاحصاري د فارسي ديوان خاوند ژوندی و.

امير عبدالرحمن خان په کابل کي وزيږيدي.

د افغانستان د جنگونو پر حال (ظفر نامه کابل) منظومه سوه. د شاعر نوم ندی معلوم (د برټش موزيم خطي نسخه).

قاسم علی خان د محاربه کابل کتاب په نامه نه زره بيته فارسي مثنوي په هند کي منظوم کئ (د آگرې چاپ ۱۲۷۲ق).

**۱۸٤٤م ۱۲٦۰ق حدود**

محمد جي آخوند زاده گدون د پښتو شاعر او فقيه د شرح الوقايه شارح ژوندی ؤ.

محمد سليمان خان د موسی خان بړيځ زوی (متخلص په اسد) د پنجاب تاريخ (نقش سليماني) په هند کي وکيښ.

قاضي عبدالرحمن خان علوم بارکزی د قاضي محمد سعيد قندهاري زوی قاضي القضات و.

**۱۸٤٥م ۱۲٦۱-۱۲٦۲ق**

علامه حبيب الله قندهاري محقق خپل لوی کتاب رياض المهندسين تاليف کئ (خطي) چه د رياضي ټولو علومو مجموعه ده او شپږ روضي لري:

۱ـ د صوری اقليدس د هندسيه ترجمه او د ثاو ذوسيوس د اکرثاو مانا لاوس د اکر شرح ۲۹ ذيحجه.

۲ـ علم حساب له صحاح حساب بيا تر جبر و مقابلي پوري.

۳ـ علم هندسه: مساحت و تکسير دوائر استخراج مقادير جيوب و اظلال او د مثلثاتو مسايل او نور.

٤ـ علم الابصار او مناظر او مرايا او علم الانعکاس او احکام ابطر.

٥ـ علم هيئت: افلاک، مراحد او رصدي آلات او د ابعاد او اجرام معرفت.

٦ـ د موامرات زيج و تقويم.

مير اشرف علی په بمبئي کي اردو تاريخ افغانستان چاپ کي چي د افغان او انگليس د لومړي جنگ وقايع لري (۳۳۱ مخه).

د ليل خان محمدزی د نوښار د کندی اوسيدونکي د پښتو خلقي شاعر وزيږيدي (وفات ئې ۱۹٤۰م).

**۱۸٤٦م ۱۲٦۲ق**

علامه حبيب الله قندهاري د قيد الحيثية په انتقادي شرح کي مراة الحق په قندهار کي تاليف کي (خطي).

موهن لال کشميری د امير دوست محمد خان د ژوند کتاب ۲ ټوکه په انگريزي له لندنه خپور کئ چي د افغانستان مهم معلومات لري.

مازو خان او صاحبزاده جانان په تکاب کي ياغي سول خو سردار شير علی خان د لښکرو سره پر ورغی او جانان يې وواژه او دوي يې ايل

کړه.

**۱۸٤٦م ۱۲٦۳ق**

نواب محمد زمان خان به کابل کي مړ او په عاشقان و عارفان کي ښخ سو.

وزير اکبر خان په جلال آباد کي ۳۱ کلن وفات او په مزار شريف کي ښخ سو. پر ځاي يې سردار غلام حيدر خان وليعهد سو (ولادت يې ۱۲۳۲ق).

منشي عبدالکريم د محاربه کابل و قندهار کتاب وکيښ (د لکنهو چاپ ۱۲٦٤ق).

له پرنگي سره د پنجتار د مخ درې د پښتنو غزا.

په کابل کي سخته وبا راغله.

ماماخيلو بغاوت وکي او وزير اکبر خان د دوی سر کوټلو ته ولاړ.

سردار شير علی خان د غلام حيدر خان پر ځای د غزني حکمران سو.

د لغمان غلجی د محمد شاه خان بابکرخيل په مشري ياغی سول، خو امير دوست محمد خان پخپله ورغی او دوي يې د نورستان غرو ته ترشا کړه.

محقق قندهاري علامه حبيب الله بن مولوی فيض الله موسی خيل په قندهار کي وفات او ښخ سو، عمر يې ۵۲ کلن ؤ. دئ عربي، فارسي، پښتو لوی مؤلف او د معقولو او منقولو علومو استاد و. د مغتنم الحصول في علم الاصول او رياضي المهندسين او پښتو منهاج العابدين مؤلف (رمضان).

د وزيرستان پر گمبتي انگريزي کيمپ باندی احمدزو حمله وکړه او ملک سوهان خان د پرنگي ملگري کوله.

نايب محمد حسن د بلوڅو د قلات سياسي او ادبي سړی چي فارسي او بلوڅي ديوان اشعار هم لري، خپل فارسي اول ديوان يې بشپړ کي (متوفا ۱۲۷۰ق).

**۱۸٤۷م ۱۲٦٤ق**

محجوبه د سکندر خان هروي لور د فارسي شاعره په هرات کي ژوندي وه.

قاضي غلام محمد هوتک قندهاري عالم ارشاد الحق په قندهار کي په عربي وکيښ (١٤ جمادی الثانيه پنجشنبه).

قاضي غلام محمد قندهاری د خپل کتاب تنزيه الخلفاء عن مطاعن الاعداء په عربي په قندهار کي تاليف کي (يکشنبه ۷ ربيع الثاني).

منشي عبدالکريم علوي خپل کتاب تاريخ احمد يا واقعات دراني د امام الدين حسيني د تاريخ حسيني څخه اقتباس کي (د هند چاپ ۱۲٦٦ق).

برنهارډ ډورن د پترسبرگ د اکاډيمي غړی د پښتو منتخبات (کرستو ماتهي) به هغه ښار کي چاپ کړه.

**۱۸٤۸م ۱۲٦۵ق**

سردار محمد اکرم خان بيا هندوکش شمالی ولايات په مرکز پوري ونښلول.

د ملا عبدالقيوم د محمد نبي زوی د خلم صوفي شاعر د مجمع الاشعار قيامت نامه او فارسي او ترکي ديوان خاوند شاعر وزيږيدي.

محمد کلان خان امين الوجوهات عضد

الدوله د محمد عالم خان پوپلزي زوی وفات او په غزني کي د خپل نيکه وکيل الدوله عبدالله خان د قبر سره ښخ سو.

**۱۸۴۹م ۱۲۶۵ق**

امير دوست محمد خان د پرنگيانو په مقابل کي اټک ته ولاړ، خو چټر سنگه او شير سنگه ماته ورکړه، او امير دوست محمد خان له سلطان محمد خان او پير محمد خان او سيد محمد خان خپلو ورونو سره کابل ته راغی او انگريزانو تر پيښوره ونيول.

**۱۸۴۹م ۱۲۶۶ق**

په شمالي ولاياتو کي د ميرانو بغاوت او د سردار محمد اکرم خان مرگ ۳۳ کلن په مزار شريف کي او پر ځای ئې د سردار محمد افضل خان مقرري (ولادت يې ۱۲۳۳ق).

قاضي غلام قادر د قاضي حسن پيښوری زوي په پيښور کي د سردار سلطان محمد خان سره ؤ.

مير محمد امين د قليچ علی بيگ زوی د تاشقرغان والي د فارسي شعري ديوان خاوند د آمو سره وفات سو.

**۱۸۵۰م ۱۲۶۷ق**

ظهير الدوله وزير يار محمد خان د هرات حکمران د لاش په رباط مير کي وفات او په هرات کي ښخ سو (د شعبان سلخ) زوی ئې سعيد محمد خان پر ځاي کښېنوست.

مشهور عالم او د سراج الاخبار افغانستان مؤسس مولوی عبدالروف په قندهار کي وزيږيد (صفر ۱۲۶۷ق).

د سوات اخوند عبدالغفور صاحب د پښتنو لويه جرگه جوړه کړه او د ستهاني سيد اکبر شاه يې په شرعی امارت وټاکه، پخپله دی شيخ الاسلام سو.

د کوهاټ د اپريدو او بنگښو غزاوي له پرنگيانو سره.

مولانا زين العابدين پيښوری چي په حساب، رياضي، نجوم کي استاد او د استخراجات جبريه مؤلف و ژوندی و.

د بهادر خيلو خټکو غزا له پرنگي سره.

منشی عبدالکريم د محاربه کابل و قندهار کتاب د کانپور په مصطفايي مطبع کي چاپ کئ.

**۱۸۵۱م ۱۲۶۸ق**

له لنډنه د ځوان مصر په نامه يو کتاب خپور سو، چي يو فصل يئ د افغانستان او سند پر احوال دئ او د لومړي جنگ انگليسي سياست غندي.

مير عبدالرحمن د افغانستان مشهور خطاط په هرات کي وفات او د سيد عبدالله په گنبده کي ښخ سو.

له پرنگيانو سره د مومندو غزا او د ميچني لومړی جنگ.

سردار شير علی خان د کلات غلجي ايل کړه.

**۱۸۵۲م ۱۲۶۹ق**

سردار محمد افضل خان د تخته پل ښار د بلخ په ولايت کي جوړ کئ.

د مومندو سره د پرنگي دوهمه د ميچني جگړه او هم د پړانگ غار غزا.

د امیر دوست محمد خان او سردار کهندل خان یو له بله مخالفت د کلات بر کلا او د نواب جبار خان په بوگاڼو د دوی روغه.

په مله کنډ کي د پرنگي سره دراني زو غزا.

د بهادر خیلو خټکو دوهمه غزا له پرنگي سره او د سپري جنگ.

میر محمد نبی احقر بدخشي د شعر د دیوان خاوند او د حدایق الحقایق او هشت بهشت مؤلف په رستاق کي وفات سو.

فیض الله قریشي د تربیلي اوسیدونکي د پښتو لیکوال او شاعر خپل گنج سعادت نظم کئ چي د دغه عصر ښه تاریخي معلومات لري.

میر احمد اظهر مجددي د هفت مجلس او مناقب الطاهرین مؤلف او د دیوان خاوند شاعر وفات سو (ولادت یئ ۱۲۰۶ق).

**۱۸۵۳م ۱۲۷۰ق**

د غلجو شورش په کلات کي.

د بلخ د ولایت د دارالامان خلیفه میرزا امان معروف صوفي ۸٤ کلن وفات سو.

د پرنگي او مومندو معاهده نمبر ۱۵۸۷ نومبر ۱۸۵۳م.

محمد رسول شهید مارملي بلخي شاعر د دیوان خاوند ژوندی و.

سردار فتح محمد خان د وزیر اکبر خان زوی د کلات حکمران او جنرال فرامز خان یې د لښکر مشر مقرر سول.

د کوهاټ د غاښي غزاوي له پرنگیانو سره.

د بوری غزا له ۱۵ نومبر ۱۸۵۳ څخه تر ١٤ جنوري ۱۸۵٤م پوري.

نواب جبار خان د سردار پاینده خان زوی ۷۳ کلن وفات او د کابل په عاشقان و عارفان کي ښخ سو (ولادت ۱۱۹۷ق).

د سلیمان بن خواجه ابراهیم قبلان حسیني نقشبندي قندوزی د ینابیع المودة د مؤلف وفات په استانبول کي (ولادت ئې ۱۲۲۰ق).

استاد عبدالعلی هروي د میرزا باقر کابلي زوی د هرات مصور ژوندی و.

۱۸۵٤م ۱۲۷۰ق

د مهدی بن اسماعیل موسوي هروي امامي فقیه او اصولي وفات او په مشهد کي ښخیدل.

**۱۸۵٤م ۱۲۷۱ق**

سردار کهندل خان د قندهار حکمران ٦۳ کلن پسله ۲٦ کالو حکومته په سه شنبه ۷ ذی حجه په قندهار کي مړ سو (ولادت یې ۱۲۰۸ق).

پرنگیانو پر مومندو حمله وکړه (اگسټ) او د پنډیالی د مومندو سره تر ۱۸٦۰م پوری وجنگیدل.

میر محب بیگ هزاره د یکه اولنگ اوسیدونکي یاغی سو، خو سردار محمد اسلم خان دی بیرته گنښیناوه.

سردار مهردل خان مشرقي ۵۹ کلن په قندهار کي وفات او ښخ سو جمعه ۲۷ جمادی الاخري (ولادت ئې محرم ۱۲۱۲ق).

حاجي دوست محمد قندهاري د ملا علی اخوند یوسفزی زوی د بنون د دامان مشهور نقشبندي عارف ژوندی و، او د ده د مناقبو کتاب معزالدین د عبدلاکریم زوی تالیف کئ

(خظي).

مرزا حنان بارکزی شاعر په قندهار کي خپل پښتو دیوان ترکیب کئ.

**۱۸۵۵م ۱۲۷۲ق**

سردار غلام حیدر خان د امیر دوست محمد خان له خوا په پیښور کي د مودت معاهده له سر جان لارنس د پنجاب له کمشنر سره په ۳۰ مارچ ۱۸۵۵م امضا کړه او له انگریزیي هنده سره روابط قائم سول.

په قندهار کي خانه جنگي وه خو امیر دوست محمد خان قندهار ونیوی او خپل زوی سردار غلام حیدر خان ته یې وسپاره.

شهزاده محمد یوسف د ملک قاسم زوی د فیروز الدین لمسی د عیسی خان درانی په مرسته هرات ونیوی او سعید محمد خان الکوزی ئې مړ کئ، خو په آخر کي محمد یوسف هم ووژل سو او هرات پردو ته پاته سو.

مولوی محمد حسن او محمد عثمان د هرات قاضیان او شیخ مرتضی د شهزاده محمد یوسف وکیل و.

امیر دوست محمد خان په قندهار کي قاضي محمد سعید خان علوم بارکزی قاضي القضات وټاکه.

د کوهاټ د اکاخیلو سره د پرنگیانو جنگونه تر ۱۱ جنوری ۱۸۵٦م پوري جاري و.

**۱۸۵٦م ۱۲۷۳ق**

د ناصرالدین شاه قاجار لښکرو هرات ونیو، خو سردار سلطان احمد خان د هرات حکمران سو او د ایران لښکر ولاړل.

راورټي انگریز مستشرق او لښکر مشر د پښتو گرامر په انگریزي ژبه په کلکته کي چاپ کئ.

د امیر دوست محمد خان عسکر ۱٦ غنډه پیاده، ۳ غنډه سپاره، ٥ توپخانې سره گرده ۱۳،۷۰۰ منظم عسکر او ۸۱ توپه وو.

امیر دوست محمد خان قندهار سردار غلام حیدر خان ولیعهد ته وسپاره او پخپله کابل ته ولاړ.

**۱۸۵۷م ۱۲۷۳ق**

علی قلي میرزا د فتح علی شاه قاجار لمسی (اعتضاد الدوله متوفي ۱۲٦۸ق) خپل کتاب تاریخ وقایع و سوانح افغانستان په تهران کي چاپ کئ چي د احمد شاه بابا له وخته احوال لري.

په جمرود کي د امیر دوست محمد خان او سر جان لارنس تر منځ د دوستي او امداد معاهده ۲٦ جنوری ۱۸۵۷م ۲۹ جمادی الاولي ۱۲۷۳ق.

قاجاري لښکرو هرات تخلیه کئ ۲۷ جولائي ۱۸۵۷م.

میجر لمسډون د انگریزانو له خوا په قندهار کي سیاسي مبصر مقرر سو.

د پاریس په معاهده کي انگریزانو ته وویل سوه چي د ایران او افغانستان په شخړو کي منځگړی سی.

مولوي غلام جیلاني د پیښور محقق عالم کابل ته راغي.

د ستهاني سید اکبر شاه د سوات د پښتنو

امیر وفات سو (۱۱ مي ۱۸۵۷م).
په سوات کې نفاق ولویدي.
سید مبارکشاه په نارنجي کي په ۱۸ جولایي ۱۸۵۷م له انګریزانو سره غزا وکړه.
کله چي امیر دوست محمد خان د هند د وایسرای تر ملاقات وروسته جمرود ته راغي کوکي خیلو د پرنګیانو پر لښکرو په خیبر کي حمله وکړه او د هغو مشر افسر ئې مړ کئ.

**۱۸۵۷م ۱۲٤۷ق**

د لمسډون سیاسي ډله په افغانستان کي وه. د دې ډلي رویداد د ډکټر بیلیو په قلم په ۱۸٦۲م له لندنه چاپ سو.

**۱۸۵۸م ۱۲۷٤ق**

سردار سلطان احمد خان په هرات کي حکمران سو. سردار غلام حیدر خان ولیعهد په کابل کي په جمعه ۲۱ ذیقعده ۱۲۷٤ق دیرش کلن مړ سو (ولادت ۱۲۳۵ق).
روسی استاځي خانیکوف هرات ته راغی.
له پرنګي سره د پنجتار په چنګلي کي د پښتنو غزا (اپریل ۱۸۵۸م).
نائب امین الله خان لوګري د امیر دوست محمد خان په محبس کي په کابل کي مړ سو.

**۱۸۵۹م ۱۲۷۵ق**

مراد خان اتالیق د قطغن میر وښوریدی خو سردار محمد افضل خان دی مات کئ او کولاب ته وتښتیدی.
جرنیل شیر محمد خان (کیول انګلیس چه په ۱۲٤۹ق کال د قندهار په جنګ کي زخمی او مسلمان سوی و) په تخته پل کي عسکری قوماندان و هلته مړ سو.
سردار رحمدل خان ٦٤ کلن وفات او د نجف په وادی السلام کي ښخ سو (رجب). د ده ولادت ۱۲۱۱ق.

**۱۸۵۹م ۱۲۷٦ق**

د کورم د خلکو غزا له پرنګي سره (۲۰ دسمبر).
سردار عبدالرحمن خان شمالي ولایات سره سم کړل. او کله چي امیر مظفر خان د بخارا پاچا تر آمو را تیر او چارجوی ته راغی، نو سردار محمد افضل خان او افغاني مشرانو دی بیرته د آمو خوا ته وشاړه.
له پرنګي سره په میداني غره کي د مسیدو او خټکو غزا.
پر وزیرستان باندی د سر نیول چمبرلین د لښکرو حملې تر ۱۸٦۰م پوري.

**۱۸٦۰م ۱۲۷۷ق**

د تیرا د تور غره پښتنو له ۱۸۵۸م څخه بیا تر دې کاله پوري د پرنګي له لښکرو سره جنګونه کول.
سردار محمد شریف خان د فراه او پشت رود حکمران غور ته ولاړ، او د تایمنو سردار عبدالغفور خان یې ایل کې.

**۱۸٦۱م ۱۲۷۸ق**

سردار محمد اعظم خان د قطغن حکمران د هغه ځای اداره سردار عبدالغیاث خان د نواب جبار خان زوی ته وسپارله او پخپله له خان آباده کابل ته راغي.
د سردار سلطان احمد خان زامن له هراته

راغلل او سردار مير افضل خان يې په فراه کي حکمران کي. مگر امير دوست محمد خان د ميانئ په مياشت ورغي او هغه ښار يې ونيوي.

سردار عبدالرحمن خان د قطغن حکمران سو.

په کابل وبا گډه سوه او سردار پير محمد خان ٦٤ کلن ٢٢ ربيع الاول وفات سو. دغسی هم سردار سلطان محمد خان ٦٨ کلن په پنجشنبه ١٨ ربيع الثاني په کابل کي وفات سو.

د دوړو پښتنو غزا له پرنگي سره.

د پيښور معهور عالم صاحبزاده غلام جيلاني وفات سو (چهار شنبه ٩ شوال).

**١٨٦٢م ١٢٧٩ق**

د فراه تر نيولو وروسته امير دوست محمد خان د هرات نيولو ته لښکر بوت، او سردار سلطان احمد خان او د هغه زامن يې په هرات کي محاصره کړل (١٠ صفر).

د سردار سلطان احمد خان ماينه چي د ماهر دوست محمد خان لور وه د هرات په کلابندی کي مړه سوه.

ميرزا رضا هروي مصور او نقاش د امير دوست محمد خان او سلطان احمد خان د جنگ تصوير په هرات کي وکيښ (د هرات موزيم).

ملا صفی الله ختک د مسری باندي اوسيدونکي په پښتو مخزن الاسرار او بدر منير او په فارسي نظم الدررفي سلک السير وکښل.

سيف الدين حسيني د انشأ کتاب په کابل کي تاليف کي.

دکتر بليو د هغي ډلی د سفر ورځ ليک له لندنه په ١١ فصلو ٨ تصويرو سره خپور کئ، چي په ١٨٥٢م هلته و او د افغانستان ښه معلومات لری. د کتاب نوم: په افغانستان کي د يوه سياسي وفد ورځ ليک.

ډيوس د پنجاب د حکومت سکرتر د افغانستان پر تجارت باندي يو مفصل راپورټ چاپ کئ (جولاي) چي د لکهنو د نولشکور په مطبعه کي په اردو هم چاپ سو ١٨٧١م.

ډيوس انگريز د افغانستان او هند د تجارت په راپور کي (١ جولايي ١٨٦٢م) د افغانستان ټول واردات له هنده ٣١٨،٣٨٣ پونډه او صادرات يې ٣٠٣،٥٣٥ پونډه او گرده تجارت يې ٦٢١،٩١٨ پونډه ښوولي دئ.

**١٨٦٣م ١٢٧٩ق**

سردار سلطان احمد خان د هرات حکمران په رمضان ١٢٧٩ق ٦ د اپريل ١٨٦٣م د هرات په محاصره کي مړ سو او زوی يې شهنواز خان پر ځای ودريدی.

امير دوست محمد خان په ٨ ذيحجه ١٢٧٩ق ٢٧ مي ١٨٦٣م هرات ونيو، او هلته په ٢١ د ذيحجې ١٢٧٩ق ٩ جون ١٨٦٣م مړ او ښخ سو او امير شير علی خان يې پر ځاي امير سو.

سلطان محمد خان د سعادت خان موند زوی د انگريزانو سره وجنگيدی خو د امير شير علی خان لښکر دی باجوړ ته وشاړه.

سيد جمال الدين افغاني په افغاني دربار کي د اصلاح او تجديد حرکت شروع کئ.

استاد ابراهيم په هرات کي د امير شهنواز خان لپاره يو لوی توپ جوړ کئ.

د سوابی په ټوپي کي د ملک عيسی خان حدون او مولوي عبدالله په مشري له انګريزانو سره د پښتنو غزا.

د قتل ګر لوی جنګونه تر سوات او باجوړ پوري.

له پرنګي سره د سور کاوی او امبيلي د پښتنو غزاوي (د اکتوبر ۸۱٦۳م).

**۱۸٦۳م ۱۲۸۰ق**

د سوات د اخوند عبدالغفور او مولوي عبدالله مجاهد په مشری د امبيلي په کوتل کي د انګريزانو ۷ زرو لښکرو سره جهاد، چي ۹۰۸ تنه پرنګيان مړه او دري زره تنه پښتانه شهيدان سول.

د نومبر په ۱۸ ورځ د قتل ګړ جهاد د ۱۵ زرو تنو غازيانو لخوا د پرنګي سره شرو سو او تر ۱۵ دسمبر پوري جاري و.

امير شير علی خان خپل ځورلس کلن زوی يعقوب خان د هرات حکمران او جنرال فرامرز خان يې لښکر مشر مقرر کئ. قاضي عبدالسلام خان يې د هرات قاضي او ملا شاه محمد يې مفتي او ميرزا غلام صديق يې سر دفتري مقرر کئ او د قندهار له لاري کابل ته راغي.

حاجي عبدالرزاق د مولانا عبدالخالق اندړ زوی د غزني د پاي لوچ په کلي کي وزيږيدي (۱٦ صفر).

ميرزا احمد خان کابلي مستوفي او د شعر د ديوان خاوند وفات سو.

په خان آباد کي د سردار محمد اعظم خان د فوجونو ياغي توب پر سردار عبدالرحمن خان باندي او د دوی ارامول.

مير اتاليق په قطغن کي ولاړ سو، خو سردار عبدالرحمن بيرته پر ځاي کښيناوه او ماليات يې ځني واخستل.

د سوات د اخوند ميان عبدالغفور او انګريزانو روغه او د اخوند تګ سيدو شريف ته (۲۷ دسمبر).

**۱۸٦٤م ۱۲۸۱ق**

د امير شير علی خان سره د ده د ورونړو کورني جنګونه.

د باجګاه په جنګ کي محمد افضل خان مات او ګرفتار سو او سردار عبدالرحمن بخارا ته وتښتيد.

جلالی د يوسف مسکين زوی د قادس د ده ګزک اوسيدونکي د سياه موي او جلالي د قصې هيرو وزيږيدی.

پر مومندو د پرنګي حمله او د ميچني ځلورمه غزا.

**۱۸٦٥م ۱۲۸۲ق**

امير شير علی خان په کابل کي دوه زره تنه لويي جرګې ته را وغوښته چي ده ته د ده د ورونړو د اختلاف په باب کي مشوره ورکړي. تر دې لوی جرګې وروسته امير د خپلو ورونړو جنګ ته متوجه سو.

د امير شير علی خان او سردار محمد امين خان د کجباز جنګ، او د محمد امين او محمد علی يو له بله سره وژل ۱۰ محرم ۱۲۸۲ق.

امير شير علی خان د خپل ورور او زوی په مرگ غم جن سو او قندهار ته ولاړ، او دا ښار يې ونيوئ.

ميرزا محمد محسن دبير د ميرزا علی خان زوی د دربار منشي او شاعر په کابل کې وفات سو (ولادت ۱۲۲۷ق).

مراد علی کاموي د عبدالرحمن زوی پښتو تفسير يسير وکيښ.

**۱۸۶۶م ۱۲۸۲ق**

امير شير علی خان شمالي ولايات ونيول او له تاشقرغانه تخته پل ته ولاړ، بيا و کابل ته راغې.

سردار عبدالرحمن خان چې بخارا ته تللی و، بيرته راغي او د بلخ ولايت يې ونيو او بيا پر کابل راغی، امير شير علی خان له قندهاره را رووت او د وردکو په سيد آباد کې د امير شير علی خان او سردار عبدالرحمن جنگ سو، خو امير شير علی خان مات سو او قندهار ته ولاړ.

**۱۸۶۶م ۱۲۸۳ق**

امير محمد افضل خان د کابل امير سو او امير شير علی خان قندهار ته ولاړ.

مستوره غوري حور النساء د مير سيد اعظم لور (بي بي سپيده پوش) د فارسي ديوان تحفة العاشقين خاونده د غور د پرچمن اوسيدونکې شاعره وفات سوه (ولادت يې ۱۲۸٤ق).

ميرزا عبدالواسع طبيب د لعل محمد عاجز زوی د شعر د ديوان خاوند وفات سو (ولادت يې ۱۲۰۸ق).

امير شير علی خان له قندهاره را ووت چې کابل ونيسي، مگر سردار عبدالرحمن خان دی په کلات کې مات کړ.

سردار فيض محمد خان د امير دوست محمد خان زوی په بلخ کې وښوريدي او امير شير علی خان د هرات او ميمنې له لاري بلخ ته ولاړ او سره ملگري سوه.

د سردار احمد خان د امير دوست محمد خان د زوی په امر د ده د اشعارو ديوان په بلخ کې ترتيب او وکيښ سو (۲۷ شعبان) (د کابل خطي کتابخانه).

سردار عبدالرحمن خان د خپل پلار امير محمد افضل خان لخوا وگومارل سو چې د امير شير علی خان او سردار فيض محمد خان مقابلې ته ولاړ سي.

د دواړو خواو لښکر د پنجشير په بازارک کې سره ونښتل، په دې جنگ کې سردار فيض محمد خان د توپ په کولی ووژل سو او امير شير علی خان بيرته بلخ ته ولاړ.

امير محمد افضل خان ٥٤ کلن په جمادی الثانيه ۱۲۸٤ق په کابل کې مړ او ښخ سو او پر ځای يې امير محمد اعظم خان پادشاه سو (د افضل ولادت ۱۲۳۰ق).

مير سعدالدين د سعدالله زوی د تنگي سيدان د ديوان خاوند شاعر وفات سو (ولادت يې ۱۱۹۸ق).

سيد جعفر رستاقي د عبدالصمد زوی د گلشن عشق او چمن عشق ناظم وفات سو.

سردار عبدالرحمن خان بلخ ته ولاړ او امير شير علی خان له هغه ځايه ووت او هرات ته

ولاړ.

سردار عبدالرحمن خان شبرغان میر حکیم خان ته وسپاره او ده هغه لور یې وکړه.

حیات خان د پښتنو تاریخ حیات افغاني په اردو په لاهور کې چاپ کړ.

ملا محمد یعقوب فراهي د فارسي او پښتو مقتدر شاعر او عالم په فراه کې وزیږیدي.

**۱۸٦۸م ۱۲۸۵ق**

د امیر محمد اعظم خان سره د امیر شیر علی خان جنګونه او په شش ګاو او زنه خان کې د امیر محمد اعظم خان ماته او د ده او عبدالرحمن خان تښته ایران او روس ته.

د شوال په میاشت کې امیر شیر علی خان بیا کابل ونیو او پادشاه سو او د هند ویسرا د ۲ نومبر ۱۸٦۸م په مکتوب د ده سلطنت ومانه.

ډکټر ډبلیو بیلیو انګریزی افغان پوهاند د پښتو ګرامر په انګریزي په لاهور کې چاپ کړ.

منصور غزنوي د محمود خان مومند شالیجي زوی د فارسي لیکوال او شاعر په غزني کې وفات سو (ولادت ئې ۱۲۲۰ق).

بهاول خان د ښادی خان زوی د بنون د سیمو اوسیدونکي جنګنامه زیتون په پښتو منظومه کړه.

**۱۸٦۹م ۱۲۸۵ق**

انګریزانو دوولس لکه روپې او دوولس زره توپک امیر شیر علي خان ته ورکړه.

امیر شیر علی خان د هند د ویسرا په بلنه د انبالې سفر هند ته وکړ او په رسمیت ومنل سو، مګر د ده ولیعهد عبدالله جان یې و نه مانه.

د روس او انګریز مذاکره د افغانستان د شمالي سرحداتو د ټاکنې لپاره شرو سوه.

پر اتمانخیلو او مومندو پښتنو د پرنګي حملې او د میچني شپږمه غزا.

امیر محمد اعظم خان د فرار په حال کې پنځوس کلن وفات او د بایزید بسطامي په مزار کې ښخ سو (ولادت ئې ۱۲۳٦ق).

**۱۸٦۹م ۱۲۸٦ق**

له پرنګي سره د کابل خیلو وزیرو غزا.

سردار فتح محمد خان د هرات حکمران سو او سردار محمد اسماعیل خان د سردار محمد امین خان زوی په چنداول کې یاغي سو، خو دی ونیول سو او هند ته فرار سو.

د امیر شیر علی خان له خوا سردار شیر علی خان قندهاری د قندهار حکمران سو.

امیر شیر علی خان د نوي کابل شیرپور په جوړولو د ناظر حسین علی خان تر کتنې لاندې پیل وکړ.

**۱۸۷۰م ۱۲۸۷ق**

سردار محمد یعقوب خان په قندهار کې یاغي سو او هرات یې ونیو، د هرات حاکم سردار فتح محمد خان او سردار محمد عزیز خان په جنګ کې مړه سول.

امیر شیر علی خان په افغانستان کې د نوي مدنیت په خپرولو پیل وکړ.

سپه سالار فرامرز خان په هرات کې د جمعې په شپه ۲۷ ربیع الاول وواژه سو.

د افغانستان لومړۍ کابینه د سید نور محمد شاه قندهاري صدر اعظم په مشرۍ جوړه سوه

چې دغه وزیران یې درلودل:

۱ـ سید نور محمد شاه قندهاري د پښین د سید سلیمان شاه زوی لوی ټول مختار (صدر اعظم).

۲ـ میرزا حبیب الله خان وردک لوی ملک (مستوفي الممالک = وزیر مالیه).

۳ـ ارسلا خان جبارخیل لوی میني دباندی (وزیر خارجه).

٤ـ عصمت الله خان د عزیز خان غلجي زوی لوی میني د غرو (حشمت الملک وزیر کوهستانات).

٥ـ میرزا محمد حسن خان لوی کښل (دبیر الملک = سر منشي حضور).

٦ـ حسین علی خان پنجشیري ټولمشر (سپه سالار).

۷ـ احمد علي خان چغتائي لوی ټولول (معیر الملک = وزیر خزانه).

شیخ محمد اکرم افغاني چې د خیبر له اپریدو څخه و، او په شام او مصر کې علمي شهرت درلود او مشهور مدرس و، په قاهره کې وفات سو (ربیع الثاني).

شاه عبدالباقي مجددي د شاه صفي الله مجددي زوی د کابل د مجددیانو نیکه په کابل کې ۹٤ کلن وفات او ښخ سو (سه شنبه ۲۱ ربیع الاول) د شعر دیوان ئې درلود او متخلص په باقي و.

میرزا محمد اسماعیل د پیښور د حکومت سر محرر تسهیل القواعد افغاني، نصاب افغاني، قواعد افغاني ولیکل.

مولوی احمد د نواز خان اخوند زاده زوی د پیښور د تنګي عیسی خیل شاعر پښتو کتابونه وکښل: آدم درخاني، توتي نامه، قصه جمجمه او نور.

**۱۸۷۱م ۱۲۸۸ق**

د افغانستان لومړی اخبار شمس النهار په کابل کې د مرزا عبدالعلي په اهتمام خپور سو.

سید نور محمد شاه صدر اعظم د پالک انګریز سره د سیستان د سرحداتو او اوبو د ویشلو لپاره هلته ولاړ، او بیا یې د مذاکراتو لپاره تهران ته هم سفر وکړ او د بمبئي له لاري کابل ته راغي.

امیر شیر علی خان یو منظم لښکر جوړ کړ چه شمیر ئې ٥۲ زرو ته رسیدئ.

شیخ الاسلام ملا خدابخش د ملا محمد قاسم زوی (عطا) شاعر او د شرح کلمه طیبه لیکونکي په هرات کې وفات سو.

صوفي محمد رسول ساکزی د قندهار مشهور عالم او نقشبندی مقتدا ٥٥ کلن وفات سو (دو شنبه ۱۳ ذی ججه).

سید خان شبرغاني د قاضي سید نعمان زوی نستعلیق لیکونکي خطاط او شاعر اذنب تخلص ژوندی و.

ولي طواف د محمد علی کابلي زوی ناخوانه شاعر په کابل کې ژوندی و.

سردار محمد یعقوب خان له هراته د امیر شیر علی خان حضور ته راغي او معافي یې وغوښته او بیرته هرات ته مقرر سو.

**۱۸۷۱م ۱۲۸۸ق**

محمد زرداد خان ناغر افغان په هند کي صولت افغاني د پښتنو تاریخ په اردو وکیښ (د نولکشور طبع ۱۲۸۹ق).

**۱۸۷۲م ۱۲۸۹ق**

سردار محمد یعقوب خان کابل ته راغئ او بندي سو او سردار محمد ایوب خان په هرات کي د پلار مخالف سو.

سردار حبیب الله خان د سردار عبدالرحمن خان زوی په سمرقند کي په دو شنبه ۲۵ د ربیع الثاني وزیږید.

د انگریز دولت او روسانو تر منځ د گرینول او گورچاکوف معاهده وسوه چه افغانستان د روسانو د نفوذ د سیمي څخه وتلي دي.

د کابل په بالا حصار کي د پلو لښکرو د مشق د قواعدو کتاب ۳۸۲ مخه مصور د قاضي عبدالقادر له خوا چاپ سو چي بولۍ یې پښتو دي.

د امیر شیر علی خان منظم عسکر ۵۱،۹۹۰ تنه او غیر منظم ۲٤،۰۰۰ تنه وو چي ٤۰ زره ټوپک او ۳٦۹ توپونه یې درلوده.

برهان الدین لاغر د میر یوسف علی بدخشي زوی د جام جم او دیوان اشعار ناظم ژوندی و.

نعمت الله محوي د میمنې شاعر او احمد قلي بن سکندر هروي د آتش فشان د تذکرې مؤلف ژوندی وو.

پر شمالي وزیرستان د پرنگي حمله او د کجوري لوی جنگ او د بادي فقیر شهادت.

**۱۸۷۲م ۱۲۸۹ق**

قاضي عبدالرحمن خانملا د قاضي محمد سعید بارکزی قندهاري زوی د فیصل التفرقه بین الضال و الناجیه رساله وکښله (د کابل خطي کتابخانه).

**۱۸۷۳م ۱۲۹۰ق**

نائب محمد علم خان د ترکستان نائب الحکومه د امیر شیر علی خان په امر میمنه ونیوله.

روسانو خیوا ونیوله.

سید نور محمد شاه صدر اعظم د شملې په کنفرانس کي شامل سو.

د امیر شیر علی خان په فرمان (رمضان ۱۲۹۰ق) عصمت الله خان جبارخیل حشمت الملک او (لوی میني د غرو) وزیر داخله سو. امیر عبدالرحمن خان دی په ۱۸۸۰م په دار وځړاوه.

قاضي عبدالقادر پیښوری د امیر شیر علی خان د دربار ښوونکي او مصاحب یا عسکري سکرتر و، چي د تشریح الجرایم او عسکري تعلیماتنامو او وعظ نامو مؤلف دی. دی د قاضي فضل قادر زوی او د خان علما قاضي حسن لمسی دئ. خو د انگریز جاسوس و.

قاضي عبدالسلام د قاضي محمد سعید بارکزي قندهاري زوي قاضي القضات ؤ.

دوست محمد خټک په قندهار کي په پښتو بدر منیر او بحر العلوم او اخلاق احمدي منظوم کړه.

امیر محمد بن عبدالقادر بن محمد اعظم

سليمان خيل کتوازي د امير شير علی خان په نامه الدافعه لشکوک الطايفة الوهابيه په عربي تاليف کړه.

د محمد عظيم ابکم نقاش ژوند په کابل کې.

عبدالرسول قندهاري شاعر د سفر نامې او آزاد نامې مؤلف د خپل شعر ديوان جوړ کړ.

امير شير علی خان د بالا حصار په خاصه سراچه کې د وليعهدي جلسه وکړه او سردار عبدالله وليعهد سو (۱ شوال ۱۲۹۰ق).

د شوال په دوهمه شپه د سردار عبدالله جان د وليعهدي جشن وسو او په هرات کې سردار محمد يعقوب خان مخالفت وکړ.

په دغه کال د شمالي ولاياتو (مزار شريف) ماليات پنځه لکه روپۍ وې او نائب محمد علم په مزار کې توپونه جوړول.

د قندهار پلټني دوه کاله کابل ته راغلې چې دلته عسکري قوايد زده کې.

سردار ولي محمد خان د کورم لوی ناب د هغه ځاي د ياغي قبايلو توبه نامه امير ته را واستوله او صدر اعظم نور محمد شاه د دوی مشرانو ته خلعتونه ورکړه.

امير شير علی خان خپل ولي عهد د سوات آخوند ته معرفي کړ او آخوند هم هغه ومانه او تبريک ئې ورته ووايه (دو شنبه ۱٤ سوال ۱۲۹۰ق).

صاحبزاده غلام جان د پنجشير او نجراو کم ناب او علی محمد خان د کنر حاکم او خدای نظر خان د غزني حاکم و. مير عنايت الله بدخشي د اصول المباشت ناظم او د ديوان خاوند وفات سو.

**۱۸۷٤م ۱۲۹۱ق**

د نائب محمد علم خان مرگ.

د شاغاسي شير دل خان لوی ناب مقرري د شمالي ولاياتو په حکمراني.

امير شير علی خان د کوچني اختر په ورځ د نولمشر حسين علي خان په سالاري او د قاضي عبدالقادر په ملگري د کابل لښکرو نمايش د مرنجان د غونډي سره وليد. ۳۷ پلي کنډکه، څلور رجمنټه سپاره، لس توپخانې.

د کابل په سيمو کي سخته زلزله وسوه چي له پنجشيره تر کوهدامنه ۷۰۵۲ تنه مړه او ۳۹۰۰ تنه زخمي سوه. په پروان کي ۱۳۰۰ تنه او په کابل کي ١٤ تنه مړه سوه (شمس النهار ٦-۷ رمضان ۱۲۹۱ق).

مير عبدالرحمن د واخان حاکم مړ سو (۱۵ صفر ۱۲۹۱ق).

نظام الملک د چترال د مير زوی د امير شير علی خان دربار ته راغئ.

شاغاسي شيردل خان ته د لوی ناب او د ده زوی خوشدل خان ته د کمکی ناب او ميرزا محمد حسن خان د بيرته د کمناب لقبونه ورکړه سوه او ميرزا محمد نبي خان واصل وفات سو.

سردار شير علي خان هزاره وفات سو.

سردار نصرالله خان د امير عبدالرحمن خان زوی په سمرقند کي وزيږيدی (چهار شنبه ۳۰ صفر ۱۲۹۱ق).

د افغانستان د لومړي جنگ تاريخ د جان وليم کي تاليف درې ټوکه درهمه طبعه په لندن

کي خپور سو.

هنری والټر بلیو چي په ۱۸۷۲م افغانستان ته راغلي و، په خپل کتاب له انډوس تر تایگریس پوري کي د افغانستان احوال له لنډنه خپور کړ (۱۳ فصله).

ملا شاه پسند پوپلزی د قندهار د نیش اوسیدونکي عارف او شاعر د قادری طریقې خلیفه په نیش کي ۷۵ کلن وفات سو (ولادت ئې ۱۲۱۶ق) ده زاد الرحلین په پښتو نظم کړ (د لاهور طبع ۱۳٤۷ش).

**۱۸۷۵م ۱۲۹۲ق**

میرزا نیازي د ملا برات زوی د سمنگان شاعر او خطاط چي دوه دیوانه یې لرل وفات سو.

د امیر شیر علی خان نصیحت نامه تحفة العلماء د قاضي عبدالقادر پیښوری په اهتمام او د میرزا بیضا خان په خط ۸۰ مخه په کابل کي چاپ سوه.

د باجوړ د فیض طلب خان او د ناوه گي د غلام حیدر خان اختلاف د امیر شیر علی خان په توصیه فیصله سو (۲ شوال ۱۲۹۲ق).

ملا سکندر اخند په کابل کي قاضي عسکر و.

**۱۸۷٦م ۱۲۹۳ق**

نواب عطا محمد خان د انگریز سفیر له امیر شیر علی خانه وغوښتل چه د روسانو د پیش قدمي د نیولو لپاره د انگریزانو مامورین افغانستان ته پریږدي خو امیر شیر علی خان نه ومنله.

انگریزانو کوئټه ونیوله.

سید نور محمد شاه صدر اعظم او میر اخور احمد خان او میرزا محمد باقر افغاني سیاسي ډله د مذاکرتو لپاره پیښور ته ولاړه.

اخوند زاده حضرت ملا یحیی د ملا عبدالله زوی د هرات عالم او مدرس د هرات په دښت یلان کي وفات سو.

محمد عمر خان د محمد کلان پوپلزی زوی د خپل وخت پښتو او فارسي شاعر او خطاط او مؤلف په مزار شریف کي وفات سو.

محمد علم خان وکیل الدوله پوپلزی د عبدالله خان زوی په کابل کي وفات سو.

عبدالعلی مستغني د فارسي او پښتو مشهور شاعر د ملا رمضان هوتک زوی د ملا قضا لمسی د ملا رسول داد کړوسی د کابل په بالا حصار کي وزیږیدي (۱۷ ذی حجه).

مستوفي حبیب الله خان له هراته کابل ته را وغوښتل سو، او پر ځای یې سردار محمد عمر خان د سردار محمد عظیم خان زوی د هرات په حکومت مقرر سو.

د امیر شیر علی خان له درباره احمد خان ساکزی د جلال آباد حاکم سوات ته د اخوند عبدالغفور د لیدو لپاره استاځی ولاړ.

د لوگر د موسیي فیص محمد اخوند زاده پښتو روضة المجاهدین د امیر شیر علی خان په نامه نظم کړ (د کابل خطي کتابخانه).

پیر امان الله د مولانا رحمت الله قندهاري زوی د خپل عصر مشهور صوفي او زاهد په غور کي وفات سو.

**۱۸۷۷م ۱۲۹۴ق**

د پيښور په کنفرانس کي د سيد نور محمد شاه صدر اعظم او سر ليوس بيلي مذاکرات ناکام سول (۳۰ جنوري) او سيد نور محمد شاه په پيښور کي مړ سو، او ميرزا حبيب الله خان مستوفي د ملا شاه محمد او تاج محمد پوپلزی او ميرزا محمد طاهر سره پيښور ته د مذاکرې لپاره ولاړل، مگر له جمروده بيرته انگريزانو را واستول.

ارسلا خان وزير خارجه مړ سو او پر ځاي ئې ملا شاه محمد قطب خيل وزير خارجه مقرر سو.

سردار محمد علم خان د پشت رود حاکم معزول سو او پر ځای ئې سردار محمد يوسف خان د امير دوست محمد خان زوی مقرر سو.

د سلطان عبدالحميد له خوا حاجي محمد حسن خان بگرامي وال د کابل دربار ته د خاص استائي په ډول راغي، او د عثماني دولت سفير فوزي افندي و، چي مستشار ئې هدايت الله او باشکاتب ئې حسين او دوه تنه غړي يې منير او خيري بيک وو.

د انگريز سفير په کابل کي نواب محمد حسن خان او نائب يې عطا محمد خان او منشي يې بختيار خان و.

د قاضي عبدالقادر (ښوونکی صاحب بهادر) وعظ نامه د بالا حصار په چاپخانه کي چاپ سوه.

د پست ټکټ (محصول چاپار خانه دارالسلطنه کابل ۱۲۹۴ق) خپور سو چي د زمری سر ئې په منځ کي کښل سوی دئ.

اخوند عبدالغفور بن عبدالواحد (اخوند سوات) لوی نقشبندي او قادري مرشد او مجاهد د سوات په سيدو شريف کي په ۱۲ جنوري وفات او ښخ سو (ولادت ئې د لوړ سوات په شامېزي صافيو کي د ۱۷۹۰م حدود. دی د سوات د رياست او شرعي حکومت مؤسس دئ.

د سليمان بن ابراهيم قندوزي بلخي حسيني صوفي مؤلف وفات.

د اجمع الفوايد، مشرق الاکوان، ينابيع الموده مؤلف (ولادت ۱۲۲۰ق).

**۱۸۷۸م ۱۲۹۵ق**

په ۲۲ جون ستيلاټوف د روس نماينده کابل ته راغئ او په ۱۱ اگست د امير شير علی خان دربار ته ورسيدي او د يوې معاهدې مذاکره ئې ور سره وکړه.

امير شير علی خان د انگريز را ليږلي نماينده سر نيول چمبرلين نه را پريښو چي افغانستان ته راسي.

کلنل کروديکوف له سمرقده هرات ته راغی (نومبر) په ۳۱ د اکتوبر لارډ ليټن د هند ويسرا افغانستان ته التيماتوم ورکئ. په ۲۲ د نومبر د انگريز او افغان دوهم جنگ ونښت او انگريزی لښکر پر افغانستان راغلل.

سردار عبدالله جان وليعهد ۱۷ کلن وفات او په حرم باغ کي ښخ سو ( د نقيب باغ) د ۱۷ شعبان شپه ۱۲۹۵ق.

پر راتې زو پښتنو د انگريزانو لښکر کشي د

مله کنډ پر خوا.

میر محمود شاه بدخشي د میر احمد شاه زوی د دیوان اشعار خاوند وفات سو.

سردار محمد یعقوب خان چې بندي و له قیده ایله سو او د کابل حکمران مقرر سو او سردار محمد ایوب خان هم له مشهده هرات ته راغئ.

د دغه کال تقویم د ملا عبدالرحیم او عبدالرحمن استخراج د کابل د شمس النهار په چاپخانه کي چاپ سو. دغه دوه وروڼه د عزیز الله اخند زاده قندهاری زامن وو.

د کابل د شمس النهار په مطبعه کي مجمع البحرین یعني مقابله حکمت قدیم و جدید د حکیم او ډاکتر چتین شاه تالیف چاب سو او دا له لمړیو مطبوعاتو څخه دئ.

قاضي طلا محمد د قاضي حسن خان زوی د پښتو، فارسي، عربي لیکوال او شاعر او تکړه مؤلف په پیښور کي اوسیدئ. د عربي او دیوان خاوند او د جواهر النغز، سلوة النفریر، نفحة المسلک، تسلیته العقول، سلوة الکثیب مؤلف.

د افغان وار په نامه د جنرال ایبټ ورځ لیک ۳٤٦ مخه له لنډنه د افغانستان پر احوال له ۱۸۳۸ تر ٤۲ پوري خپور سو. نور محمد نوري قندهاري د افغانستان تاریخ وکیښ چي د سدوزو او محمدزو احوال لري (د لندن د انډیا آفس خظي نسخه). ده د امیر شیر علی خان په نامه یو پښتو گرامر هم کښلي دئ. دی د گلشن امارت هم مؤلف دي.

د امیر شیر علی خان سوانح تر ۱۲۸۷ق پوري (د کابل چاپ ۱۳۲۵ش) پر کور مي د پرنگانو حمله او له دوی سره د خلکو غزا.

ارباب عبدالرحمن خلیل د عبدالکریم زوی د پښتو او فارسي او عربي لیکوال او شاعر د مردان اوسیدونکي ژوندی و.

**۱۸۷۹م ۱۲۹٦ق**

پر افغانستان د انگریزي لښکرو حمله او د انگریز او افغان د دوهم جنگ پیل.

امیر شیر علی خان له کابله بلخ ته ولاړ او ۵۸ کلن په پنجشنبه ۲۹ صفر ۱۲٦۹ په مزار شریف کي مړ او ښخ سو (ولادت ۱۲۳۸). په کابل کي امیر محمد یعقوب خان پادشاه سو (ربیع الثاني ۱۲٦۹ق).

جنرال رابرټس کابل په ۱۲ د اکتوبر ۱۸۷۹م ونیوئ.

د گندمک معاهده په ۲٦ مي امضاء سوه (٤ جمادی الثانیه ۱۲۹٦).

په ۲٤ جولایي ۱۸۷۹م د انگریز سفیر کیوناري کابل ته راغئ خو په ۱٦ د رمضان ۱۲۹٦ق ۳ دسمبر ۱۸۷۹م په بالا حصار کي ووژل سو او خلکو پر انگریزانو حملې شروع کړې.

انگریزانو بالا حصار وران کئ او د ذیحجې په میاشت یې امیر یعقوب خان دیره دون ته واستاوه.

محمد جان خان وردک، ملا مشک عالم اندړ، محمد عثمان صافي په کابل کي جهاد شروع کئ او د تپه مرنجان او کوه اسمایي جنگونه وسوه. محمد عثمان خان شهید سو.

امير شير علی خان له مزاره خپل آخري مکتوب جنرال کوفمان ته تاشکند ته د يوه سياسي هيئت سره واستاوه. سردار شير علی خان قندهاري، شاه محمد خان وزير خارجه، قاضی عبدالقادر پيښوری، ملا دين محمد مشک عالم مشهور عالم او مجاهد او ملا عبدالغفور لنگري او محمد جان خان وردک په جهاد کابل ته راغلل.

پرنگيانو د گندمک د معاهدې سره سم کورمه خپله وبلله، خو پښتنو له دوی سره دريمه غزا شروع کړه او غازي محمد سرور خان چکي د غزا مشر و.

د تيراه اعلام او له پرنگيانو سره غزاوي چي د پرنگي ٥٣ زره لښکر پر پښتنو باندی ورغلل.

د ټانک پر بازار د پښتنو مجاهدينو حمله او د ٦٥٣ تنو انگريزي سپاهيانو وژل (شنبه ١٠ جنوري، ٢٦ محرم).

**١٨٨٠م ١٢٩٧-٩٨ق**

د ميوند جنگ او د انگريزانو ماته ١٧ شعبان ١٢٩٧ق ٢٧ جولايي ١٨٨٠م.

جنرال رابرټس له کابله قندهار ته ورسيدي او سردار محمد ايوب خان يې مات کئ ٣١ اگست ١٨٨٠.

سردار عبدالرحمن خان له سمرقنده تر آمو را واوښت قندوز ته راغي (٤ جمادی الثانيه ١٢٩٧ق).

د سردار عبدالرحمن او گريفن مذاکره او موافقه په زمه کي.

امير عبدالرحمن خان په ٥ د رمضان ١٢٩٦ق (جولايي ١٨٨٠م) په کابل کي پادشاه سو او انگريزانو هم ومانه او کابل يئ ور وسپاره.

**١٨٨٠-١٩٠١م ١٢٩٧-١٣١٩ق**

د امير عبدالرحمن خان د امارت دوره.

جنرال رابرټس د قندهار د پير پايمال په جنگ کي په ٢٤ رمضان سردار محمد ايوب خان مات کئ او ايران ته ولاړ. امير عبدالرحمن د شوال په مياشت کي قندهار ته ورسيدئ.

**١٨٨٠م ١٢٩٨ق**

امير عبدالرحمن خان د قندهار له علماو څخه ملا عبدالرحيم اخوندزاده کاکړ او ملا عبدالاحد پوپلزی د قندهار په خرقه شريفه کي ووژل (شوال). سردار عبدالرسول خان د قندهار حاکم او سپه سالار غلام حيدر خان توخي عسکري مشر او ملا يوسف رستاقي کوتوال او ملا سعد الدين خان قاضي مقرر سول.

مولوي احمد جان تاجر الکوزی په قندهار کي د امير عبدالرحمن خان د فتح مدحيه د اليه قصيده وويله.

سلطان محمد خالص قندهاري د موسی خان بارکزی زوی خپل تاريخ سلطاني د امير محمد ايوب خان په نامه په بمبئي کي چاپ کئ. دا کتاب په ١٢٨١ق شرو سوي و او تر ١٢٩٧ق پوري وقايع لري.

په وزيرستان کي پر مکين باندي د پرنگي حمله او د خلکو جهادونه تر ١٨٨١ پوري جاري و او مولانا گلاب دين شهيد سو.

د پرنگي سره د مومندو جهاد او د ميچني

اومه غزا.

په ذيحجه کي سردار عبدالقدوس خان هرات ونيو.

د سردار شير علی هزاره زوی تسليم سو، سيد محمود کنړي او محمد اکبر خان د لال پوري بغاوت وکئ، سيد محمود راولپنډي ته وتښتيدی او اکبر خان په کابل کي نظر بند سو.

امير عبدالرحمن خان د پنځه لکو روپو اخيستلو لپاره ملا ابو بکر او محمد اکبر تاجران د پيښور کمشنر وټرفيلډ ته معرفي کړل، دغه خط د پيښور په موزيم کي دئ (۲۷ صفر ۱۲۹۸).

امير عبدالرحمن د هند د ويسرا په خواهش جنرال مير احمد خان د افغانستان په وکالت په ډهلي کي مقرر کئ او د ويسرا په نامه يې په ۲۵ صفر او د پيښور د کمشنر په نامه کې په ۲۷ صفر مکتوبونه وليکل (د پيښور موزيم).

مير محبتي الفت د مير مرتضی زوی په کابل کي ۷٤ کلن وفات سو (ولادت ۱۲۲٤) د فارسي ښه شاعر و.

ملا عبدالله بن مراد محمد بدخشي شاعر د خپل شعر ديوان ترتيب کئ.

سردار غلام محمد طرزی د خپلي کورنۍ سره د هند کراچي ته فرار سو.

د برگډير ناټ په افغانستان کي د ۱۸۳۸ تر ۱۸٤۲م پوری احوال په ۱۱۳ مخه کي په بمبئي کي چاپ سو.

قاضي عبدالرحمن د امازو گړهي (مردان) افسانۀ دلپذير په پښتو نظم کړه.

**۱۸۸۱م ۱۲۹۹ق**

انگريزانو په اپريل ۱۸۸۱م کي قندهار امير عبدالرحمن ته وسپاره او دی بيرته په ۲۲ محرم ۱۲۹۹ق کابل ته را ورسيد.

جنرال فرامرز خان هرات ته مقرر سو.

د شوال په مياشت کي ناظر محمد سرور خان د سردار عبدالقدوس خان پر ځاي د هرات حکمران مقرر سو او دغه سردار بندي سو.

سردار محمد صديق خان د نظر محمد خان زوی د سردار امير محمد خان لمسی په پيښور کي د ميوند جنگنامه په فارسي مثنوي نظم کړه (۱۷ شعبان ۱۲۹۹ق).

د امير عبدالرحمن خان لښکرو لغمان ونيوئ.

**۱۸۰۲-۱۸۸۲م ۱۲۱۷-۱۲۹۹ق**

د محمد تقي بن حسين هروي عالم، د نهايت الامال او توضيح الحساب او عيون الاحکام د مؤلف د ژوند وخت.

سردار عبدالرسول خان د قندهار نائب الحکومه معزول سو.

سردار نور محمد خان د سردار سلطان محمد خان زوی د قندهار نائب سو.

د هرات د خلکو شورښت آرام سو او صاحب خان علی زی د هغه ځاي حاکم د شورښتيانو مشر نائب اکرم ونيوئ او کابل ته يې را واستاوه.

سردار محمد يوسف خان د امير دوست محمد خان زوی د فراه حاکم سردار ابراهيم بلوخ په چخانسور کي تاراج کئ او سردار تاج محمد

خان بلوڅ هم افغانستان ته راغئ.

سپه سالار فرامرز خان په هرات کي د هغه ښار کلال او د چار باغ عمارتونه ترميم کړه او د غوريانو کلا ئې هم جوره کړه.

مخدوم قلي خان له مرو څخه امير عبدالرحمن خان ته عرض وکئ چه مرو په افغانستان پوری ونښلوي (لکه پخوا).

پر غلجو تره کو باندی د امير د لښکرو بری او کنړ نيول او د ميمنې د والي رايتول، له شنوارو سره د امير د لښکرو جنګ.

## ۱۸۸۲م ۱۳۰۰ق

د انګريزانو يو مسلمان نماينده عطاء الله خان په کابل کي مقرر سو، تر دې وخته ګريفن او قاضي عبدالقادر پيښوری په پټه په کابل کي وو.

امير عبدالرحمن خان، محمد جان خان وردک او د عصمت الله خان جبارخيل کورنۍ او نور درې زره تنه بنديان کړل.

د ربيع الاول په پنځلسمه امير په قندهار کي د منزل باغ او د جلال آباد د شاهي باغ ودانونه.

د هرات د مصلا ورانونه.

شهزاده لوبانوف او لارډ کرينول د روس او انګريز له خوا د ۱۸۷۳م د ګورچاکوف پر موافقه نامه باندي د افغانستان په باب کي خبري وکړې.

مولوي عبدالرؤف قندهاري د سراج الخبار مؤسس په کابل کي د مدرسه شاهي مدرس او د حضور عربي ترجمان مقرر سو (وروستني مالي حضور).

په دغه کال د امير عبدالرحمن ګرده لښکر ۵۸،۷٤۰ تنه وو.

سردار محمد حسن خان سياه او سعدو په منګلو کي وښوريدل، خو جنرال غلام حيدر خان اورکزي دوی د تيره خوا ته وشړل او زرمله ئې ونيوله.

مولوي احمد جان د پښتو تکړه نثر ليکونکی د ګنج پښتو او تاريخ افغانستان ليکوال په پيښور کي ژوندی و.

مولانا محمد عثمان بن محمد علی پادخاني لوګري د عجائب الاخبار او ګلشن اسرار او نورو تاليفاتو خاوند عالم ژوندی و.

رحمت بدخشي د ميرزا اسماعيل زوی د پنځو دري ديوانو خاوند شاعر ژوندی و.

د پنجشير د خلکو ولاړيدل او د دوی بيرته ارامول.

د قندهار د اڅکزو ښورښت او بيرته امر منل.

## ۱۸۸۳م ۱۳۰۱-۲ق

روسانو د تجن رود مجاري د هرات شمال غربي سيمي ونيولې.

انګريزانو د کوټې ټوله سيمه ونيوله.

امير عبدالرحمن خان شغنان او روشان ونيول.

امير عبدالرحمن خان ته دوولس لکه روپې د کاله انګريزانو کومک منظور کئ.

د انګريز او روس ګډ کميسيون د افغانستان د شمالي او غربي سرحداتو د ټاکلو لپاره مقرر سو او امير عبدالرحمن خان په پنجشنبه ٦

ذيقعده ۱۳۰۱ق د دې کميسيون د منلو فرمان صادر کړ او خلکو ته ئې هدايت نامه صادره کړه.

سردار محمد نادر خان د هند په ديره دون کې وزيږيدې (۲۱ حمل ۱۲۶۲ش ۱۳۰۱ق).

سردار محمد ايوب خان په تهران کې و، د ميمنې د والي دلاور خان په غوښتنه له تهرانه پټ د دغو مشرانو سره مشهد ته راغي (۱۰ ربيع الاول). سپه سالارحسين على خان جنرال پرويز شاه خان، خوشدل خان لوى ناب، سردار محمد هاشم خان، قاضي عبدالسلام خان، عبدالله خان ناصر، احمد على خان، مگر دغه ډله د ايران حکومت د انگريزانو په غوښتنه ونيول او په قوچاق کې نظر بند کړه.

په دغه واقعه کې دلاور خان هم په ميمنه کې ياغى سو، خو امير عبدالرحمن خان، مير محمد حسين خان هلته والي وټاکه او ميمنه آرامه سوه.

د کتار او کنبير د کافرانو حمله پر على شنک او د لغمان د حاکم سردار گل محمد خان په مشرې د دوى شړنه.

محمد على غريب د سيد على زوى د پيښور د سيمې اوسيدونکي عالم د پښتو او فارسي شاعر د ډيرو عربي کتابو حاشيه ليکونکى ژوندى و.

## ۱۸۸٤م ۱۳۰۱ق

(۱۵ جمادى الاولي، ۱۳ مارچ)

سيد جمال الدين افغاني په پاريس کې د عروة الوثقى جريده په عربي خپره کړه.

دوهمه طبع ئې په قاهره کې ۱۳۲۸ق د توفيق مطبع ۲۳۲ مخه.

د امير عبدالرحمن خان پخپل خط او انشا د هرات حکمران محمد سرور خان ته يوه مفصله هدايت نامه صادره سوه.

## ۱۸۸٤م ۱۳۰۲ق

سر پيټر لمسډن انگريز د سرحد ويشاو ډلې مشر هرات ته ورسيد او د افغانستان له خوا قاضي سعدالدين خان ورغى.

انگريزانو د کوټې د ريل لار جوړه کړه او روسانو پل خاتول ونيوئ.

امير عبدالرحمن په پنجشنبه ۲٤ جمادي الاولي ۱۳۰۲ق له کابله راولپنډۍ ته رهي سو او په پنجشنبه ۱٦ جمادى الثانيه د هند ويسرا لارډ فرن سره وليدل او په ٦ د رجب جلال آباد ته را ورسيد.

انگريزانو د روسانو د پيشرفت د مخ نيوى لپاره خپل ۵۰ زره مجهز لشکر کوټې ته راوستل.

د رجب په مياشت لمسډن هند ته ولاړ او د سرحد ويشلو کار يې کرنل رجوي ته وسپاره.

نظام الدين انصاري د کمال الدين مزاري بلخي زوى د خپل عصر خطاط او شاعر او مؤلف د اعتقاد لمتحقتين په نامه پر اسلامي فرقو باندې يو رساله په کابل کې وکښله (يکشنبه ۲۲ ربيع الثاني۱۳۰۲ق).

سردار غلام محمد خان طرزي د سردار رحمدل خان قندهاري زوى د دري شاعر او ليکوال او خطاط هنر مند چې د امير عبدالرحمن خان په امر هند ته فرار سوى و له ٤۵ تنو خپلوانو سره له کراچي څخه بغداد ته ولاړ.

په راولپنډۍ کې د امیر عبدالرحمن خان او د هند د وایسراي د مذاکراتو راپور (سوال و جواب دولتي) په پښتو او دري له کابله چاپ او خپور سو. د پښتو مترجم ئې ملا غلام خان لغماني دئ.

امیر عبدالرحمن خان د هرات د ساتني لپاره په شل لکه روپې دیرش زره لښکر تیار کړل، انګریزانو ۲۸ لوی توپونه او ګولۍ ورکړې او ٤۰۰ تنه توپچیان هم تیار سول.

د سوات او بنیر د خلکو نمایندګان امیر عبدالرحمن ته راغلل او امیر د دوی اطاعت ومانه او د افغانستان د ساتلو اطمینان یې ورکئ (۲۲ ذي حجه).

د روس او انګلیس د شمالي افغانستان د سرحد ویشني قرارداد عملی سو او دهنه ذوالفقار او مرچاق افغانستان ته پرېښودل سوه.

سردار محمد هاشم خان (وروستني صدر اعظم) په دیره دون کې وزیږیدی.

### ۱۸۸۵م ۱۳۰۳ق

روسانو د ذوالفقار خوا ته آق رباط ونیو او پنجده ته پر مخ راتله.

د مارچ په ۱۸ روسانو په تاش ګیپریون کي افغانان مات کړه او پنجده یې ونیو.

د انګریز او روس د سرحد ویشلو ډلي په نومبر کي بیا سره ولیدل او د افغان، روس سرحد لومړي ځلي یې رسما ودراوه.

کرنل ستیوارت انګریزي منصب دار د هرات استحکامات وکتل او څلور لکه کلداري یې د استحکام لپاره ورکړې.

ملا مشک عالم دین محمد اندړ د دوهم جنګ لوی مجاهد په پنجشنبه ۱۰ ربیع الاول ۱۳۰۳ق وفات سو.

مستوفي حبیب الله خان وردک (لوی ملک) د امیر شیر علی خان مشر وزیر په راولپنډي کي د فرار په حال کي وفات سو. د ده ولادت د وردګ په جغتو کي ۱۲٤۸ق و.

قاضي عبدالواحد صریر د سمنګان شاعر او عالم او خطاط ۸۰ کلن په بخارا کي وفات سو (۲۲ شوال). سردار غلام محمد طرزي له بغداده شام او استانبول ته ولاړ او د عثماني سلطان میلمه و.

د جلال آباد شاهي باغ د عبدالسبحان خان په مهندسي جوړ سو.

امیر عبدالرحمن خان خپله پند نامه دنیا و دین په کابل کي د روژې په میاشت کي وکښله (د کابل د خطي نسخو کتابخانه او هم د کابل چاپ).

د امیر لښکرو ټول لغمان رایت کئ.

رضوان الله رضوان ماماخیل د هوتي مردان اوسیدونکي فقیه او طبیب او د پښتو شاعر او لیکوال طب اکسیر په پښتو وکیښ.

### ۱۸۸٦م ۱۳۰٤ق

د انګریزانو قبضه پر ټول پښین او سیوی، د روسانو د جلو ګیري په بهانه انګریزانو د بولان د ریل لار جوره کړه.

د سرحداتو د ویشلو ډله په اکتوبر له کابله هند ته ولاړه او سرحدی قرار داد په جولایي ۱۸۸۷م په پترزبرګ کي امضا سو.

اندړو او غلجو اقوامو د ملا مشک عالم د زوی ملا عبدالکريم په مشری سر واخيست.

قاضي سعدالدين خان د هرات حکمران مقرر سو.

سردار نور محمد خان د ولی محمد خان زوی په خوست کي او تيمور شاه خان نايب سالار په هرات کي ياغی سول، او د سردار محمد ايوب خان راتگ هرات ته ناکام سو او ځان يې په مشهد کي انگريزانو ته وسپاره چي هندوستان ته ولاړ سي.

د هوتکو او تره کو ولاړيدل او د دوی رايتول.

د آخوند ملا نجم الدين ظهور د ننگرهار په قبايلو کي.

**۱۸۸۷م ۱۳۰۵ق**

روسانو کرکي ونيو.

د روسانو او انگريزانو حکومتو د افغانستان او روس د سرحداتو پر ويشنه باندی آخرني موافقه وکړه.

ملا ولي الله تيراهي د قبايلو مشر مړ سو.

شاه ابو الفيض او شاه محمود خان دروازي مشران او ورونه سردار عبدالله خان د قطغن حکمران ته تسليم سول او کابل ته راغلل.

امير عبدالرحمن جلال آباد ته ولاړ.

مفتی عيسی مخدوم د نياز محمد بلخي زوی عالم او شاعر په بخارا کي مړ سو (د ده ولادت ۱۲٤۲ق).

د عايشه دراني فارسي ديوان په کابل کي د امير عبدالرحمن په امر چاپ سو.

سيد فخرالدين مجنون شاه د سيد هاشم کابلي زوی د بوستان خيال شاعر (طبع لاهور ۱۳۲۸ق) د کابل په ده افغانان کي مړ سو (سه شنبه ۸ ربيع الاول، ولادت يې ۱۲٤۲ق).

د پرنگي حمله پر بونير باندی.

پرنگيانو پر کورمي بيا يرغلونه وکړل او خلکو څلرمه غزا ور سره ونښلوله.

مير محسن قندهاري د سيد نعيم خان زوی د يورپ جغرافيا له عربي څخه ترجمه کړه (د کابل خطي نسخه).

احمد پيښوری په پښتو انيس الواعظين او قصص الانبياء نظم کړل.

ميا حسيب گل کاکاخيل د پښتو دافع الغم او زاد الفرح او گلدسته حکايات مؤلف ژوندی و.

سيد محسن د مير حسن زوی متخلص په (شامل) بالا حصاری کابلي شاعر وفات سو، دوه د شعر ديوانه لري (ولادت يې ۱۲۳۸ق).

**۱۸۸۸م ۱۳۰٦ق**

سردار محمد اسحق خان په مزار شريف کي ياغی سو، په پنجشنبه ۲۰ محرم يې د نايب سالار غلام حيدر خان سره په غزني گک کي جنگ وکړ، او مغلوب سو، بخارا ته وتښتيد.

امير عبدالرحمن په ۱۹ د صفر له کابله د بلخ ولايت ته رهي سو او په مزار شريف کي د توپک وار پر وسو خو خطا ولاړ او امير زخمي نسو.

په ۲۸ د جمادی الاولی امير فرمان صادر کړ چه چمن انگريزي حکومت ته وسپاري چه

هلته د ریل درید ځاي جوړ کي.

په باجوړ کي د جندول د عمرا خان او د دیرد خان جنگ.

سردار غلام محمد طرزی په شام کي اخلاق حمیده کتاب د سلطان عبدالحمید په نامه وکیښ.

له پرنگي سره د پښتنو جنگ په کوټکي کي.

سعدالله د غلام حضرت قندهاري زوی خپل تفسیر کشف المحجوبین عن خدی تفسیر الجلالین تالیف کړ.

د غلجو ښورښت آرام سو او په کونړ کي صافي وښوریدل.

**۱۸۸۹م ۱۳۰۷ق**

قاضي میر جمال الدین پشدي په مزار شریف کي په ۹ محرم مړ سو.

د انگریز حکومت پر ړوب باندي جاري سو.

جنرال میر احمد خان د افغانستان سفیر په کلکته کي مړ سو او پر ځای یې د ده زوی کرنیل ولي احمد خان هلته سفیر مقرر سو.

په ۲۲ د ذیقعدې امیر عبدالرحمن خان له مزار شریف څخه کابل ته را ستون او شاغاسي محمد سرور خان د هغه ځای حکمران وټاکل سو (۲۱ شوال).

د هزاره قبایلو یاغي توب او د هغو د رایتولو لپاره د سردار عبدالقدوس خان مقررول.

میرزا یعقوب علی د احمد علی خافي زوی د کابل د چنداول اوسیدونکی چي د سردار محمد اسحاق سره سمرقند ته فرار سوي و د افغانستان د متاخرو پاچهانو تاریخ لیکل یې په سمرقند کي شروع کړه (رمضان). د ده ولادت په کابل کي ۱۲٦۷ق و.

ډارمستتر مشهور فرانسوی مستشرق خپل پښتو کتاب د پښتونخوا هار و بهار د پښتو پر ملي سندرو باندي په پاریس کي چاپ کړ.

خان علوم سعدالدین خان قاضي القضات د ازالة الشین في حق الوالدین رساله د حضرت محمد ﷺ د والدینو د ایمان په باب کي وکښله (د کابل خطي کتابخانه).

د مالیاتو او رسمی دفترو اصلاح او فرد په کتاب تبدیلول.

د انگریز د سفیر کرنیل عطاالله خان پر ځای محمد افضل خان گنډه پور په کابل کي سفیر سو (شعبان).

د هزاره سیمي د تسخیر لپاره د امیر عبدالرحمن فرمانونه صادر سول.

په باجوړ کي چه د ددیر خان او عمران خان جگړه نښتې وه ددیر خان مات سو او عمران خان دیر ونیوی (جون).

د بدخشان د میر لور امیر عبدالرحمن خان نکاح کړه او کابل ته راغله (جون).

سردار محمد یوسف خان د امیر دوست محمد خان زوی په شمالي افغانستان (بلخ) کي حکمران سو (جولائي). جنرال غلام حیدر خان اورکزی عسکري مشر و.

روسانو د پنجده مرکز تخت بازار د افغانستان سره د تجارت مرکز کړ (جولایي).

د امیر عبدالرحمن خان لښکر پر فیروز

کوهیانو باندي برى ومونډ (جولايي).

امير عبدالرحمن خان خپل مشر زوى سردار حبيب الله د ملكي كارو مشر او سردار نصرالله يې د كابل عسكري مشر وټاكه (جولايي).

سردار محمد ايوب خان په مرى او راولپنډۍ كې عمر تيراوه.

امير عبدالرحمن خان انگليسي انجنيران منع كړل چې د كابل پر رود د افغانستان خوا ته را تير نسي.

د هندوستان انگريزي اخبارو خپل حكومت ته انتباه وركړه چې دا حركت دوستانه ندى (ستمبر = محرم).

د پيښور د باړې ورجو او د برغاله تنباكو تخمونه افغانستان ته را وغوښتل سوه (ستمبر).

مير محمد على د افغانستان د پوستۍ مشر به پيښور كې مقرر سو (سپتمبر).

د تعمير انجنير مستر پائن انگريز كابل ته راغي.

درې تنه خارجيان يو روسى بل رومى بل سمرقندى له افغانستانه د خيبر پر لار وايستل سوه (دسمبر).

منگل وښوريدل او له خوسته د دوى مقابلې ته لښكر راغلل (دسمبر).

ښاغلي محمد سرور خان د بلخ نائب الحكومه سرې هوا ناجوړه كئ او په كابل كې د ډاكټر غلام قادر خان تر علاج لاندي سو (دسمبر).

جان محمد خان خزاندار د خيانت په الزام موقوف سو (ستمبر).

انگريزانو بړوب او قدرزى او شيراني او واپه ونيول او لاري يې جوړې كړې (نومبر، ربيع الاول).

حاجي ملا عبدالخالق اندړ عالم د كابل د شاهي مدرسې مدرس ۹۵ كلن وفات سو (١٦ ربيع الثاني).

مريم كنيزك د سيد عبدالله لور د هرات د كروخ فارسي شاعره د ديوان خاونده وفات سوه (ولادت ئې ١٢٥٧ق).

د افغانستان سره د روسي تحارت انكشاف او په پنجده كې د بريكوف او لوگوئينوف سوداگرانو فعاليت (جولايي).

سردار محمد شريف خان د امير دوست محمد خان زوى ٦٥ كلن مړ او په بغداد كې ښخ سو (ولادت ١٢٤٣ق).

سرور سلطان د لويناب شير دل خان باركزى لور چې په ١٢٩٤ق زيږيدلې وه پنځلس كلنى د سردار حبيب الله سره واده سوه (٢٧ رمضان). دا د اعليحضرت امان الله خان مور وه.

ملا رمضان هوتک د سردار نصرالله خان لپاره عقايد نسفى په فارسي ترجمه كئ (د كابل خطي كتابخانه).

**١٨٩٠م ١٣٠٧ق**

د اسمار نيول او د دغه ځاي د خلق رايتول.

**١٨٩١م ١٣٠٨ق**

د كوړک سورى كول ختم سوه او د مارچ په مياشت كي د هند سپه سالار افتتاح كئ.

د سر رابرټ سنډيمن له خوا د بړوب د

پښتنو او کاکړانو د ایلولو لپاره انگریزي لښکر استول سوه.

**۱۸۹۱م ۱۳۰۹ق**

د افغانستان او انگلینډ د والشر لوټ کمپاني تر منځ لومړی تجارتي قرار داد وسو (۱ محرم) چه د بدخشان لاجورد او هم وړی، یاقوت، دارچي، لرگي به له افغانستان نه وړي.

علی محمد خان د لاجوردو او سرپو د کان آمر مقرر سو.

په قندهار کي وبا ولویده او د هزاره جات شورش جاري و.

انگریزانو د کورمې سیمي ونیولې او توریان ئې ایل کړل. د ربیع الاول په ۱٦ امیر فرمان صادر کړ چي کافرستان دي ونیول سي او سپه سالار غلام حیدر خان چرخي په لښکر کشي پیل وکړ.

سردار محمد علی خان د قندهار حکمران مړ سو (۱٦ ربیع الثاني).

د ناوگۍ مشر صفدر علی خان په اسمار کي څرخي سپه سالار ته تسلیم سو.

سردار عبدالله خان تیموري د قندهار حکمران سو.

جنرال مکلین انگریز په هشتادان کي د افغانستان او ایران سرحدونه وټاکل.

محمد شریف خان د دیر رئیس ایل سو.

سردار محمد عزیز خان د بلخ والي مقرر سو.

څرخي سپه سالار اسمار ونیو.

د مولوي احمد جان قندهاري په قلم د حکومتي قاعدو کتابچه ٦۳ فقرې خپره او د تعمیل فرمان ئې صادر سو، او دا لومړۍ حکومتي اداری هدایت نامه او دستورالعمل و چي د حکامو وظایف ئې ټاکل.

غلام رسول خان د کرنیل ولی احمد پر ځای په کلکته کي د افغانستان سفیر مقرر سو (۲۸ رمضان).

سردار گل محمد خان د شرقي او جنوبي سرحداتو په سرحد داري مقرر سو.

د تاشقرغان د باغ جهان نما ودانۍ کار د استاد محمد شاه په مهندسي پای ته ورسید.

میر سلطان مشهور ظالم کاردار د امیر په امر په پغمان کي په ونه وځړول سو.

اعلیحضرت امان الله خان د پغمان د دره زرگر د حاجي اسد خان په کور کي وزیږید (۵ ذیقعده ۱۳۰۹ق د پنجشنبی شپه).

د کابل په ماشین خانه کي مډلټن او استورټ نومی انگلیسي انجنیران مقرر سول او په کارتوسو جوړولو پیل وسو، د کابل په دارالضرب کي په دقیقه کي ۵۰ روپې جوړېدې (جنوري = جمادی الاخری).

د کوهاټ خان چي انگریزانو ته پورته سوی ؤ د ده د ایلولو لپاره د میران زی سالار جنرال لوکهارټ هنکو ته ولیږل سو (۱۷ جنوري).

شیخ علی هزاره وښوریدل (جنوري).

د ړوب کاکړو د انگریزانو سره جهاد شروع کړ او سر رابرټ سنډیمن د دوی مقابلې ته وگومارل سو (جنوري).

امیر عبدالرحمن خان دوه زره نور اپریدي په

لښکر کي واخیستل (جنوري).

میرزا محمد نبی واصل د محمد هاشم زوی د امیر شیر علی خان او امیر عبدالرحمن خان دبیرالملک او د دري تکړه شاعر په کابل کي وفات سو (پنجشنبه ١٤ شوال). د شعر دیوان لري.

سردار غلام محمد خان طرزي خپل کتاب وقوعات سته (تحفه شامي) په دمشق کي تالیف کئ (د کابل خطي کتابخانه).

**١٨٩٢م ١٣١٠ق**

د قندهار حکمران او د مزار شریف سپه سالار غلام حیدر خان او ډیر لښکر په هزاره جات کي د سردار عبدالقدوس خان کومک ته ورسیدل او د هغه ځاي د هزاره ګانو شورش په زور ختم کړ سو.

د وزیرو او مسیدو اطاعت نامه امیر ته ورسیدله.

قاضي بابا مراد خان اندخویي عالم د کابل قاضي مقرر سو، چي د امیر حبیب الله په وخت کي قاضي عسکر هم و.

میر ابو القاسم د دربار لوی دبیر مقرر سو.

په کابل کي د مهمان خانې باغ او ودانې د استاد ولي محمد قندهاري په معماري جوړه سوه.

تاجو خان ساکزی د پشت رود د کوچیانو مشر مړ سو.

لومړئ پلا د دولت لخوا د تجارت د انکشاف لپاره تاجرانو ته تقاوي ورکول سوه.

سید عطا محمد شاه قندهاري خطاط د جمادی الثانیه په اومه د دربار خوش نویس مقرر سو.

د دولت کاتبانو ته امر وسو چه متشابه کلمات دي په حرکت (زور، زیر، پیښ) لیکي.

د چترال شیر افضل خان د کابل دربار ته پناه راوړه.

د میمنې کلا او د تل عاشقان برج ترمیم سول.

ملا فیض محمد هزاره د سراج التواریخ مؤلف د ملا محمد سرور ساکزي په سپارښت په تاریخ لیکلو وګمارل سو.

د امریکائي پنبه تخم په جلال آباد او لغمان کي وکرل سو.

په کابل کي د مستر نارنتن په مشري د څرمني کارخانه جوړه سوه.

سردار کاکو جان د فقیر محمد خان زوی چي د سردار ایوب خان سره ایران او بغداد او هند ته فرار سوی و بیرته وطن ته راغئ.

کرنیل ییټ انګریز د کشک او چهل دختران د افغاني روسي سرحداتو د ټاکلو لپاره د هرات شمال ته ولاړ.

انګریزانو وانه، ګومل، دوړ ونیول.

محمد اکبر خان د لال پورې مومند خان تسلیم او په کابل کي میشته کړ سو.

ټولو محمد زو ته د سن په لحاظ نرو ته ٢٠٠ تر ٤٠٠ روپو او ښځو ته ٣٠٠ روپۍ نسبي کالني تنخواه مقرره سوه په دې شرط چه د حاجي جمال نیکه له نسله وي.

سردار غلام محمد طرزي خپل کلیات په

کراچي کي د خپل زوی محمد زمان په خط چاپ کړ.

د امیر عبدالرحمن گرده مسلح عسکر ۱٤۸،٤۰۰ ته رسیدلي چي ایله جاري هم ورسره شامل دي.

مهتر امان الملک د چترال حکمران چي د امیر شیر علی خان سره یې ښه روابط لرل وفات سو.

د جنرال سر لاکهارټ پرنگي لښکري د توچي پر سیمه ورغلي، پښتنو د محي الدین ملا پونده په مشری په غزا لاس پوري کړ او غازي گلستان خان دوړ شهید سو.

په همدغه کال د شگتوي غزا وسوه چي پښتنو ۱۳۳۵ پرنگي سپاهیان او ۹ تنه لوی افسران ووژل او غازي شیر علی خان له ۲۵۷ تنو پښتنو سره شهید سو.

غلام محمد پوپلزی د چارسدې اوسیدونکي د مولانا حالي مد و جزر اسلام په پښتو منظوم او محمدي قاعده یې ولیکله.

ملا احمد جان پیښوری په پښتو ورقه گلشاه، قصه ممتاز، شهزاده بهرام گل اندام او نوري قصې نظم کړې.

ملا نعمت الله نوښاري زبردست قصصي پښتو شاعر د لیلي مجنون، فتح خان، موسی، گل مکۍ او نورو کتابو ناظم ژوندی و.

### ۱۸۹۳م ۱۳۱۱ق

د مالستان د ورشو گانو ټاکنه د کوچیانو او هزاره گانو تر منځ.

د ډیورنډ د هند خارجي سکرتر د هند او افغانستان د سرحداتو د ټاکلو لپاره مقرر او په ۲۱ ربیع الاول کابل ته راغی، چي له پامیره او بدخشانه بیا تر کاکړو او چغۍ پوري ډیورنډ لین وټاکل سو، او د کابل په دربار کي په دوشنبه ۳ جمادی الاولی اعلان سو. او معاهده یې په ۱۲ د نومبر امضا سوه. د امیر تنخواه ۱۸ کلداري مقرره سوه او د وسلو د رانیولو اجازه یې ورونده. دا ویش ملت ندئ منلی.

ملا احمد جان توخي په مدرسه شاهي کي مدرس مقرر سو.

انگریزانو په نوی چمن کي د ریل دریدځي جوړ کړ.

پادری هیوز خپل پښتو منتخبات کلید افغاني په لاهور کي چاپ کړ.

د مریانو د خرڅلاو ممانعت.

د ډیورنډ لین د ټاکلو او څلو ایښوولو لپاره د افغانستان له خوا لومړی سپه سالار غلام حیدر خان او سردار گل محمد خان او سردار شیرین دل خان وټاکل سوه او په پښتو دولتي اعلاناتو د ویش ښوولو خپاره سوه.

شاطر باشي بابا برق د غلو په نیولو او په دار ولو او په امنیت جوړولو وگمارل سو.

له انگریز څخه درې ملیونه او شپږ سوه زره کارتوس رانیول.

د هزاره جات ورشوگاني حکومتي سوې.

د کابل د عیدگاه مسجد د ودانولو کار په دو شنبه ۱٦ شوال ۱۳۱۱ق د استاد محمد اکبر بن استاد محمد عمر په معماري شروع سو، چي په ۹ جمادي الاولي ۱۳۱۵ق ختم سو. مساحت

۴۳،۶۸۰ فت، ۷۷ گنبد، ۸ مناري په ۳۴ فت لوړتیا، رواق ۴۴ فت.

نوی وني او نوی زراعتي تخمونه او د مرغانو نسلونه په افغانستان کي خپاره سوه.

د امیر عبدالرحمن فارسي رساله مرآت العقول په کابل کي چاپ سوه (۵ ذی حجه ۱۳۱۱ق).

د مولوی احمد جان الکوزي اساس القضات گرده ۱۳۶ قاعدې دوهمه پلا په کابل کي ۱۲۳ مخه چاپ سو.

پیر احمد علی شاه قندهاري چشتي صوفي شاعر د دیوان خاوند په امرتسر کي وفات سو (۲ رجب ۱۳۱۱ق).

## ۱۸۹۴م ۱۳۱۲ق

د قندهار تاجر دوست محمد خان د عبیدالله توخي زوی په کراچي کي تجارتي نماینده مقرر سو او ۱۸ فقرې هدایت نامه ورکړه سوه.

میرزا عبدالله قندهاري کاکړ د میرزا محمد یوسف پر ځای په مشهد کي وقایع نگار مقرر سو.

جنرال تاج محمد خان بدخشان ته ولاړ، چي هلته د شغنان پر سرحدو د روسانو سره د تصادم دفاع وکي.

لارډ کرزن د واخان او بدخشان سرحدونه له روس سره وکتل او د چترال له لاری هند ته ولاړ (ربیع الاخر) او بیا په ۲۰ د جمادی الاولی د پیښور له لاري کابل ته راغئ او په ۳ جمادی الثانیه د قندهار له لاري هند ته ولاړ.

ملک امیر محمد خان لوگري د قندهار حکمران مقرر سو.

د غزني بند چي ډک سوی و بیا تعمیر او ترمیم سو.

سید دلاور علی شاه لاهوري د میرزا محمد تقي پر ځاي د انگریز گماشته په قندهار کي مقرر سو. د مسیدو په تنگي کي د ملا پوانده او انگریزانو جنگ.

شیر افضل خان چترالي له کابله د باجوړ عمر خان ته وتښتید، او د امیر الملک او انگریزانو سره ئې جنگ وکئ.

د هند ویسرا امیر عبدالرحمن وباله چي لنډن ته ولاړ سي، مگر امیر خپل دوهم زوی سردار نصرالله خان په ۱۱ د شوال د هند له لاري لندن ته واستاوه او هغه ته ئې یو مفصل پروگرام ورکئ چه له وکټوریا څخه دا وغواړي چي د افغانستان سفیر په لنډن کي ومني.

انگریزانو پر باجوړ حمله وکړه او عمرا خان افغانستان ته پناه راوړه او کابل ته راغئ.

شیر محمد خان گنډه پوري پښتون د خورشید جهان په نامه د پښتنو تاریخ او د قبیلو څانگي په لاهور کي چاپ کړې.

د وزیرستان د وانه په غزا کي ۴۷۰ تنه وزیر او مسید شهیدان سوه او د پرنگي له لښکره ۱۷۶۳ تنه ووژل سوه.

د مولانا همزالله په مشري د مکین دریمه غزا (۲۱ دسمبر).

ملا قطب الدین توخي قندهاري د محمود نامې شرح په فارسي وکښله.

قاضي نقیب الله د قاضي میر جمال کنډي زوی د خانملا قاضي عبدالرحمن خان د نصیحة المومنین رساله شرح کړه (قندهار ۱۳ رمضان).

**۱۸۹۵م ۱۳۱۳ق**

سپه سالار غلام حیدر خان ته فرمان صادر سو چي ټول کافرستان بیخي ونیسي، هغه د کال تر پایه ټول کافرستان په نورستان بدل کئ او ټول خلک ئې مسلمانان سول.

د پامیر د سرحداتو ټاکنه د انگریزانو او روسانو په وسیله (۲۰ ربیع الاول).

میر مرتضی خان د هرات د گازر گاه میر په ٤ د ربیع الاول په هرات کي مړ سو او زوی ئې میر محمد عثمان پر ځای کښېنوست.

شهزاده حفیظ الله د امیر عبدالرحمن زوی مړ سو (د ربیع الثاني لومړی ورځې).

سردار نصر الله خان د لندن له سفره د کراچي، قندهار له خوا په یکشنبه ۲۹ جمادی الاولی کابل ته راغئ.

عمرا خان باجوړی د قندهار او هند له لاریې حج ته ولاړ.

امیر محمد خان د قندهار حکمران مړ سو، او محمد علم خان قابوچي باشي په یکشنبه ۲۸ شوال د قندهار حاکم مقرر سو.

په قندهار کي هراتي او نورزي سپاهیانو جنگ سره وکئ او برگډ محمد صادق خان یې بلوا وکړه چي په ۲۵ د لوی اختر کابل ته را وغوښتل سوه.

چترال او دیر انگریزانو ونیول او غازي مهتر امیر الملک ئې په مدارس کي بندي کئ.

د مله کنډ په کنډو کي د انگریزانو او پښتنو جنگ او د راني زو سره معاهده (۱۲ ستمبر ۱۸۹۵م).

امیر عبدالرحمن خان د خپل کتاب پند نامه دنیا و دین لومړئ برخه پخپل خط ولیکه (کابل د روژې میاشت، اصل نسخه د کابل د خطي نسخو په کتابخانه کي سته).

د سر رابرټ سنډیمن ژوند او کارونو کتاب د هنري تهارن ټون په قلم له لندنه ۲۹ فصله ۷ ضمیمې خپور سو، چي د افغان او انگلیس د دوهم جنگ ښه تفصیلات لري.

سردار ولي محمد خان مشهور په لاټې د امیر دوست محمد خان زوی ۷۲ کلن په امرتسر کي مړ سو (ولادت ۱۲٤۱ق).

**۱۸۹٦م ۱۳۱٤ق**

د محرم په میاشت امیر عبدالرحمن د ضیاء المملکة و الدین لقب غوره کئ او سکه یې هم پدغه نامه ووهله.

ملا پونده په وزیرستان کي د انگریزانو سره ونښت او بیا کابل ته راغئ او افغانستان ته یې د مهاجرت درخواست وکئ.

په ۲٤ ربیع الاول چهار شنبه قاضي عبدالرحمن خان علوم مړ سو، او عبدالودود زوی یې د کابل په شرعي محکمه کي د ده پر ځای مقرر سو.

درواز چي روسانو نیولي و افغانستان ته وسپارل سو.

امیر عبدالرحمن خان په ټول افغانستان کي ۱٤۸،٤۰۰ تنه مجهز لښکر درلود چي پیاده او

سپاره او توپخانه او خاصه شاهي او پلیس او ایله جاري وو.

**۱۸۹۷م ۱۳۱۵ق**

د آزاد سرحداتو پښتنو له انګریزانو سره جنګونه وکړه.

ملا رجب بلخي خطاط وفات سو.

د سوات په لنډاکي کي د پښتنو او انګریز جنګ د غازی ملا مستان بونیري سر تور فقیر په مشری (۲٦ جولایي ۱۸۹۷م)

د پرنګي حمله پر بونیر باندي.

د ډیورنډ د ویش پر خلاف د مومندو غزا له پرنګي سره، او د میچني اتمه غزا او د پړانګ غار دریمه غزا.

سید جمال الدین افغاني د سید صفدر کنړي زوی د شرق لوی فکري پیشوا په استانبول کي وفات او ښخ سو (ولادت یې د کنړ په اسد آباد کي ۱۲٥٤ق = ۱۸۳۸م). د ده هډوکي په ۱۰ جدي ۱۳۲۳ش کابل ته راوړل سوه او د پوهنتون په منځ کي ښخ سوه.

د کوهاټ له خوا د پرنګیانو حمله پر اورکزو باندي او د خلکو دفاعي جهادونه.

د ځمکنو غزاوي له پرنګیانو سره.

د سوات د پیر زامنو عبدالحنان او عبدالخالق په مله کنډ کي د پرنګي سره غزا وکړه.

له پرنګي سره د مده خیلو وزیرو غزا چي ٥۳ تنه شهیدان سوه او ۹٥۷ تنه پرنګیان یې ووژل.

عباس خان د سردار سلطان محمد خان محمدزی زوي جواهر خمسه یا عناصر اربعه په بحر متقارب مثنوي منظوم کړه (د کابل خطي کتابخانه). دی د ګل عباسي او یوه تفسیر مؤلف هم دی.

سردار احمد خان د امیر دوست محمد خان زوی د فارسي شعر دیوان لرونکي ۷۰ کلن وفات او په پیښور کي ښخ سو (ولادت یې ۱۲٤۷ق).

**۱۸۹۸م ۱۳۱٦ق**

صاحبزاده حبیب الله فاروقي عشرت قندهاري په کابل کي فارسي شراره عشق نظم کئ (غره رجب).

پر بونیر د پرنګیانو بله حمله.

د میر بشیر خان ملک دین خیل په مشری په تیراه کي یو حکومت غوندی جوړ سو او د ځرمنی نوتونه یې جاري کړه خو تر شپږو کالو وروسته بشیر خان افغانستان ته راغئ.

**۱۸۹۹م ۱۳۱۷ق**

د شهرآرا برج او باغ په کابل کي د امیر عبدالرحمن په امر جوړ سوه.

حمید الله د امیرالله زوي د سوابي د کالو خان اوسیدونکي د پښتو احوال النساء ناظم ۹۲ کلن وفات سو (ولادت ئې ۱۲۲٥ق).

**۱۹۰۰م ۱۳۱۸ق**

روسانو د ٦ فروری په یاداشت کي انګریز ته وویل، چي له شمالی سرحداتو څخه د افغانستانه سره مستقیم روابط قایمول غواړي.

سردار غلام محمد طرزی افغان شاعر او مؤلف او هنرمن د شام په دمشق کي وفات او

ښخ سو (د جمعې شپه ۱۵ شعبان ۱۳۱۸ق).

د افغانستان گرده تجارت ۱،۱٥٦،٤٠٥ روپې وې.

مرزا محمد عبدالقادر خان کابلی د (اویماق مغل) کتاب په هند کي وکیښ چي د افغانستان او هزاره او مغولو احوال او قبایل پکښې لیکل سوي دي (د امرتسر چاپ ۱۹۰۲م).

د سید جمال الدین افغاني تتمة البیان في التاریخ الافغان کتاب په عربي په مصر کي چاپ سو (قاهره، العلم العثماني) ۱۹۲ مخه.

میر محمد عثمان بن قاضي میر حسین خان کابلي شاعر خپل دیوان انیس المخزونین ترتیب کئ. ده جمع النصایح په ۱۳۱٦ق لیکلی و.

د منشي سلطان محمد هندوستاني په قلم دوه ټوکه (لائف آف امیر عبدالرحمن) له لنډنه چاپ او خپور سو چي فارسي ترجمه ئې د (تاج التواریخ) په نامه دوه ټوکه د غلام مرتضی خان او حسین علی شیرازي په قلم له مشهده چاپ سوه (۱۹۰۱م) او بیا په بمبئي کي په (۱۳۲۲ق) دوهمه طبع لرې.

### ۱۹۰۱م ۱۳۱۹ق

امیر عبدالرحمن خان د کابل په باغ بالا کي د نقرس په ناروغي پسله ۲۱ کالو امارته مړ سو ۱۹ جمادی الثانیه ۱۳۱۹ق=۱ اکتوبر ۱۹۰۱م.

په ۳ د اکتوبر د ده مشر زوی حبیب الله خان په کابل کي پر تخت کښېنوست. د ده امارت ۱۸ کاله و، له ۱۹۰۱ څخه تر ۱۹۱۹م = ۱۳۱۹ تر ۱۳۳۷ق پوري.

په ۹ د نومبر د هند شمالي غربي صوبه د هندوستان په قانون کي داخله سوه.

د سردار محمد نادر خان کورنۍ له دیره دونه کابل ته راغلل.

ملا رمضان د ملا قضا هوتک زوی د عقلي او نقلي علومو استاد ۷۰ کلن په کابل کي وفات سو (۷ ذی حجه).

مشهور مجاهد عالم او مرشد ملا نجم الدین کاکړ (د هډې صاحب) په هډه کي وفات او ښخ سو (۲۱ رمضان).

الرضی الي الله امیر حبیب الله تول مفرورین چي خارج ته تللی وو، معاف کړه او د راتگ فرمان ئې صادر کئ (جمادی الثانیه).

ملا عبدالباقي افغان خپل کتاب تبیین الواجبات لتخریب العادات په قندهار کي په پښتو نظم کئ.

### ۱۹۰۲م ۱۳۲۰ق

په افغانستان کي کاختی او وبا وه.

انگریزي استازي سر هنری دابس د افغان ـ روس د سرحداتو څلي په ۱۹۰۲-۱۹۰۳م کي بیا نوي کړل.

له شلمه کابل ته د محمود طرزي بیرته راتگ.

مولانا خال محمد خسته د فارسي شاعر او لیکوال او مؤلف د ملا رستم تاجیک زوی په مزار شریف کي وزیږیدئ.

سید ضیاء الدین د عربي اقوام المسالک في تدبیر الممالک په فارسي ترجمه کئ.

سردار عبدالله خان توخي د عبدالرحیم زوی

ملکي نائب سالار او د مزار شريف نائب الحکومه و.

**۱۹۰۳م ۱۳۲۱ق**

مکماهون د انگريزي ډلی مشر په سيستان کي د افغاني سرحداتو ټلي ودرول.

دارالعلوم حبيبيه (اوسني حبيبه ليسه) لومړی عالی مکتب په کابل کي پرانت سو.

انگريزانو د کوئټې او نوشکي په ريلوې جوړولو پيل وکئ.

سردار محمد نادر خان په عسکري منصب زر مشري (کنډک مشر) مقرر سو ۱۳۲۱ق = ۱۲۸۲ش.

سردار محمد عزيز خان د سردار شمس الدين خان زوی د بلخ نائب الحکومه او د فارسي شعر ديوان خاوند وفات او په مزار شريف کي ښخ سو.

حميد الله اخوند زاده (حميد) د پښتو شاعر او عالم د سيدو شريف اوسيدونکي وفات سو.

مولوي رحيم بدخشي خپل کتاب دولت درانيه (اردو) وکيښ چي له ۱۱٦۰ تر ۱۲۱۳ق پوری د افغانستان واقعې لري (قومي پرس دهلی) دا کتاب د ډهلي په رفيق اخبار کي هم له اکتوبر تر نومبر ۱۹۰۳م پوري خپور سوی دئ.

**۱۹۰٤م ۱۳۲۲ق**

سردار عنايت الله خان د امير مشر زوی د هند ويسرا لارډ کرزن په بلنه هند ته ولاړ (۱۲ دسمبر).

محمد يوسف اشنغري پښتو نثر ليکونکي د توبة النصوح قصه له اردو څخه ترجمه او چاپ کړه.

حاجي محمد محسن قندهاري متخلص په شباب چي په ۱۳۰۰ ق له قندهاره فرار سوی و خپل د شعر ديوان ئې تکميل کئ (د هند پټياله طبع ۱۳۲۸ق).

شيخ عبدالوهاب د مانکي پير د سوات د اخوند خليفه د نوښار په ملنکي کي وفات او ښخ سو.

ميرزا يعقوب علی خافي کابلي مورخ د پادشاهان متاخر افغانستان کتاب وکيښ. دوه ټوکه د کابل طبع ۱۳۳٤، ۱۳۳٦ش.

امير حبيب الله خان د ټولو هزاره گانو فراريانو د معافي او وطن ته د بيرته راتگ فرمان صادر کئ (يکشنبه ۱۲ رمضان ۱۳۲۲ق). دغسي هم د لوی اختر په مياشت کي يو چاپي فرمان د اشتهار په ډول خپور سو، او د دولتي کارو د تنظيم لپاره داسي مقرری وسوې:

۱ـ سردار نصرالله خان د نائب السلطنه په لقب چي د پاچا نائب و.

۲ـ شهزاده عنايت الله خان د معين السلطنه په لقب د سردار نصرالله خان نائب.

۳ـ شهزاده امان الله خان د عين الدوله په لقب.

٤ـ سردار عبدالقدوس خان ايشک آقاسی د اعتماد الدوله په لقب.

٥ـ ميرزا محمد حسين خان پر گډير کوتوال د افغانستان مستوفي الممالک ملکي او نظامي جرنيل.

٦ـ خوشدل خان لوی ناب د کابل نائب

الحکومه.

۷ـ سردار عبدالوهاب خان امین المکاتب سو، چي تول د نائب الحکومگانو تر اختیار لوړ لیکونه به ده ته راځي او نائب السلطنه یا پاچا ته ئې وړاندي کوي.

۸ـ سردار محمد یونس خان امین الوجوهات یعني د تجار باشیانو او بندریانو او قافله باشیانو مشر.

۹ـ فتح محمد خان د کوټوالانو مشر.

۱۰ـ ناظر محمد صفر خان امین الاطلاعات چي د ممیزانو او اخبار چیانو مشر و.

۱۱ـ سردار عبدالله خان قوم تیموري د امین الزکات په لقب د زکاتچیانو مشر.

۱۲ـ د شرعی او حقوقی مرافعاتو او دعواوو لپاره د ۲۲ تنو علماوو یوه ټولنه د میزان الشرع په نامه جوره سوه چي مشر ئې میر علی جان خطیب او نائب ئې ملا عبدالرزاق خان دئ او دوی به د دستور العمل میزان الشرع سره سم کار کوي (د امیر حبیب الله مهر).

**۱۹۰۵م ۱۳۲۳، ۱۳۲٤ق**

لویس ولیم ډین د هند خارجه سکرتر کابل ته راغي او د امیر حبیب الله خان سره ئې په ۲۱ مارچ = ۱٤ محرم داسي معاهده لاس لیک کړه چي دمخه امیر عبدالرحمن خان په ۱۸۸۰-۱۸۹۳م له انگریزانو سره منلې وه.

د سراج الخبار د انجمن تاسیس او په کابل کي د مولوی عبدالروف خان قندهاري په مدیري د سراج الاخبار افغانستان لومړۍ شماره خپریدل، پنجشنبه ۱۵ ذیقعده ۱۳۲۳ق ۱۱ جنوري ۱۹۰٦م (فقط یوه شماره نشر سوه).

سردار محمد نادر خان غنډ مشر سو.

محمد شهاب الدین خان ثاقب خپل تاریخ افاغنه دوه ټوکه په اردو په لاهور کي چاپ کئ.

**۱۹۰٦م ۱۳۲٤ق**

د ایران پادشاه د مکماهون حکمیت د هلمند د اوبو په ویشنه کي رد کئ.

محمد یوسف ریاضي هروي د محمد حسن سدوزی زوی (د حیات سلطان ابدالي له پښته) چي مورخ او لیکوال په سیاست لگیا سړي و، خپل کتاب بحر الفوائد (کلیات ریاضي) یې په مشهد کي ۵۷۲ مخه چاپ کئ چي د افغانستان اوضاع ښه ښکاره کوي (ولادت په هرات کي ۱۲۸۸ق).

افغانستان د اوگسټ هملتون تالیف په لندن کي چاپ او خپور سو. دا کتاب د افغانستان مفصل جغرافي او اجتماعي معلومات لري. ۳۱ می ۱۸۲۵-۲۰ اکتوبر ۱۹۰٦م ۱۳۲٤ق.

د هنری جارج راورتي مشهور پښتو پوهاند او مورخ او پر پښتو د ډیرو تالیفاتو خاوند د ژوند دوره. یو څو تالیفات یې:

۱ـ پښتو گرامر په انگلیسي دریمه کامله طبعه ۱۸۷٦م. ۲ـ پښتو لغت دوهمه طبعه ۱۸۷٦م. ۳ـ گلشن روه ۱۸٦۰م. ٤ـ د افغاني شاعرانو منتخبات د ۱۸٦٤م طبعه. ۵ـ د طبقات ناصری انگریزي ترجمه ۱۸۸۱م.

**۱۹۰۷م ۱۳۲۵ق**

امیر حبیب الله خان د هند د ویسرا لارډ

منتهٔ په بلنه هند ته ولاړ (۲ جنوري).

ده په ۱٦ جنوری غره ذوالحجه ۱۳۲٤ د علی گړ اسلامي کالج وکوت او الطاف حسین حالي د هند شاعر په فارسي د ده استقبالیه قصیده وویله، امیر دې کالج ته ۲٦ زره کلداري اعانه ورکړه او د لاهور کالج ته یې ۲۰ زره روپې اعانه ورکړه او بنیاد یې پخپل لاس کښېښنو په مارچ له هنده وطن ته راغې.

د عبدالباقي افغاني کابلي عالم د ژوند وخت. دی دمشق ته تللی و یوه رساله لری: رساله في الاخذ بخبر البرق لاثبات رمضان وغیره.

لومړی طبي مکتب په کابل کې جوړ سو.

انگریز او روس په ۳۱ د اگست په افغانستان او ایران او تبت کې د خپل نفوذ د سیمو د ټاکلو لپاره معاهده سره وکره.

د جبل السراج د اوبو د برښنا کارخانه جوړه سوه.

امیر حبیب الله خان د گرد افغانستان په دوره ولاړ (۱۳۲۵ق = ۱۲۸٦ش).

د قندهار نهر سراج د هلمند له رود څخه افتتاح سو.

د زخه خیلو اپریدو غزاوي له پرنگي سره په وادي بازار کې.

شیخ محمد رضا هروي د امیر حبیب الله په نامه (خزاین السکوک في مسکوکات الملوک) د افغانستان پر مسکوکاتو باندی وکینښ.

محمد عبدالحکیم خان لودي د پښتنو تاریخ (حیات لودي یا شوکت افغاني) درې ټوکه په آگره کې په اردو خپور کئ.

هتورام تاریخ بلوچستان په لکنهو کې چاپ کئ چې د بلوڅو او پښتنو تاریخ دی.

**۱۹۰۸م ۱۳۲٦ق**

سردار محمد نادر خان د جنرالي (لوا مشري) منصب ته ورسیدی.

پښتنو پر پرنگي حملې شرو کړې او اتمان خیلو د پړانگ غار څلرمه غزا وکړه او د میچنی نهمه غزا ونښته.

په لندن کې د افغان انگلیس د دوهم جنگ تاریخ چاپ سو.

د ملا عزت الله عزت انصاري بلخي عالم او شاعر په صالح آباد کې وفات سو.

خیرالله خیري نعمت خیل د بر سوات اوسیدونکی پښتو شاعر وفات سو.

شاپسند محمدزی پښتو شاعر د کندی نوښار اوسیدونکي ۸۰ کلن وفات سو (ولادت یې ۱۸۲۸م).

ملتان زخه خیل اپریدی د خیبر د جنگونو پهلوان او پر پیښور ښار حمله کونکی د پرنگي دښمن ژوندی و.

د عبدالحکیم افغاني قندهاری حنفي فقیه او زاهد او مؤلف وفات په دمشق کې. د کشف الحقاق او شرح شاطبیه او حاشیه شرح بخاري او شرح هدایه او حاشیه تفسیر نسفي او شرح المنار مؤلف (ولادت ئې ۱۲۵۱ق).

شیخ محمد رضا هروی د غزني د شنختو او تاریخي ډبر لیکو په بیان کي په خورا ښه خط (ریاض الالواح) د امیر حبیب الله لپاره تالیف

کړ (عکسی چاپ کابل ۱۳٤٦ش).

**۱۹۰۹م ۱۳۲٦ق**

د لنډي کوتل غزا له پرنګي سره.

جي بي ټيټ د افغانستان او بلوچستان او ايران د سرحدونو د سفر کتاب ۹ بابه مصور د نقشو سره له لندنه خپور کړ. دې د افغانستان د سرحداتو د ټاکني د ډلي یو غړی و.

**۱۹۰۹م ۱۳۲۷ق**

د مارچ په میاشت کي د اخوان افغان د سیاسي او مشروطیت غوښتونکی ډلي غړي ونیول سوه او مولوي محمد سرور واصف قندهاری او د ده ورور سعدالله قندهاری د مولوي احمد جان الکوزی زامن او لعل محمد کابلی او جوهر شاه غوربندي او محمد ایوب پوپلزی قندهاری ووژل سوه او ۳۵ تنه بندیان سول.

**۱۹۱۰م ۱۳۲۸ق**

د کابل او جلال آباد تر منځ د تیلفون لومړی لین جوړ سو.

لومړی مکتب حربیه په کابل کي جوړ سو.

د افغانستان ګزیټ په هند کي مرتب او چاپ سو.

د سراج الاحکام في معاملات الاسلام فارسي فتاوي لومړی ټوک ٦٧٤ مخه میر علمي جان خطیب د دارالسلطنه او مولوي عبدالرازق مدرس تالیف او د میزان التحقیقات الشرعیه علماوو تصحیح کړه چي د امیر حبیب الله خان په نامه د کابل په شاهي مطبعه کي چاپ سوه (یوه مقدمه ۲۱ بانونه).

عمر دین عمر د زین العابدین اتمان خیل زوی د مردان اوسیدونکي خپل پښتو دیوان ترتیب کړ (۷ مئ).

**۱۹۱۱م ۱۳۲۹ق**

سراج الاخبار افغانیه د محمود طرزي په مدیري خپور سو (۱۵ شوال ۱۳۲۹ق ۱٦ میزان ۱۲۹۰ش).

سردار عبدالله خان توخي د بلخ د ولایت حکمران مړ سو او سردار عبدالوهاب خان دمخني امین المکاتیب د هغه پر ځاي حکمران سو.

عبدالرحیم خان د هرات د عسکرو په جرنیلي مقرر سو (رمضان).

د نیلاب پل په ګل بهار کي د مستر هالیدي په انجنیري په ۱۷ شوال ۱۱ اکتوبر ۱۸ میزان ۱۲۹۰ش افتتاح سو.

په کابل کي لومړي یتیم خانه جوړه سوه ذیحجه ۱۳۲۹ق.

په کابل کي د امیر حبیب الله خان په فرمان د طرابلس غرب د شهیدانو او یتیمانو لپاره بسپنه ټوله سوه (ذیحجه).

له انګریزانو سره د بابړي د ملا صاحب (میر سید جان) د شبقدر غزا (دی په ۱۳٤۲ق په چار ملک کي مړ دی).

**۱۹۱۱م ۱۳۳۰ق**

د جلال آباد او لغمان پر لاره د کابل پر سین د مستر هالیډي په انجینیري په درونته کي یو ۳۰٦ فټ اوږد معلق د اوسپني پل جوړ سو (صفر، جدي).

د جلال آباد نهر سراج جوړ سو (صفر، دلو).

دوست محمد خان ناظم بارکزی په ۱۲ محرم د دارالعدالت سر کرده مقرر سو.

د لغمان د قلعة السراج وداني جوړه سوه.

سردار عنایت الله خان په کابل کي مطبعهٔ عنایت جوړه کړه.

سردار محمد عزیز خان د سردار محمد یوسف خان زوی ایشیک اقاسي خارجه مقرر سو.

سید شاه خان نایب سالار د جلال آباد عسکري مشر مقرر سو.

د منګاو ښوربښت او د دوی د آرامولو لپاره د حضور د جرنیل سردار محمد نادر خان لیږل (۲۳ جمادی الاولی). دغه ښوربښت د روژې په میاشت کي تمام سو او سردار محمد نادر خان د حضور نایب سالار مقرر سو.

په پغمان کي ځني نوي وداني لکه سهیل، ستاره، بیت الصیف.

سراج الاخبار په دوهم کال کي په حروفي چاپ او مصور خپور سو (۱۵ شوال = ۲۷ ستمبر = ٤ میزان ۱۳۹۱ش).

د هند د سرحدي صوبې په پیښور او مردان کي معارف او مکتبونه جوړ سول چي د لوی بیداري اثرونه ئې پر پښتنو وکړه.

مولوي شاه عباس مجذوب د شاه عبدالرحیم دهلوي زوی د شاه عبدالعزیز وراره چي په ۱۲٤۲ق ئې له ډهلي څخه کابل ته هجرت کړی و ۱۱۵ کلن په کابل کي وفات سو (جمعه ۱۵ رمضان).

حاجي ملا عبدالله هروي خطاط د ملا دلدار زوی په هرات کي ژوندی و.

## ۱۹۱۲م ۱۳۳۱ق

سراج الاخبار د پښتو پر قدامت او اصالت خاصه مقاله نشر کړه (۱۵ صفر، ۲۳ جنوري، ۳ دلو).

برګډ عبدالوکیل خان د قندهار عسکري قوماندان مقرر سو (جوزا ۱۳۹۲ش).

سردار عنایت الله خان د معارفو په نظارت وګمارل سو.

په وزیرستان کي د مسیدو او توریو قبیلو جنګ (۳ اګست).

د راهداري د تذکرې نظامنامه په ۱۱۵ مادو کي د امیر حبیب الله خان په امضا خپره سوه (۲۵ سنبله).

سیاچاه او شکنجه کول منع سول (شعبان).

انجمن معارف د سردار عنایت الله خان په نظارت جوړ سو او نظامنامه ئې نشر سوه (۹ عقرب).

قومي باغ په کابل کي جوړ سو (وروستني وزارت حربیه).

په قندهار کي په یکشنبه ۱۹ د شوال خلکو پر سرادر محمد عثمان خان نائب الحکومه باندی بلوا وکړه او قاضي امرالله د قاضي میر جمال پشدی زوی او د هغه زوی حمیدالله ئې مړه کړل. سردار محمد عثمان خان موقوف او پر ځای ئې سردار محمد یونس خان امین الوجوهات مقرر سو او د قندهار د سپاهیانو پر معاش د میاشتي ۲ روپۍ زیاتي سوې (۲٤

ذيقعده).

مهديخان د انگريزي هند سفير له کابله ولاړ او پر ځای ئې سيف الله خان کابل ته راغئ.

د سراج التواريخ اول او دوهم ټوك د فيض محمد هزاره په قلم په کابل کي چاپ او خپور سو.

اخوند ملا محمد عمر سلجوقي د ملا محمد ايوب زوی د هرات مشهور مدرس او مؤلف د الملهم في الاصول او شرح کافيه رسالهٔ امکان خاص و عام، حاشيه اسباب غوجي او نورو کتابو مؤلف په هرات کي وفات سو.

محمد عمر خان بردراني هروي خطاط او هنرمن ملاک په هرات کي مړ سو. په دغه وخت کي د هرات بل خطاط محمد رحيم خان الکوزی هلته ژوندی و.

**١٩١٣م ١٣٣٢ق**

د شرکت موټرکار افغانيه په نامه لومړی د حمل و نقل شرکت په کابل کي جوړ سو (قوس).

د وزيرو روحاني او مجاهد مشر ملا پونده په وزيرستان کي وفات سو (جدي).

د حکومت مالي مشاور برگډ عبدالاحمد خان د سمت مغربي لوی خان په کابل کي وواژه سو (د يکشنبې شپه ۷ صفر).

لومړی دار المعلمين په کابل کي افتتاح سو (ربيع الاول). مدير ئې مولوي عبدالرب خان و.

لومړی د هندوانو ابتدائي مکتب په کابل کي جوړ سو (محرم).

حاجي شاه بيک خان په ډهلي کي د افغانستان سفير سو.

د وړينو کالو ماشين خانه په کابل کي افتتاح سوه (يکشنبه ۱ جمادي الثانيه).

د معاريفو د مامورينو نظامنامه ۸۵ مادې د سردار عنايت الله خان له خوا نشر سو (۱۵ محرم).

محمد نعيم خان نائب سالار د هرات عسکری قوماندان سو (۲۷ جمادی الثانيه).

سردار محمد ايوب خان د ميوند مجاهد په سه شنبه ۱۷ د اپريل ۱۹۱٤م ۱۱ جمادی الاولی ۱۳۳۲ق = ۱۷ جمل ۱۳۹۳ش په لاهور کي وفات او په پيښور کي ښخ سو. عمر ئې ۵۷ کاله و.

سردار محمد نادر خان نائب سالار د سپه سالار امير محمد خان پر ځاي د افغانستان سپه سالار سو (سه شنبه ۲۱ رجب ۱۳۳۲ق).

عمومي لمړی جنگ ونښت (رمضان = اگست ۱۹۱٤ = اسد) او امير حبيب الله خان د شوال په اوله ورځ په يوه لوی دربار کي د افغانستان بيطرفي اعلان کړه، او بيا ئې په شنبه ۱۲ ديقعده، ۱۳ اکتوبر ۱۹۱٤م په بل لوی دربار کي تاييد کړه.

شهزاده امان الله خان د محمود طرزي د لور ثريا سره واده وکئ (چهار شنبه ۲۲ ديقعده ۱۹ عقرب ۱۱ نومبر).

په شرقي سرحداتو کي د انگريزانو پر خلاف د قبايلو نهضتونه.

محمد عبدالسلام خان عمر خيل پښتون په هند کي د نسب نامۀ افغانان کتاب چاپ کئ

(رامپور ۱۹۱۴م).

نديم بلخي د سردار نصر الله خان لپاره (نديم المحافل في ترجمه نزهت المجالس) په فارسي وکيښ (خطي).

محمد رحيم اندړ په قندهار کي هزار مسايل په پښتو نظم کئ.

ميا فضل حق مجددي د ميا محمد عمر شهيد زوی په هرات کي وفات او ښخ سو.

نعمان الدين احمد کاکاخيل د پښتو ظفرالنسا تاليف کئ او د ده ماينې زينت النسا وکيښ.

شيخ عبدالوهاب د مانکي ملا صاحب مشهور مرشد او د پښتو عقايد المؤمنين مؤلف په مانکي شريف کي وفات او ښخ سو.

قاري رحمت الله واضح بخاري (تحفة الاحباب في تذکرة الاصحاب) وکيښ چي د افغانستان د شمالي خوا د شاعرانو حال هم لري (د تاشکند چاپ).

**۱۹۱۴م ۱۳۳۳-۳٤ق**

د جبل السراج د بريښنا کارخانه افتتاح سوه (صفر جدي جنوري).

غلام محي الدين خان د قطغن او بدخشان نائب الحکومه په ۱۱ محرم مړ سو او پر ځاي يې امين الاطلاعات ناظر محمد صفر خان مقرر سو.

په کابل کي پنځه ابتدايي مکتبونه د مولوي عبدالرب خان په مديري افتتاح سوه (سه شنبه ۱۲ جمادي الثانيه).

د اکتوبر په مياشت د ندر ماير او هنتينگ په مشری د المان او ترکيې او استريا يوه را ليږلې ډله د ايران او هرات له خوا کابل ته راغله چي د افغانستان حکومت پر انگريزانو را وپاروي د ۱۹۱٦ تر مئي پوري په کابل کي وو، له دې ډلي سره راجه مهندر پرتاب او مولوي برکت الله هندي آزاديخواهان هم وو.

مولوي عبدالروف قندهاري مشهور عالم او د امير حبيب الله خان ملاي حضور په شنبه ۱٦ شوال په کابل کي وفات سو.

په کابل او نورو ښارو کي د کولرا ناروغي خپريدل (رمضان، شوال).

مولوي عبدالرب خان د دار المعلمين مدير او د ابتدائي مکتبو سرښته دار د خپل پلار مولوي عبدالروف پر ځاي ملاي حضور هم سو.

د سنډاکي ملا احمد جان د اباسين د کوهستان اوسيدونکي مجاهد سيد عبدالجبار شاه له ستاني څخه را وغوښت او هغه ئې امير وټاکه، پخپله قاضي القضات سو، او له انگريزانو سره يې د جهاد اعلان وکئ او د چکدرې او مله کنډ غزاوي ئې شرو کړې.

ملا محمد حسين سلجوقي د ملا عبدالاحد هروي زوی چي خطاط او عالم او صوفي سړی و ۹۸ کلن په هرات کي وفات او ښخ سو.

شاه محمد سدوزی د شهزاده ايوب لمسی د سند په ټهلي ښار کي د خپل خاندان تاريخچه وليکله (د آغا بدر دراني کتابخانه په گړي ياسين کي).

عبدالله پوپلزی شاعر د پښتو عبرت نامې او ديوان خاوند په قندهار کي وفات سو.

سید میر مشواڼي هروي زبردست شاعر او نقاش او خطاط او د دیوان خاوند په هرات کي وفات سو (ولادت ئې ۱۲۸۰ق).

**۱۹۱۵م ۱۳۳٤-۳٥ق**

پښتو ژبه د حبیبیه مدرسې په نصاب کي داخله سوه.

د وزیرستان د خلکو جنګونه له انګریزانو سره.

محمود طرزي د سراج الخبار په سر مقاله کي د (حی علی الفلاح) تر عنوان لاندي د افغانستان د استقلال تحریک علني کي او دغه سر مقاله سنسر سوه (غره ربیع الاول ۱۳۳٤ق، ۱٦ جدی ۱۲۹٤ش).

په جمادی الثانیه = حمل ۱۲۹٥ش کي د افغانستان مشهور مشایخ کابل ته دعوت سوه چي د امیر سره وګوري لکه د اسلام پور پاچا، د موسهي اخوند زاده، د تګاب ملا، د هډې آخوند زاده، د برو میا صاحب، میا صاحب حصارک شمس الحق، استاد هډه، د شور بازار حضرات، شیخان صاحبان، حافظ جي صاحب، صوفي صاحب، ملا محمد مرید، ملا عبدالغفار آخوند زاده.

د دغو مشایخو او د خلکو د وکیلانو په شمول یوه لویه جرګه د امیر په حضور کي جوړه سوه او د ملت د اتفاق او د دولت د سیاست (بیطرفي) تایید یې وکئ (جمادی الثانیه، اپریل، حمل).

د هندوستان د آزادیخواهانو مهاجرین افغانستان ته د راجه مهندر برتاپ سره راغلل چي د بابر په باغ کي واوسیدل.

سردار عنایت الله خان ناظر حربیه سو.

فضل واحد د ترنګزو حاجي صاحب د مومندو په ملګري پر سبقدر حمله وکړه.

عبدالغفور ندیم د کابل شاعر او د غلام حیدر زوی ۳۸ کلن په کابل کي وفات سو (سه شنبه ۱۳ رجب). د ده دیوان په ۱۳۰۹ش په تهران کي چاپ سو (ولادت یې ۱۲۹٦ق).

سر مست اپریدي په تیرا کي له پرنګي سره د غزا اعلان وکي.

محمد عثمان فرحت کابلي شاعر خپل کلیات ترتیب کئ.

نیک محمد چاریکاري عمدة الفرایض په فارسي وکیښ چي د کابل په سنګي چاپ په دغه کال د معین السلطنه عنایت الله په امر خپور سو.

**۱۹۱٦م ۱۳۳٥ق**

په وزیرو قبیلو کي ښورښتونه.

سید عظیم شاه مشهور په شاه آقا د قلعه قاضي په جمعه ۲۳ رمضان ۱۳۳٥ق وفات سو.

د افغانستان د استقلال غوښتني د بلبل ګرفتار په رمزي شعر کي د ښاغلي عبدالهادي پریشان له خوا به فارسي او د مولوي صالح محمد قندهار له خوا په پښتو په سراج الخبار کي نشر سوې (ربیع الثاني ۱۳۳٥ق ٥ دلو).

محمد حسن راقم اڅکزی شاعر او محاسب او مؤلف چي په ۱۳۲۷ق د مشروطیت په حرکت کي بندي سوی و په محبس کي وفات سو (ولادت ۱۲۹۰ق).

ناصر الملک د چترال مصلح مهتر د تحفه الابرار او مشرق الانوار او صحیفة التکوین مؤلف د چترالي ژبې د لیک او لوست بنیاد کښېښود او د دې ژبې مخصوص حروف یې رواج کړه (متوفا ۱۹٤۳م).

ندیم بلخي د رحمت الله زوی د دیوان خاوند شاعر وفات سو (ولادت یې ۱۲٥٤ق).

**۱۹۱۷م ۱۳۳٦-۳۷ق**

میان گل عبدالودود د عبدالخالق زوی د سوات د اخوند لمسی په سوات کې د امارت اعلان وکړ.

په نورستان کې ٦ ابتدایي مکتبونه جوړ سوه (جمادی الاخر ۱۳۳٦ق).

**۱۹۱۸-۱۹۱۹-۱۹۲۰م**

**۱۳۳۷-۳۸-۳۹ق**

د پښتنو غزاوي له پرنگي سره: د مغول کوټ غزا، د ټانک غزا، د اپوزي غزا، د توچي غزا، د کسی غره غزا، د کاوړ غزا، د مانجي گري غزا، د ژژي غزا، د دراین غزا، د ترکي غزا، د قلعه دوه غزا.

**۱۹۱۸م ۱۳۳۷ق**

لومړی موزیم په کابل کې جوړ سو.

په ۲٤ دلو ۱۲۹٦ش ۱۳ فروری ۱۹۱۸م سراج الخبار د افغانستان د استقلال په باب کې یوه مفصله مقاله خپره کړه چې د افغانستان د استقلال غوښتلو فکر ئې تقویه کړ (سراج الاخبار ۷ کال ۱۳ گڼه).

د افغانستان د ابتدایي او عالي مکتبو او دارالمعلمین نصاب ترتیب او خپور سو (۱٥ میزان ۱۲۹۷ش ۱ محرم ۱۳۳۷ق).

میر غلام نبي د خپل پلار میر محمد عثمان پر ځای د هرات د گاذرگاه میر وټاکل سو.

محمود طرزي یو د کوچنیانو اخبار له کابله د سراج اطفال په نامه خپور کړ (غره محرم ۱۳۳۷ق ۱٥ میزان ۱۲۹۷ش).

د سراج الاخبار آخرینه شماره په ۱٥ربیع الاول ۱۳۳۷ق ۱۹ دسمبر ۱۹۱۸م ۲۷ قوس ۱۲۹۷ش خپور سو. اتم کال ٦ شماره، تر دې وروسته ندی خپور سوي.

اخوند ملا محمد حسن اوبهي د ملا شمس الدین توخي زوی نقشبندي صوفي او عالم په اوبه کې ۸۰ کلن وفات سو.

د شوروي ترکستان خارجه کمیساریت امیر حبیب الله خان ته پیغام وکړ چې دوستانه روابط سره ولري.

عبدالله بن محمد سبروستاني هروي د حاجي عبدالرحیم اسحق زوی په غوښت د عربي ترتیب الدول کتاب د قوانین الحکما په نامه په فارسي ترجمه کړ (۱٦ ذي حجه ۱۳۳۷ق).

د افغاني آزادي خواهانو له خوا مولوي برکت الله او کاظم بیگ د شوروي ترکستان جمهوریت ته د مذاکرې له پاره واستول سوه.

**۱۹۱۹م ۱۳۳۷-۳۸ق ۱۲۹۷-۱۲۹۸ش**

امیر حبیب الله خان تر ۱۸ کاله سلطنت وروسته د لغمان په کله گوش دره کې په تفنگچه ووژل سو (د پنجشنبې شپه درې بجې، ۱۸ جمادی الولی ۱۳۳۷ق ۱۹ دلو ۱۲۹۷ش، ۲۰ فروري ۱۹۱۹م) او په جلال آباد کي د سردار

نصرالله خان سره په امارت بیعت وسو.

مولوي عبدالرب د امیر حبیب الله خان د حضور ملا او د ابتدایي مکاتبو او دارالمعلمین مدیر په جلال آباد کي د حوت ۱۲۹۷ش په اولو ورځو کي وفات او هورې ښخ سو، دغسي هم د چارباغ ضیا معصوم نقشبندي لوي روحاني پیر هلته وفات سو. امان افغان د امیر حبیب الله مرگ د سلطنت د مقام او د مولوي عبدالرب مرگ یې د شریعت د ریاست او د ضیا معصوم مرگ یې د طریقت د ریاست خالیتوب وگاڼه، چه په یوه وار درې سره مقامه خالي سول (امان افغان لومړۍ کڼه ۲۲ حمل ۱۲۹۸ق).

د فروري له ۲۱ تر ۲۸ پوري امان الله خان په کابل کي د خپل امارت لپاره اقدامات کول او په جمعه ۲۱ فروري ۱۹۱۹م حوت ۱۲۹۷ش ۹۱ جمادي الاولي ۱۳۳۷ق اعلیحضرت امان الله خان په کابل کي پر تخت کښېنوست.

په ۲۸ فروري د افغانستان کامل استقلال د کابل په لوی دربار کي اعلیحضرت امان الله خان اعلان کړ او سردار نصرالله خان له جلال آباد په پنجشنبې ۲۵ جمادي الاولی ۱۳۳۷ق خپله بیعت نامه ورته را واستوله. دغسی هم سردار عنایت الله او حیات الله په جمعه ۲۶ جمادی الاولی د بیعت مکتوب ورته را ولیږلي (امان افغان ۲ کڼه ۷ ثور ۱۲۹۸ش).

په ۳ مارچ ۱۹۱۹م = ۱۲۹۷ش امان الله خان د هند ویسرا ته د افغان او انگریز د نوی معاهدې پیشنهاد د افغانستان د کامل استقلال او مساوی حقوقو پر اساس باندي وکړ.

محمود طرزي د سراج الاخبار مدیر ناظر خارجیه مقرر سو (حمل ۱۲۹۸ش).

د شورا خاص مجلس په کابل کي افتتاح سو (ثور ۱۲۹۸ش).

په افغانستان کي دوهمه پلا کابینه جوړه او وزیران (ناظران) ئې به سر کي مقرر سول (ثور ۱۲۹۸ش، مي ۱۹۱۹م).

۱ـ دائره نظارت عدلیه: ناظر عدلیه محمد ابراهیم خان. ځای: عین العمارت.

۲ـ دائره نظارت حربیه: ناظر حربیه صالح محمد خان سپه سالار. ځای قومي باغ.

۳ـ دائره نظارت خارجیه: ناظر خارجیه محمود بیگ طرزي. ځاي بیت الشوري.

٤ـ دائره نظارت معارف: ناظر معارف عبدالحبیب خان. ځای: قصر شهرآرا.

٥ـ دائره نظارت مالیه: ناظر مالیه میرزا محمود خان. ځای باغ مهمانخانه.

٦ـ دایره نظارت تجارت: ناظر تجارت غلام محمد خان. ځای باغ مهمانخانه.

۷ـ دایره نظارت نقلیات: ناظر نقلیات میرزا عبدالقادر خان. ځاي اصطبل عامره.

۸ـ دایره نظارت زراعت: ناظر علی جان خان. ځاي محکمه مراد خاني.

۹ـ دایره صدارت عظمي اعتماد الدوله عبدالقدوس خان. ځاي قصر باغ مهمانخانه.

په ۲۷ مارچ ۱۹۱۹م ۷ حمل ۱۲۹۸ش د شوروي روسی ترکستان د خارجي امورو کمیسار بوکویا ولینسکي د افغانستان حکومت ته ولیکل چي د شوری حکومت ټول زاړه قراردادونه لغو

کړل، او د ټولو اسلامي دولتو او افغانستانه سره د دوستي روابط غواړي او استقلال ئې منی، او له مسکو ښاغلی براوين ټاکلی سوی دي چې د افغانستانه سره سياسي دوستانه روابط او تجارتي مناسبات ونښلوي.

**په ۷ د اپريل ۱۹۱۹م ۱۸ حمل ۱۲۹۸ش، رجب ۱۳۳۷ق:**

اعلحضرت امان الله خان لنين ته يو ليک واستاوه چې د افغانستان استقلال او دوستي خواهشونه ومنې.

په همدغه تاريخ د افغانستان خارجه وزير محمود طرزي د شوروي دولت خارجه کميسار چيچرين ته يو ليک واستاوه چې د افغانستان دوستانه خواهشونه او استقلال ومنی او د اعليحضرت امان الله خان مکتوب لنين ته وړاندي کي. د دې ليک جواب د لنين له خوا په ۲۲ مي ۱۹۱۹م ثور ۱۲۹۸ش د مبارکۍ او خوښۍ سره راورسيد.

**په ۲۱ د اپريل ۱۹۱۹م ۳۱ حمل ۱۲۹۸ش**

امان الله خان لنين ته د دوسي ليک او د افغانستان د استقلال د اعلان د کاميابيدو ليک واستاوه او جنرال محمد ولی خان ئې د فوق العاده سفير په ډول د مذاکرې لپاره ورته معرفي کئ، دئ د می به ۲۸ تاشکند ته ورسيد او په ۱٤ اکتوبر ۱۹۱۹م ئې د لنين سره په مسکو کي ملاقات وکئ.

د امان افغان لومړی شماره د سراج الاخبار پر ځاي د ښاغلي عبدالهادي په مديري خپره سوه (۲۲ حمل ۱۲۹۸ش ۱۱ رجب ۱۳۳۷ق ۱۲ د اپريل ۱۹۱۹م). په دې شماره کي د امير حبيب الله خان د وژلو او د امير امان الله خان د جلوس احوال چاپ سو.

سردار عبدالقدوس خان صدر اعظم د قندهار د مجاهدينو مشر مقرر سو او هلته ولاړ (حمل ۱۲۹۸ ش).

افغانستان د روليټ بل پر خلاف خپل پروټست د هند حکومت ته واستاوه (مو ۱۹۱۹م ثور ۱۲۹۸ش).

سپه سالار محمد نادر خان د عسکرو سره په ۲۱ رجب ۱۳۳۷ق ۳ ثور ۱۲۹۸ش ۲۳ اپريل ۱۹۱۹م له کابله ولاړ او گرديز ته ورسيد، او ملي قوا ئي د استقلال جنگ ته تنظيم کړل. په جمعه ۱۵ شعبان ئې د گرديز په جامع کي د جهاد خطبه ووېله سوه او د قبايلو په منځ کي د جهاد اعلان وسو او مسيدو د انگريز پر فوج حملې شروع کړې. د افغان او انگريز دريم جنگ ونښت (۳ مئ ۱۹۱۹م).

د سپين وام تانه مجاهدينو په ۲۵ شعبان ونيول او د وانا او سرويکي چونې مسيدو ونيولې (۲۰ شعبان ۱۳۳۷ق ۳۱ ثور ۱۲۹۸ش ۲۱ ي ۱۹۱۹م).

د انگريزانو طيارو پر ډکه، جلال آباد، کابل، سپين بولدک بمباري وکړه (ثور ۱۲۹۸ش).

په ٦ جوزا ۲۷ شعبان ۲۸ مي د ټل ښار افغاني مجاهدينو د سردار محمد نادر خان سپه سالار په مشرتوب ونيو. د جنگ استقلال متارکه ۳ رمضان ۲۲ جوزا ۲ جون۱۳۹۸ش.

په هندوستان کي د خلکو ښورښت زيات او د هجرت تحريک تود سو (جوزا-سرطان). د هندوستان د آزاديخواهانو موقتي ملي حکومت (په کابل کي) جوړ سو او د وزير داخله مولوی عبيدالله سندهي او عزيز هندي په امضا يو اعلان خپور سو چي د هند خلک پر انگريزانو را ولاړ سي (جوزا ۱۲۹۸ش). د دې موقتي حکومت مشر راجه مهندر پرتاب هندي آزاديخواه و.

د اتحاد شوروي له خوا پاکوف واخارويچ سوريتس په منځنۍ آسيا او افغانستان کي د فوق العاده مختار نماينده په ډول معين سو، چي د افغانستان او د بلوچستان د آزادو قبايلو او خيوا او بخارا او د هندوستان او کشمير او تبت له آزادي خواهانو سره رابطه ونښلوي او انقلابي د آزادي غوښتني تحريکات وروزي (۲۳ جون ۱۹۱۹م جوزا ۱۲۹۸ش). دغه سفير په ستمبر کي کابل ته راغئ.

عبدالشکور خان د افغانستان سفير د بخارا د امير دربار ته ورسيد (سرطان ۱۲۹۸ش، جولايي ۱۹۱۹م).

حسين د اسحاق زوی د شوروي دولت لوی سفير کابل ته راغئ (سرطان ۱۲۹۸ش، ۱۹ جولاي).

د افغان او انگليس روغ ليک چي په راولپنډي کي په ۸ اگست په ٥ مادو کي امضا سوی و په ۲۸ اسد ۱۲۹۸ش ۲۰ ذي قعده ۱۳۳۷ق ۱۸ اگسټ ۱۹۱۹م د افغانستان پاچا اعلحضرت امان الله خان تصديق کړ او د استقلال اعلان او لومړی جشن وسو.

د معرف معارف مجله د وزارت معارف له خوا په کابل کي چاپ سوه (۱ سنبله ۱۲۹۸ش).

د سردار محمد نادر خان غازي سپه سالار قوا فاتحانه کابل ته راغلل (۲۸ميزان ۱۲۹۸ش ۲۱ اکتوبر ۱۹۱۹م) او ده ته د اعلی لمر نښان ورکړ سو او د استقلال څلی د ده په نامه په کابل کي جوړ سو او دی وزير حربيه سو او هم په دغه کال ۱۲۹۸ش د سمت مشرقي رئيس تنظيمه مقرر سو (ربيع الاول، قوس، دسمبر).

د حوت په اولو لسو ورځو کي د مشرقي د اقوامو جرگه په جلال آباد کي وسوه او د اتحاد مشرقي جريده هم خپره سوه ۱۲۹۸ش (ربيع الاول، حوت، دسمبر).

د افغانستان د روغی د مذاکري يو هيئت د علی احمد خان په مشري راولپنډي ته ولاړل (دلو ۱۲۹۸ش) او د روغي ليک ئې امضا کړ (۸ اگست ۱۹۱۹م، ۱۱ ذيقعده ۱۳۳۷ق).

د افغانستان د استقلال د جنگ پر وخت د ترنگزو حاجي صاحب او مولانا سيف الرحمن الکوزي د مومندو په ملگري د شبقدر دوهمه غزا له پرنگي سره وکړه.

قاضي القضات خان علوم سعدالدين خان بارکزي په کابل کي وفات سو (٤ ميزان ۱۲۹۸ش). او د ده پر ځاي يې زوی قاضي عبدالشکور خان قاضي القضات سو.

محمد ابراهيم حيرت کابلي شاعر د تحفه شهنشاهي او ديوان اشعار خاوند وفات سو (په

پنجشنبې ۲۵ جمادی الاولی ۱۳۳۷ ق (ولادت ۱۲۵۰ق).

د اعلیحضرت امان الله خان په امضاء کتابچه قانون گذاري حکام افغانستان په کابل کې چاپ او خپره سوه ۱۲۹۸ش.

سردار محمد سلیمان خان وزیر معارف سو (۱۲۹۸ش).

د ۱۲۹۸ ش کال مالی واردات څلوېښت ملیونه کابلي او مصارف ۳۱ ملیونه او ذخیره ۹ ملیونه وه.

**۱۹۲۰م ۱۳۳۸-۳۹ق ۱۲۹۹ش**

د افغانستان لومړۍ د مالیي نظامنامه خپره سوه (۱ حمل ۱۲۹۹ش ۲۱ مارچ ۱۹۲۰م).

په کابل کې لومړۍ ملي کتابخانه جوړه سوه (حمل ۱۲۹۹ش).

د محمود طرزي په مشری د سیاسی مذاکرې لپاره یوه افغاني ډله د هند مسوری ته ولاړل او د هنری ډابس انگکریزي نماینده سره یې خبري وکړې (۱٦ اپریل تر ۱۹ جولایي ۱۹۲۰م). دا ډله په ۱۰ اسد ۱۲۹۹ش کابل ته را ورسیده.

په نظارت معارف کې لومړی علمي انجمن افتتاح سو (۲۰ رمضان ۱۳۳۸ق، ۱۸ جوزا ۱۲۹۹ش).

د افغانستان لومړی سفیر سردار عبدالعزیز خان تهران ته ورسید (۷ شعبان ۱۳۳۸ق) په جمعه ۲۸ جوزا ۱۲۹۹ ش یې د افغانستان بیرغ پورته کئ.

په کابل کې د افغان روزنامه د محمد جعفر په مدیري خپره سوه (دو شنبه ١٤ سرطان ۱۲۹۹ش).

په کابل کې لومړي پلا د اصول دفتری مکتب افتتاح سو (۱۲ ذیقعده ۱۳۳۸ق، سرطان ۱۲۹۹ش).

سپه سالار محمد نادر خان له سمت مشرقي څخه کابل ته راغی (ذیقعده ۱۳۳۸ق،د اسد ۱۲۹۹ش، اگست ۱۹۲۰م).

په جلال آباد کې ابتدایي مکتبونه جوړ سول (اسد ۱۲۹۹ش).

سردار محمد هاشم خان د سمت مشرقي ملکي او نظامي نایب سالار مقرر سو (اسد ۱۲۹۹ش).

په ١٤ اگست ۱۹۲۰م اسد ۱۲۹۹ش یو د بیسیم تلگرافي دستگاه د شوروي د میخانیکانو سره کابل ته را ورسید او لومړی د تشکر تلکرام د امان الله خان له خوا لنین ته ولیږل سو ۱۸ ستمبر ۱۹۲۰م سنبله ۱۲۹۹ش.

د بخارا د شوروي جمهوریت د رئیس فیض الله خواجه له خوا د افغانستان پاچا ته تلگرام را ورسیدي چې د هغه جمهوریت سره روابط قایم سي (۱۵ ستمبر ۱۹۲۰م). د افغانستان خارجه وزیر محمود طرزي په جواب کې د بخارا د مملکت استقلال وغوښت او د ښاغلی عبدالهادي خان مقرري یې د بخارا په سفارت ورته ولیکله.

په هرات کې د اتفاق اسلام هفتگي جریده د عبدالله قانع هروي په مدیري نشر سوه (۱ سنبله ۱۲۹۹ش).

په مرکزي آسیا کي د شوروي روس فوق العاده سفیر سورتس په یوه لیک کي د افغانستان خارجه وزیر محمود طرزي ته وکښل چي عبدالشکور خان افغاني نماینده په بخارا کي پروپاګند او عسکري فعالیتونه کوي چي باید جلوګیري یې وسي (۲۱ ستمبر ۱۹۲۰م).

د هندي مهاجرانو ډلی افغانستان ته راغلې، د مهاجرینو انجمن په کابل کي تاسیس سو (سنبله ۱۲۹۹ش، ستمبر ۱۹۲۰م). یوه ډله مهاجرین د شوروي له لاري اناطول ته ولاړل.

غلام نبي خان څرخي د مزار شریف عسکري قومندان مقرر سو (میزان ۱۲۹۹ش).

د افغانستان سفیر عبدالهادي خان بخارا ته واستول سو (جمعه ۸ میزان ۱۲۹۹ش).

په پختیا (جنوبي خوا) ولایت کي ابتدایي مکتبونه جوړ سول (عقرب ۱۲۹۹ش).

جمال پاشا د ترکیې د حرب وزیر کابل ته له تاشکنده راغئ (٦ عقرب ۱۲۹۹ش، نومبر ۱۹۲۰م).

اعلیحضرت امان الله خان او محمود طرزي د لنین او چیچرین په نامه مکتوبونه واستول چي د افغان او شوروی لومړئ معاهده ترتیب سوې او در ولیږل سوه چي تصدیق سي (اول دسمبر ۱۹۲۰م قوس ۱۲۹۹ش).

د ستارهٔ افغان هفتګي جریده د میر غلام محمد په مدیری له جبل السراج څخه خپره سوه (۹ قوس ۱۲۹۹ش).

سپه سالار محمد نادر خان د قطغن او بدخشان رئیس تنظیمیه مقرر سو (جمادی الاولي ۳۹ جدي ۱۲۹۹ش).

د افغانستان خارجه وزیر محمود طرزي د شوروي اتحاد خارجه وزیر چیچرین ته د دواړو دولتو د معاهدې د تشکر مکتوب د بدري بیګ په لاس واستاوه او د شرق د آزادئ د تحریک مننه ئې وکړه او د جمال پاشا پر راتګ یې خوښي وکړه (دسمبر ۱۹۲۰م).

## ۱۹۲۱م ۱۳۳۹ق ۱۲۹۹-۱۳۰۰ش

سر هنري ډابس د انګریزانو نماینده د معاهدې لپاره د افغانستان سرحد ډکي ته راغئ. د ده سره یوه ډله نور مامورین هم ملګری وو (۱۵ جدي ۱۲۹۹ش، ۵ جنوري ۱۹۲۱م). دوی د جدي په ۲۰ = ۱۰ جنوري د دلکشا په ماڼي کي د اعلیحضرت امان الله خان حضور ته په یوه لوی دربار کي ورغلل.

د سمت مشرقي د اقوامو جرګه کابل ته راغله (۲۱ جدي ۱۲۹۹ش).

موسیو براوین د شوروي دولت سفیر چي په ۱۲۹۸ش ئې د افغانستان تابعیت قبول کړی و، او غوښته ئې چي د قندهار له لاري هند ته ولاړ سي، د چهار شنبې د ماښام پر ۷ بجو ۲۹ جدي ۱۲۹۹ش په غزني کي وواژه سو.

پاینده محمد فرحت د امان افغان د جریدې مدیر سو (۲ دلو ۱۲۹۹ش، جنوري ۱۹۲۱م).

د اناطولی د ملیونو هیئت د عبدالرحمن بیګ پیښوری په مشري بخارا ته را ورسیدئ (۲٤ جنوري ۱۹۲۱م).

د افغانستان سفیر عبدالهادي خان د بخارا

دربار ته ورسيدئ (۲۱ دلو ۱۲۹۹ش).

په کابل کي د نجونو لومړی مکتب مستورات افتتاح سو (دلو ۱۲۹۹ش جنوري ۱۹۲۱م).

عبدالعزيز خان د حضور ياور په نظارت داخله مقرر او محمود خان د ده پر ځاي د حضور ياور سو (متوفا ۱۹ جدي ۱۳۵۰ش).

محمد يعقوب خان د حضور شاغاسي سو (دلو ۱۲۹۹ش).

د افغانستان او شوروي تر منځ لومړئ معاهده په مسکو کي د افغانستان له خوا محمد ولی خان او مرزا محمد خان او غلام صديق خان او د شوروی دولت له خوا چيچرين او قره خان په ۱۲ مادو کي امضا کړه ۲۸ فروری ۱۹۲۱م، ۱۰ حوت ۱۲۹۹ش او د افغانستان فوق العاده هيئت د محمد ولی خان په مشری د مارچ په اوله ورځ له مسکوه غربي اروپا ته رهي سو. دا معاهده د اسد په ۲۲ ورځ ۱۳۰۰ش په پغمان کي اعليحضرت امان الله خان امضا کړه.

د افغانستان او ترکيې لومړئ معاهده په مسکو کي امضاء سوه (۱۱ حوت ۱۲۹۹ش، ۲ مارچ ۱۹۲۱م). د افغانستان له خوا يې امضا کونکي محمد ولی خان فوق العاده سفير او د ترکيې له خوا يوسف کمال بيگ د اقتصاد ناظر او ډاکټر رضا نور بيگ د معارفو ناطر وو.

دا معاهده د جمعې په ورځ ۲۷ ميزان ۱۳۰۱ش ۱۹ اکتوبر ۱۹۲۱م د اعليحضرت امان الله خان له خوا د کابل په عيد گاه کي خلکو ته اعلان سوه.

سلطان احمد خان د افغانستان د وفد مشر د اناطولي دولت ته د باکو له خوا ولاړ (۲۱ حوت ۱۲۹۹ش).

د ۱۲۹۹ش دولتي واردات ٤٥ مليونه او مصارف ۳٦ مليونه او ذخيره نه مليونه وه.

د دولت د نښانو لومړئ نظامنامه خپره سوه (۱۲۹۹ش).

د اعليحضرت امان الله خان د وژلو يوه دسيسه کشف سوه، چي په هغه کي ميرزا محمد علی نائب د ميرزا سيف الدين تره کي زوی شاعر او خطاط او منشی (متولد ۱۲۹۵ق) او اختر جان د ناظر صفر زوی او دلو خان پنجشيري او محمد امين، عبدالله، غلام حيدر ووژل سوه.

له پرنگي سره د چورې د پښتنو غزا (۱۳۳۹ق).

قاضي عبدالطيف سواتي پښتو تفسير تيسير تاليف کئ (۱۳۳۹ق).

محمد ابراهيم خان عدليه وزير د مزار شريف رئيس تنظيميه او بيا محمد سرور خان د هغه ځاي نائب الحکومه سو (۱۲۹۹ش).

## ۱۹۲۱-۲۲م ۱۳۰۰ش ۱۳٤۰-٤۱ق

د افغانستان د ښځو لومړي جريده ارشاد النسوان له کابله د محمود بيگ طرزي د ماينې (اسما) په مديري او د روح افزاء د محمد زمان خازن الکتب د لور په سر محرري خپره سوه (پنجشنبه ۱ حمل ۱۳۰۰ش).

د بخارا لومړی سفير يوسف زاده عبدالرحيم کابل ته راغی (٦ حمل ۱۳۰۰ش). دی د بخارا

د رئيس فيض الله خواجه د (٦ جنوري ١٩٢١، ٢٥ ربیع الثاني ١٣٣٩ق) په مکتوب د افغانستان خارجه وزير ته معرفي سوی و.

د مصطفی کمال له خوا د اناطولي لومړی فوق العاده سفير عبدالرحمن بيگ پيښوری د بخارا او هرات له لاري کابل ته را ورسيد (١٥ حمل ١٣٠٠ش).

په قندهار کي لومړی ابتدايي مکتب تجار افتتاح سو (٢٠ حمل ١٣٠٠ش).

سيد عالم خان د بخارا امير کابل ته د پناهنده په توگه را ورسيد (پنجشنبه ١٥ ثور ١٣٠٠ش).

له ايتاليا سره د افغانستان لومړۍ معاهده امضا سوه (٣ جون ١٩٢١م، ١٧ جوزا ١٣٠٠ش).

د شوروي دولت نوی سفير رسکول نيکوف ته د چيچرين وزير خارنه له خوا هدايت ورکړ سوچي د روسيه شوروي او انگليس د معاهدې مراعات په افغانستان کي وکي او په دې مملکت کي د کمونستي لمسو نه ځان وژغوري، د افغانستان په پيشرفت کي همکار وي، او د ارتجاعي محافلو ''د اسلامي دولتو اتحاديه'' چي د انگريزانو له خوا تلقين کيږي بايد جلو گيري وشي، ځکه چي زمونږ د منځني آسيا حالت ته خطرناکه ده (٣ جون ١٩٢١م جوزا ١٣٠٠ش).

دوه سوه تنه افغاني محصلان هند او اروپا ته واستول سوه (جوزا ١٣٠٠ش جون ١٩٢١م).

په وزيرستان کي د حاجي عبدالرازق په مشری د انگريزانو سره د جهاد دوام (جوزا ١٣٠٠ش).

سپه سالار سردار محمد نادر خان وزير حرب ته د اعلی لمر نښان ورکړ سو (جوزا ١٣٠٠ش جون ١٩٢١م).

د افغانستان او ايران لومړۍ د مؤدت معاهده (٢٢ جون ١٩٢١م سرطان ١٣٠٠ش).

سپه سالار غازي محمد نادر خان د علی آباد په کلا کي امانيه طبي مکتب تاسيس کئ (سرطان ١٣٠٠ش).

د طلوع افغان هفتگي جريده د مولوی صالح په مديري په قندهار کي تاسيس سوه (١٥ سرطان ١٣٠٠ش ٣٠ شوال ١٣٣٩ق ٦ جولائي ١٩٢١م).

مکتب حکام په کابل کي افتتاح سو (٧ سرطان ١٣٠٠ش) نظارت يې په وزير داخله اړه درلوده.

د شوروي روسي دولت نوی لوی سفير رسکول نيکوف د هرات او قندهار له لاري کابل ته راغی (شنبه ٢٥ سرطان ١٣٠٠ش ١٥ جولائي ١٩٢١م).

د افغانستان د اساسي تشکيلاتو او د ملکي تقسيماتو نظامنامې خپرې سوې (سرطان ١٣٠٠ش ٣٠ مي ١٩٢١م).

مولوي غلام محي الدين افغان د دارالمعلمين مدير او د اخوان افغان رکن په چهار شنبه ١٢ اسد ١٣٠٠ وفات سو. دی قندهاري جمرياني و.

د بخارا د دولت بيرق د کابل د بخارا په سفارت کي ورپول سو. دلته د شوروي سفيران

سورتس او رسکول نیکوف او د اناطولي د حکومت سفیر هم حاضر و (پنجشنبه ۲٦ اسد ۱۳۰۰ش).

د شوروي نوی سفیر رسکول نیکوف د افغانستان وزیر خارجه ته اطمینان ورکي چي د افغانستان په داخلي چارو کي به مداخله نه کوي او په افغانستان کي د کوم انقلاب راوستو اراده نلري (۳۰ جولایي ۱۹۲۱م اسد ۱۳۰۰ش).

د ارگ په شمالي برج کي د شوراي دولت افتتاح وسوه (چهار شنبه ۱۱ اسد ۱۳۰۰ش).

مولانا نوردل خان د شیردل خان قمبر خیل اپریدي زوی مشهور مجاهد وفات او په تیراه کي ښخ سو (۲۰ اسد ۱۳۰۰).

په ۱ اسد ۱۳۰۰ش اعلان وسو چي د پست محصول به وروسته نیم اخیستل کیږي.

د شوروي دولت افغانستان ته د نظامي او فني بې عوضو کومکونو وعده ورکړه (۲٤ جولائي ۱۹۲۱م اسد ۱۳۰۰ش).

د برتانیا د نماینده سر هنري ډابس څخه د افغانستان د خارجه وزیر رسمي خواهش چي د ترک او یونان په جنگ کي د یونان سره کومک ونکړي (۲۰ سنبله ۱۳۰۰ش).

عبدالباقي خان د افغانستان لومړی جنرال قونسل په مشهد کي مقرر سو (میزان ۱۳۰۰ش).

د مکتب قضات افتتاح په کابل کي (عقرب ۱۳۰۰ش).

مجموعه عسکریه مجله له حربیه وزارت څخه خپره سوه (۱ عقرب ۱۳۰۰ش).

د افغانستان او برتانیا لومړۍ معاهده ۱٤ مادې ۲ ضمیمې په کابل کي د محمود طرزي وزیر خارجه او سر هنري ډابس له خوا لاس لیک سوه (۳۰ عقرب ۱۳۰۰ش ۲۲نومبر ۱۹۲۱م).

**۱۹۲۲م ۱۳٤۱ق ۱۳۰۰-۱ش**

له کندهاره محمد علی خان د نائب الحکومه قایم مقام ولاړ او پر ځای یې عبدالعزیز خان د تنظیم رئیس مقرر سو (سه شنبه ۱۹ جدی ۱۳۰۰ش جنوري ۱۹۲۲م).

د جدي په ۲۰ ورځ ۱۳۰۰ش ولایاتو ته دغه د تنظیم رئیسان مقرر سول: قطغن او بدخشان ته سپه سالار محمد نادر خان غازي وزیر حربیه.

په وزارت حربیه کي قایم مقام سردار محمد هاشم خان نائب سالار، عبدالعزیز خان وزیر داخله قندهار ته. وزارت داخله قایم مقام محمد سرور خان.

محمد ابراهیم خان وزیر عدلیه مزار شریف ته. د وزارت عدلیه قایم مقام میر زمان الدین عدلي مستشار جمعه خان د وزیر عدلیه معاون میمنې ته.

شجاع الدوله خان وزیر امنیه هرات ته. د وزارت امنیه قایم مقام محمود خان یاور.

صدر اعظم سردار عبدالقدوس خان له قندهاره کابل ته راغي (پنجشنبه ۱٤ جدی ۱۳۰۰ش).

د ایران لومړی لوی سفیر اعتلا الملک کابل ته د پیښور له خوا راغي (شنبه ۹ جدی

۱۳۰۰ش).

شیر احمد خان د ایتالیا په روم کي د افغانستان لومړی لوی سفیر مقرر سو او سفارت خانه یې هلته افتتاح کړه (جدی ۱۳۰۰ش).

د افغانستان لومړی جنرال قونسل محمد حیدر خان ډهلي ته ولاړ (۱ دلو ۱۳۰۰ش).

د افغانستان لومری سفیر عبدالهادي خان په ۱۵ دلو ۱۳۰۰ش د پیښور له لاري لندن ته رهي سو.

د اصلاح هفتګي جریده په خان آباد کي د بشیر احمد په مدیري خپره سوه (۲۹ دلو ۱۳۰۰ش، جمادي الاولي ۱۳٤۰ق، ۱۸ فروري ۱۹۲۲م).

د اتحاد اسلام جریده په مزار شریف کي د عبدالرزاق خان په مدیري نشر سوه (دو شنبه ۱ حوت ۱۳۰۰ش، ۱۹ فروري ۱۹۲۲م). دوې هفتې وروسته د بیدار په نامه تبدیل سوه.

د افغانستان وزیر مختار غلام نبي خان مسکو ته ورسیدی (جمعه ٤ حوت ۱۳۰۰ش، ۲۲ فروري ۱۹۲۲م).

د برتانیا د وزارت مختاري لومړۍ ډله د تورخم له لاري کابل ته راغله (۱۵ حوت ۱۳۰۰ش، مارچ ۱۹۲۲م).

غلام جیلاني خان د هرات لیوا مشر سو (دو شنبه ۱۵ حوت ۱۳۰۰ش).

فرانسیس همفریز د برتانیا وزیر مختار او فوق العاده سفیر خپله اعتماد نامه اعلیحضرت امان الله خان ته وړاندي کړه (۲۲ حوت ۱۳۰۰ش، ۱۳ مارچ ۱۹۲۲م).

په ۱۳۰۰ ش کال دغه دولتي نظامنامې خپرې سوې:

۱ــ د نکاح، واده، ختنه سوري نطامنامه.
۲ــ د ګمرک د محصول اخیستلو نظامنامه.
۳ــ د مالیاتو د کارګذاري نظامنامه.
٤ــ د عباراتو او القابو لنډوني نظامنامه.
۵ــ د ډاکخانو نظامنامه (۹ سنبله).
٦ــ د عسکري جزا نظامنامه.
۷ــ د عسکري کالیو نظامنامه.
۸ــ د افغانستان د ملکي تقسیماتو نظامنامه.

غازي ترین خان توري خیل وزیر د توچي د محمد خیلو په غزا کي شهید سو.

مولوي عبدالمجید افغاني اتمان خیل په پیښور کي جمال افغاني تالیف کئ.

قاضي خیرالله پیښوری پښتو قاموس خیرالغات وکیښ.

عمر دین مرداني پښتو تکړه شاعر ژوندی و.

د ۱۳۰۰ش کال مالي واردات ۵۱ ملونه کابلي، مصارت ٤۰ ملیونه، ذخیره ۱۱ ملیونه.

عجب خان اپریدی د غلام حیدر خان ادم خیل زوی د پرنګي سره غزا وکړه او د یوه پرنګي لور ئې ځني بوتله افغانستان ته راغی او تر آخره په مزار شریف کي په احترام اوسیدي څو چي ۹۵ کلن په ۱۳٤۰ق وفات سو (ولادت ئې ۱۲٤۵ش). د ده د بیرته ورکولو لپاره انګریزی حکومت افغانستان ته التیماټوم ورکي، خو افغانستان و نه مانه.

مولوی عبدالواسع قندهاري دوه ټوکه

نمسک القضات الامانیه د اعلیحصرت امان الله په فرمان تالیف او چاپ کړ (کابل ۱۳۰۰ش). لومړی ټوک حقوق، دوهم جزا، ۱۱۱۳ مادې.

په کابل کي د ابلاغ په نامه دیواري روز نامه د میرزا محمد اکبر په مدیري خپره سوه ۱۳۰۰ش.

**۱۹۲۲م ۱۳۰۱ش**

د پاسپورټ قانون به کابل کي د وزارت داخله له خوا خپور سو (حمل ۱۳۰۱ش، اپریل ۱۹۲۲م).

د مکتب اصول دفتري افتتاح په کابل کي (چهار شنبه ٦ ثور).

د افغانستان بیرق د لنډن پر افغاني سفارت باندي پورته سو (جمعه ۸ حمل ۱۳۰۱ش ۷ اپریل ۱۹۲۲م).

د افغانستان او فرانس لومړۍ د سیاسي او اقتصادي روابطو معاهده لاس لیک سوه (۲۸ اپریل ۱۹۲۲م ۷ ثور ۱۳۰۱ش).

موسیو فوشه لرغون پوهاند له فرانسې څخه د هرات له لاري کابل ته راغي (چهار شنبه ۲۰ ثور ۱۳۰۱ش).

محمد ولي خان د افغانستان فوق العاده نماینده د اروپا او امریکا له سفره کابل ته راغي. د ده د سفر مطلب د آزاد افغانستان پیژندگلوي په ټوله دنیا کي وه (پنجشنبه ۱۱ جوزا ۱۳۰۱ش ۳۱ مي ۱۹۲۲م).

د ایتالیا لومړی وزیر مختار او سفیر مارکویس پیترنو کابل ته راغي (پنجشنبه ۱۱ جوزا ۱۳۰۱ش).

سلطان احمد خان په انقره کي د افغانستان سفیر مقرر سو (سرطان ۱۲۰۱ جولائي ۱۹۲۲م).

فخري پاشا د ترکیې سفیر کابل ته را ورسید (۵ سرطان ۱۳۰۱ش ۲۵ جون).

د شوروي دولت لومړی قونسل تایز نیک هرات ته راغي (۱۳ سرطان ۱۳۰۱ش ۳ جولایي ۱۹۲۲م).

د چین سیاسي وفد د جنک-لن-یونک په مشري کابل ته راغي (۱۵ سرطان ۱۳۰۱ش).

د افغانستان بیرق د بمبئي په افغاني قونسل خانه کي د حاجي محمد اکبر قونسل له خوا پورته سو (۲۰ اسد ۱۳۰۱ش).

د افغانستان لومړی جنرل قونسل محمد شریف خان چیني ترکستان ته ولاړ (۸ سنبله ۱۳۰۱ش ۳۰ اگست ۱۹۲۲م). د ده سره د چین نمایندگان جنک لن یونک او توجک تانک هم ولاړل.

غلام صدیق خان د افغانستان وزیر مختار برلن (جرمني) ته ولاړ (۱۱ سنبله ۱۳۰۱ش ستمبر)

وزیر خارجه محمود طرزي ته د اعلی لمر نښان ورکړ سو، او په پاریس کي د افغانستان سفیر مقرر سو. د ده پر ځای محمد ولیخان خارجه وزیر سو (پنجشنبه ۲۵ جوزا ۱۳۰۱ش). محمود طرزي پاریس ته ولاړ (۱۷ سنبله ۱۳۰۱ش ۸ ستمبر ۱۹۲۲م).

د افغانستان لومړۍ بودجه ترتیب سوه (دو شنبه ۱۹ سنبله ۱۳۰۱ش)

سردار حيات الله خان وزير معارف او مير هاشم خان وزير ماليه او محمد سليمان خان د قطغن او بدخشان نائب الحکومه او محمد سرور خان د قندهار نائب الحکومه او امرالدين خان د سمت جنوبي اعلا حاکم مقرر سو (۱۹ سنبله ۱۳۰۱ش).

انور پاشا د کولاب په بلخوان کي شهيد سو (سنبله ۱۳۰۲ش اگست ۱۹۲۲م).

د المجاهد پنځلس ورځنی اخبار له چمرکنده (مهمنده) د فضل الهي هندوستاني په مديري د جمعيت عاليه مجاهدين هندي له خوا نشر سو (محرم ۱۳٤۱ق سنبله ۱۳۰۱ش).

قندهار ته د برطانيا لومړی قونسل نواب محمود خان سدوزی راغئ (يکشنبه ۱ ميزان ۱۳۰۱ش ۲۲ ستمبر ۱۹۲۲م).

عبدالجبار خان د امان افغان ناشر او سر محرر سو (۱۵ ميزان ۱۳۰۱ش ۱۷ اکتوبر ۱۹۲۲م).

سيد عطا محمد شاه د سيد تاج محمد قندهاري زوی مشهور خطاط او عالم په کابل کي وفات سو (پنجشنبه ۱۹ ميزان ۱۳۰۱ش ۲۰ صفر ۱۳٤۱ق، ولادت ئې په قندهار کي ۱۲٦۹ ق)

د افغانستان سفير سردار جمعه خان له مزار شريف څخه بخارا ته ورسيدي (جمعه ۲۰ ميزان ۱۳۰۱ش).

د افغانستان او فرانسې تر منځ د لرغونو آثارو د لټون معاهده وسوه (ميزان ۱۳۰۱ش ۹ ستمبر ۱۹۲۲م).

د افغانستان او سينور دات ايتالوي شرکت تر منځ د موټر د حمل و نقل قرارداد (۸ عقرب ۱۳۰۱ش).

نوی گمرکي اصول ترتيب او معمول سول (عقرب ۱۳۰۱ش).

د کابل د ارگ په برج شمالي کي د مولوي عبدالواسع قندهاري په رياست د پښتو مرکه جوړه سوه. او خپل لومړی پښتو اعلان ئې خپور کي (عقرب ۱۳۰۱ش اکتوبر ۱۹۲۲م).

سپه سالار محمد نادر خان په پنجشنبه ۱ قوس ۱۳۰۱ کابل ته راغی او پر ځاي ئې قطغن او بدخشان ته سردار محمد سليمان خان نائب الحکومه مقرر سو.

په هرات کي ابتدائي مکتبونه تاسيس سوه (قوس ۱۳۰۱ش).

د افغانستان پاچا اعليحضرت امان الله خان د انگلستان پاچا ته تلگرام واستاوه چي د ترکيې مسئله د ټولو مسلمانانو شريکه ده، خپلو نماينده گانو ته د لوزان په کنفرانس کي هدايت وکړئ چي منصفانه فيصله سي (۳ قوس ۱۳۰۱ش)، د دې تلگرام جواب د پنځم جارج له خوا د ده له اطمينانه سره کابل ته را ورسيدي (۲۸ قوس ۱۳۰۱ش).

هاشم شايق د بخارا سفير او د فوق العاده ډلي رئيس په کابل کي له خپله سفارته استعفا وکړه (٦ جدی ۱۳۰۱ش) او د افغانستان تابعيت يې ومانه.

د افغانستان د مصنوعاتو د استعمال فرمان اعليحضرت امان الله خان صادر کئ (جدی

۱۳۰۱ش دسمبر ۱۹۲۲م)

سید قاسم خان د امان افغان مدیر سو (۸ جدی ۱۳۰۱ش ۲۹ دسمبر ۱۹۲۲م).

په وزیرستان کي ناآرامي او د انگریزانو سره جنگونه او د افغاني اخبارو سخت احتجاج (جدی ۱۳۰۱ش، دسمبر ۱۹۲۲م).

په ۱۳۰۱ش کال دغه نظامنامې د دولت له خوا خپرې سوې.

۱ـ د للمي کرني نظامنامه ( ۱ قوس).

۲ـ د څارویو د محصول نظامنامه (۱ قوس).

۳ـ د دولت د خزانو نظامنامه.

٤ـ د تجارتي تقاویو نظامنامه.

٥ـ د تجارتي شخړو د شرعی محکمې نظامنامه.

٦ـ د حاضري نظامنامه (حمل).

۷ـ د نفوسو د تذکرې نظامنامه.

۸ـ د تعزیه داري نظامنامه.

۹ـ د دولتي تعمیراتو نظامنامه (سرطان).

۱۰ـ د عمومي بودجې نظامنامه (۱ قوس).

۱۱ـ د خورد ضابطانو د مکتبو نظامنامه.

له پرنگي سره د مومندو دریمه غزا.

جمال پاشا د ترکیې مشر او گرزنده وزیر په تفلس کي ووژل سو (۱۳۰۱ش) دی له کابله تللی و.

عظیم الله خان په ایتالیا کي د افغانستان سفیر وټاکل سو (۱۳۰۱ش).

د ۱۳۰۱ش کال دولتي واردات ۵۸ ملیونه کابلي او مصارف ٤۰ ملیونه او سپما ۱٥ ملیونه وه.

**۱۹۲۳م ۱۳۰۱ش**

امانیه مکتب (استقلال) په کابل کي افتتاح سو (جنوري ۱۹۲۳م).

خوشدل خان لوی ناب او علی احمد خان دمخني ناظر داخله او اسلم خان میر شکار او عبدالاحد خان مصاحب چي په مجازات بندیان سوي و معاف سول (دلو ۱۳۰۱ فبروري ۱۹۲۳م).

د افغانستان او بلژیک د مودت معاهده امضاء سوه (۲٤ فبروري ۱۹۲۳م ٥ حوت).

د ۱۳۰۱ش لویه جرگه په یکشنبه ۷ حوت په جلال آباد کي د ۸۷۲ نمایندگانو په شمول د اعلیحضرت امان الله خان په حضور کي جوړه سوه، او لومړی اساسي قانون ئې ومانه چه په جوزا ۱۳۰۲ش ۱۰ اپریل ۱۹۲۳م چاپ او خپور سو.

له کابله د ډکې تر شرقي سرحده پوري د تلگراف لین جوړ او د هند سره ونښت (حوت ۱۳۰۱ش).

**۱۹۲۳م ۱۳۰۱ش ۱۳٤۱-٤۲ق**

د نفوسو د عسکري اجباري جلب نظامنامه نشر سوه (حمل۲).

د افغانستان او انگلستان تجارتي معاهده امضا سوه (سرطان ۲ جولایي ۱۹۲۳م).

فیض محمد خان د وزارت معارف په وکالت مقرر سو (سرطان ۲ جون ۱۹۲۳م).

سید محسن قندهاري لیکوال او عالم په

قندهار کي وفات سو (۱۳ سرطان).

د افغانستان او برتانیا لومړی تجارتي قرار داد (۵ جون ۱۹۲۳م).

د استقلال په جشن کي لومړۍ پلا د تیاتر صحنه جوړه سوه (اسد ۲).

سلطان محمد خان علی زی په زمینداور کي یاغي سو، وزیر داخله عبدالعزیز خان ئې د سرکوبي لپاره راغئ، هغه ونیول سو او د ډیرو ملګرو سره اعدام سو (سنبله ۲ ستمبر ۱۹۲۳م).

عبدالکریم خان بارکزی د مزار شریف نائب الحکومه سو (سنبله ۲).

د افغانستان او ایران لومړۍ معاهده د جمعي په ورځ ۱۵ سنبله ۱۳۰۲ش د کابل په عیدګاه کي اعلیحضرت امان الله خان او د ایران وزیر مختار اعتلاء الملک خلکو ته اعلان کړه. دا معاهده په تهران کي د سرطان په اوله ورځ ۱۳۰۰ش ۱۵ شوال ۱۳۳۹ق ۲۲ جون ۱۹۲۱م د ایران خارجه وزیر محتشم السلطنه او افغاني سفیر عبدالعزیز خان امضا کړې وه.

فوشه د فرانسې وزیر مختار د هند له لاري کابل ته را ورسید او په چهار شنبې ۲ میزان ۱۳۰۲ش ئې خپله اعتماد نامه تقدیم کړه (ستمبر ۱۹۲۳م).

د دارالامان د ښار په جوړولو پیل وسو (چهار شنبه ۲٤ میزان ۱۳۰۲ش ۱۷ اکتوبر ۱۹۲۳م).

هاشم شایق د بخارا پخوانی سفیر چي افغاني تابعیت منلی و د دار التالیف معاون سو (عقرب ۲).

امیر محمد یعقوب خان د امیر شیر علی خان زوی په هند کي مړ سو (۲۲ عقرب ۱۳۰۲ش).

د اعلیحضرت امان الله خان او سپه سالار محمد نادر خان تر منځ فکري اختلاف پیښ سو او د ۱۳۰۲ش په قوس کي مریض او مستعفي سو (نادر افغان).

الماني سفارت په کابل کي افتتاح سو (دسمبر ۲۳، جدي ۲).

د ۱۳۰۲ش کال مالي عایدات ٦٦ ملیونه مصارف ٥١ ملیونه سپما ۱۵ ملیونه افغاني وه.

د سوات والي میا ګل عبدالودود بونیر او چکیسر هم په سوات ور ګډ کړل.

په ۱۳۰۲ش کال دغه دولتي نظامنامې خپرې سوې:

۱ـ د افغانستان د اساسي تشکیلاتو لومړۍ نظامنامه (۱۵ جوزا).

۲ـ د مستوفیانو او اعلی سرشرته دارانو وظایف (جدي).

۳ـ د سرکاري تحویلخانو د مالونو د خرڅولو نظامنامه (۱۵ عقرب).

٤ـ د تیرو محاسبو د تصفیي نظامنامه (۲۰ حمل).

۵ـ د ناقلینو نظامنامه (٤ میزان).

٦ـ د مهاجرینو نظامنامه ۱۸ سرطان.

۷ـ د سرکاري املاکو د فروش نظامنامه (۱۷ ثور).

۸ـ د معارفو د نښانو نظانامه.

۹ـ د قونسلګریو نظامنامه.

۱۰ـ د مامورينو د رخصتي نظامنامه (۱۲ حمل).

۱۱ـ د ملکي مامورينو د استعفا نظامنامه (۱۵ دلو).

۱۲ـ د توقيفخانو او محبوسخانو نظامنامه.

۱۳ـ د تذکرۀ نفوس او پاسپروت او تابعيت نظامنامه (۵ جوزا).

۱٤ـ د دارالمان د ودانيو نظامنامه (۱۹ اسد).

۱۵ـ د خانګي مکتبو نظامنامه (۱٦ سنبله).

۱٦ـ د حاکمانو او مامورينو وظايفو د تفريق نظامنامه (ميزان).

۱۷ـ د قطعاتو او د لوازمو د دايرو د کاتبانو د وظايفو تفريق (۳۱ ميزان).

۱۸ـ د مامورينو د مديريتو نظامنامه (۱۰ عقرب).

۱۹ـ د خارجه وزارت د محاسبې د مديريت نظامنامه (۱٤ عقرب).

۲۰ـ د حربيه وزارت نطامنامه (۲۵ عقرب).

۲۱ـ د مديريت او دفتر اوراق او مديريت مکتوب نظامنامه (۱۰ عقرب).

۲۲ـ د زراعت د مامورينو وظايف (۲۵ قوس).

۲۳ـ د وکيل التجاره نظامنامه (۱۹ جدي).

۲٤ـ د ليليه اداری اعلان نامه (۲۱ جدي).

۲۵ـ د بلديو نظامنامه (۲۵ دلو)

۲٦ـ د مامورينو د جزايي محامکاتو اصول (۲۰ حوت).

۲۷ـ د صنايعو د تشويق نظامنامه.

۲۸ـ د پغمان د تعميراتو نظامنامه.

۲۹ـ د عمومي جزا نظامنامه (عقرب ۲ اکتوبر ۱۹۲۳م).

۳۰ـ د نکاح نظامنامه (قوس ۲).

۳۱ـ د زراعت د مديرانو د وظايفو نظامنامه (سه شنبه ۲۲ جوزا).

سردار عبدالحميد خان د وزارت عدليه وکيل سو (۱۳۰۲ش).

د تنګي غارو او سالنګ د لارو په جوړولو پيل وسو.

ميرزا محمد يعقوب کابلي تکړه خطاط وفات سو.

مولوي عبدالواسع د پښتو مرکې رئيس د محاکماتو رئيس سو، او عبدالرحمن خان لودين د پښتو مرکې رئيس مقرر سو.

شير احمد مخلص جلال آبادي شاعر امان الغزات د جرنيل شاه محمود خان لپاره په فيض آباد کي منظوم کړ (۱۸ محرم ۱۳٤۲ق).

پرنګيانو د وزيرستان زرمک ونيوئ.

**۱۹۲٤م ۱۳۰۲ش**

لوی لنين په ۲ جنوري ۱۹۲٤م ا دلو ۱۳۰۲ش په مسکو کي مړ سو، او په افغانستان کي د ده پر فقدان د تأسف مجلس جوړ سو او د شوروي دولت د خلکو د همدردي تشکر وکړ (۳ دلو ۱۳۰۲ش).

لومړۍ مستوراتو شفاخانه په کابل کي جوړه

سوه (دلو، ۲ جنوری ۱۹۲٤م).

سردار محمد هاشم خان نائب سالار د غلام نبي خان پر ځاي په مسکو کي د افغانستان وزیر مختار شو (دلو ۲).

د هرات د اتفاق اسلام جریدې نوم په فریاد تبدیل او صلاح الدین سلجوقي ئې مدیر سو (دلو ۲ فروری ۱۹۲٤م).

اعلیحضرت امان الله خان د لنین پر مرګ د تاءسف او همدردي تلګرام کالینن ته واستاوه (۹ فروری ۱۹۲٤م دلو ۲).

د سیاسي علومو مدرسه په خارجه وزارت کي افتتاح سوه (حوت۲).

د بلژیک سره د افغانستان سیاسي روابط ونښتل (حوت ۲).

د مزار شریف د اتحاد اسلام جریده په ۱۵ حوت ۱۳۰۲ش وتړله سوه او پر ځای یئ د بیدار جریده نشر سوه (حوت ۲).

محمد ولي خان د سپه سالار محمد نادر خان پر ځای وزیر حربیه سو (پنجشنبه ۲٤ حوت ۱۳۰۲ش).

په کابینه او لوړو رتبو کي داسي نوی مقرري وسوې (حوت ۱۳۰۲ش).

محمد ولي خان وزیر خارجه وزیر حربیه سو.

سردار محمود بیګ خان طرزي د پاریس افغاني سفیر ـ بیا وزیر خارجه سو.

غلام محمد خان وزیر تجارت ـ وزیر داخله سو.

سردار حیات الله خان وزیر معارف ـ وزیر عدلیه سو.

سردار فیض محمد خان د معارف وکیل ـ وزیر معارف سو.

عبدالهادي خان د لندن افغاني سفیر ـ رئیس شورا سو.

زمان الدین خان د کابل والي ـ د هرات نائب الحکومه سو.

محمد سرور خان د داخله وزارت وکیل ـ د فراه اعلی حاکم سو.

غنډ مشر حبیب الله خان د وزارت حربیه معین سو.

غلام نبي خان افغاني د مسکو سفیر ـد خارجه وزارت معین سو.

سردار عبدالحمید خان د عدلیه وکیل ـ د داخله وزارت معین سو.

میرزا محمد ایوب خان سر منشي ـ د مالیي د وزارت معین سو.

علی محمد خان رئیس تدریسات د وزارت معارف معین سو.

میرزا محمد خان د خارجه مستشار ـ د تجارت د وزارت معین سو.

**۱۹۲٤م ۱۳۰۳ش**

په سمت جنوبي کي د ملا عبدالله او ملا عبدالرشید له خوا بغاوت شرو سو (حوت۲) او محمد ولي خان وزیر حربیه هلته د بغاوت د مقابلې لپاره ولاړ (حمل ۳).

په کابل کي لومړئ پلا ښاروالي (بلدیه) جوړه سوه (۱٤ جمل ۱۳۰۳ش).

الماني ډیر مستخدمین د هرات او قندهار له

لاري کابل ته راغلل (ثور ۱۳۰۳ش).

اعليحضرت امان الله خان امر صادر کړ چي د قندهار طلوع افغان دي په پښتو هم خپريږي (جوزا ۳ جون ۱۹۲٤م).

د آئينه عرفان مجله د معرف معارف پر ځاي د معارفو د وزارت له خوا د دارالتاليف څخه خپره سوه (جوزا ۳).

ستارک د اتحاد شوروي نوی سفير کابل ته راغی (٤ سرطان).

دوهمه لويه جرگه په کابل کي د ټول افغانستان له نماينده گانو څخه په پغمان کي د اعليحضرت امان الله خان په وينا افتتاح سوه (شنبه ۲۸ سرطان ۱۳۰۳ش). دا لويه جرگه د اسد په اتمه ختم سوه او ۱۹ فقرې تصويب سوې.

سردار محمد نادر خان سپه سالار او دمخنی وزير حربيه پاريس ته په افغاني سفارت مقرر سو او په پنجشنبه ۱۹ سرطان له کابله پاريس ته ولاړ.

د پغمان د طاق ظفر افتتاح (پنجشنبه ۱۹ سرطان).

عبدالعزيز خان داخله وزير د حرب د وزارت په وکالت مقرر سو (اسد۳).

په کابل کي د وزارت حربيه له خوا د سمت جنوبي د خبرو د خپرولو لپاره د حقيقت روزنامه د برهاين الدين کشککي په مديري تاسيس سوه (چهار شنبه ۲۲ اسد ۱۳۰۳ش ۱۹۲٤م) دا روزنامه يو کال تر ۱۳۹ شمارې پوري نشريده.

د سمت جنوبي د علماو نوی بيعت نامه پادشاه ته را ورسيده (۲۸ سنبله ۱۳۰۳ش اگست ۱۹۲٤م).

د عمومي جزا لومړی نظامنامه بشپړه خپره سوه (۱ ميزان).

افغانستان لومړی پلا دوې طيارې رانيولې (اسد ۳) او بيا يې له شوروي روس څخه ٥ طيارې رانيولې، چي په چهار شنبه ۹ ميزان کابل ته راغلې.

د سمت جنوبي ياغيانو ته د اعليحضرت امان الله خان وروستني د اخطار فرمان له طيارو څخه خپور سو ۱۳ ميزان ۳ ستمبر).

محمود طرزي وزير خارجه له پاريسه کابل ته راغی (۱۳ ميزان).

د بند غازی د جوړولو کار تمام سو چي لس زره جريبه مځکه اوبوي. مصرف يې ۷۲۰،۲٤۰ کابلي دئ. افتتاح يې په ۲۳ عقرب وسوه.

د کابل موزيم افتتاح سو (دو شنبه ۲٥ عقرب).

افغاني قونسلخانه په مرو کي افتتاح سوه (دو شنبه ۹ قوس).

د هرات نائب الحکومه مير زمان الدين خان په هرات کي په مفاجات مړ سو (پنجشنبه ۱۹ قوس ۱۳۰۲ش ۱۲ دسمبر ۱۹۲٤م).

چيچرين د شوروی دولت خارجه وزير د افغانستان سفير سردار محمد هاشم خان ته اطلاع ورکړه چه د کشک-هرات-قندهار-کابل د تلگرام د لين په جوړولو کي فنی او د سامان امداد کوي (۱۰ دسمبر ۱۹۲٤م قوس ۱۳۰۲ش).

د سپه سالار غازي محمد نادر خان د ۱۳۰۱ش یاداشتونه د رهنماي قطغن و بدخشان په نامه په کابل کي د مولوي برهان الدين کشککي په اهتمام چاپ سول ٤٥٦ مخه د نقشو او جدولو سره. (کابل وزارت حربيه سنګي مطبع اول جدي).

**۱۹۲۵م ۱۳۰۳ش**

د افغانستان د مطبوعاتو لومړئ نظامنامه خپره سوه (۱۰ جدي ۱۳۰۳ش ۱ جنوري ۱۹۲۵م). دا قانون ۱۸ مادې لري.

د کابل د روښانولو لپاره د تنوير شرکت جوړ سو (جدي ۱۳۰۳ش).

محمد ابراهيم خان دمخني وزير عدليه د هرات نائب الحکومه او عبدالرحمن خان بارکزی ئې فرقه مشر سو (جدي ۱۳۰۳ش).

عبدالکريم د امير يعقوب خان زوی چه د انګريز په لمسون ئې د سمت جنوبي په بغاوت کي حصه اخيستې وه، هند ته وتښتيد، د سمت جنوبي نه مياشتي اغتشاش خلاص سو.

ملا عبدالله او ملا عبدالرشيد ونيول سوه او کابل ته راوستل سوه (دلو ۱۳۰۳ش).

عبدالکريم رنګون ته ولاړ او هلته د مولوي يار محمد تره کي په لاس ووژل سو.

د بې وزلانو د ادارې لومړئ لايحه د پادشاه په امضاء نشر سوه (۸ دلو ۱۳۰۳ش ۲۹ جنوری ۱۹۲۵م).

شجاع الدوله د افغانستان وزير مختار لندن ته ولاړ (۸ حوت ۱۳۰۳ش).

وزيرو او مسيدو پرنګي داني تنګي پر کيمپ حمله وکړه او اته سوه سپاهيان او ۱۳ منصب داران ئې ور ووژل.

د پښتو پښتويه (ګرامر) په کابل کي د پښتو مرکې چاپ کړه ۱۳۰۳ش.

پرنګيانو په تمن او تره کي د وزيرو او مسيدو پر لښکر حمله وکړه چي ۳٤۰۰ تنه سپاهيان او ۲۳ افسران يې پکي مړه سول او څلور سوه غازيان شهيدان سول.

د ۱۳۰۳ش کال مالي عايدات ۷۵ مليونه کابلۍ، مصارت ٦۸ مليونه سپما ۷ مليونه وه.

**۱۹۲۵م ۱۳۰٤ش ۱۳٤٤ق**

ميرزا فقير د هرات نقاش وفات سو.

مولوی عبدالرازق اندړ عالم او سياسي مجاهد په کابل کي ٦۳ کلن وفات سو (جمعه ۱٦ رمضان ۱۲٤۳ق ۲۲ حمل ۱۳۰٤ش)

ميرزا عبدالطيف منشي او مستوفي په کندهار کي وفات سو (يکشنبه ۲۹ حمل ۱۳۰٤ش ۲۵ اپريل ۱۹۲۵م).

مکتب اماني (چي الماني ژبه پکي زده کيږي) د ډاکټر ايوان په رياست په کابل کي جوړ سو (۲۵ ثور ۱۳۰۳ش).

علی احمد خان بارکزی د کابل والي سو (جوزا ۱۳۰٤ش).

ملا عبدالله لنګ او ملا عبدالرشيد او ٥٤ نور اشرار چي د سمت جنوبي په بغاوت کي ګرفتار سوي وو په دوشنبه ٤ جوزا ۱۳۰٤ش ۲٦ می ۱۹۲۵م د کابل په سيا سنګ کي ووژل سوه.

پهپرنو ايټالوي مستخدم چي يو افغاني

پولیس ئې وژلی و په دار وځړول سو ( دو شنبه ٦ جوزا ١٣٠٤ش ٢٨ می ١٩٢٥م). د ایټالیا حکومت د دې واقعی په باب کې یوه نوټه افغانستان ته ورکړه او مناسبات یې خړ کړل.

د قندهار مشهور واعظ او مفسر علی محمد اخندزاده توخي وفات سو (شنبه ٩ اسد ١٣٠٤ش ١٧ اگست ١٩٢٥م).

میرزا محمد یحیي د محمد علی زوی کابلي شاعر ٧٦ کلن په کابل کې وفات سو (٢٣ اسد ١٣٠٤ش ٢٤ محرم ١٣٤٣ق). دی د فارسي شعر دیوان لري او ولادت یې ١٢٦٧ق وو.

د شوروي دولت په امداد د تلگراف لین جوړ سو (سنبله ١٣٠٤ش ستمبر ١٩٢٥م).

امان الله خان قندهار ته په تفتیش ولاړ (دو شنبه ١٩ میزان ١٣٠٤ش تر دو شنبې ٢٤ عقربه پوري).

لوی ناب خوشدل خان به کابل کې وفات سو (شنبه ١٥ عقرب ١٣٠٤ش).

اعلیحضرت امان الله خان وزارت معارف ته امر وکړ چه د پښتو ژبو هلکانو لپاره په پښتو تعلیم سي (پنجشنبه ٤ قوس ١٣٠٤ش).

شوروی روسی عسکرو پر درقد باندي تجاوز وکي (٢٧ قوس ١٣٠٤ش) مگر د حکومت د اقداماتو په اثر یې بیرته په ١٥ دلو تخلیه کړ او افغاني عسکرو ته یې وسپاره.

په قندهار کې ښاروالي (بلدیه) تاسیس سوه (قوس ١٤٠٤ش) او لومړی ښاروال عبدالرحمن لودین و.

ملا عبدالباقي کاکړ قندهاري متخلص په افغان د پښتو تبیین الواجبات لتخریب العدات ناظم په قندهار کې وفات سو (٦ دلو ١٣٠٤ش).

**١٩٢٦م ١٣٠٤ش ١٣٤٤ق**

سردار محمد یوسف خان په هند کې وفات او په جمعه اول حوت ١٣٠٤ش د لغمان د مهتر لمک په هدیره کې ښخ سو.

د عشری نظام د میاساتو (تول، سکي، طول ) سیستم جاري سو او قانون یې نشر سو او پخپله پادشاه په شنبې ٢٩ حوت ١٣٠٤ش رسماً اعلان کړ.

د افغانستان او آلمان د مودت معاهده (٣ مارچ ١٩٢٦م ١٢ حوت ١٣٠٤ش).

د ١٣٠٤ش کال گرده مالي عایدات ٨٤ میلونه کابلی، مصارف ٦٠ میلونه، سپما ٢٤ میلونه وه.

**١٩٢٦م ١٣٠٥ش ١٣٤٥ق**

اعلیحضرت امان الله خان سمت مشرقي ته په رسمي سفر د تفتیش لپاره ولاړ (٥ ثور).

لومړیَ ډله افغاني ضابطان د عسکري زده کړې لپاره ترکیې ته ولاړل (١٨ ثور ١٣٠٥ش).

سردار شاه محمود خان د سمت مشرقي اعلی حاکم سو (١٨ خوزا ١٣٠٥ش)

د تعطیل ورځ له جمعې څخه پنجشنبې سوه (٤ سرطان ١٣٠٥ش).

اعلیحضرت امان‌الله خان د امیر د لقب پر ځاي شاه وبلل سو (٧ جون، ٢٦ سرطان).

د درقد د جزیرې مشترک (افغان- شوروي) کمیسیون خپلې مذاکرې خلاصې کړې،

او هغه جزيره بيرته افغانستان ته وسپارله سوه (سه شنبه ۲۵ اسد).

په پغمان کي د علم و جهل د جنگ د پغمانی شهيدانو څلي جوړ سو (شنبه ۲۰ اسد ۱۳۰۵ش).

د افغانستان او المان د مودت معاهده ٤ مادې يو پروتوکول چي په ۱۲ حوت ۱۳۰٤ش ۳ ارچ ۱۹۲٦م په برلين کي امضا سوې وو په پغمان کي تصديق سو (۲۲ سنبله ۱۳۰۵ش).

د افغانستان او شوروي روس تر منځ د بيطرفي او عدم تجاوز معاهده ۷ مادې په پغمان کي د وزير خارجه محمود طرزي او ليونيد ستارک شوري سفير له خوا امضاء سوه (۳۱ اگست ۱۹۲٦م سنبله ۱۳۰۵ش).

په مجلس وزرا کي فيصله وشوه چي په حجاز کي د افغاني حاجيانو لپاره يو تاتوبي جوړ سي (۲۲ ميزان).

سردار محمد نادر خان د افغانستان له سفارته په پاريس کي استعفا وکړه (۳۰ نومبر ۱۹۲٦م) او پر ځاي يې غلام نبي خان په سفارت مقرر سو.

د برتانيا د سفارت سره په کابل کي موافقه وسوه چي ويزه دي وړيا او بې قيمته وي (۲۲ عقرب).

اعليحضرت امان الله خان قندهار ته په رسمي تفتيشي سفر ولاړ (۲ شنبه ۱٦-۱۷ عقرب ۱۳۰۵ش).

د زاړه قندهار لوی ډبرين لوښي (د بودا کچکول) د پادشاه په امر د کابل موزيم ته يووړ سو (قوس ۱۳۰۵ش). د دې زاره شي فارسي نستعليق نوشتې په ۹۱۹ق ليکلي سوي او وقف نامي دي.

**۱۹۲۷م ۱۳۰۵ش ۱۳٤٦ق**

اعليحضرت امان الله خان د سمت مشرقي په رسمی سفر ولاړ (چار شنبه ۲۸ جدی ۱۳۰۵ش).

د فرانس نوی وزير مختار او سفير کوستاف مار سلفت خپله اعتماد نامه وړاندی کړه (کابل ۱٦ جدی ۱۳۰۵ش).

په هرات کي د ديزلی بريښنا کار خانه افتتاح سوه (۲۷ دلو ۱۳۰۵ش).

علی محمد خان د افغانستان وزير مختار روما ته ولاړ (جمعه ۱۵ دلو ۱۳۰۵ش).

انگريزانو د ميان گل په وسيله سوات اشغال کئ چي پر پښتنو قبايلو او افغانستان يې بد اثر وکئ.

ملا محمد صافي لغماني د پښتو شاعر او عرض بيگي (افغاني نويس) په کابل کي وفات سو.

قاضي مير احمد شاه رضواني په پيښور کي د پښتو گرامر (وافيه) ۱۱۲ مخه تاليف او چاپ کړه (اردو).

له پرنگيانو سره د مومندو څلرمه غزا د حاجي ترنگزی په مشري.

په افغانستان کي د کابلي روپي پر ځای افغانی (۱۰۰ پوله) رواج سوه.

په ۱۳۰۵ ش کال دغه دولتي نظام نامې خپرې سوې.

۱ـ د عسکري رتبو نظامنامه.
۲ـ د عسکري داخلي خدماتو نظامنامه.
۳ـ د تعليقات دولت نظامنامه.
۳ـ د آمرانو او ضابطانو د تعليم گاه نظامنامه (۲۹ سرطان).
۵ـ لايحه مساکين (۱۱ عقرب).
٦ـ آذوقه (۲۲ جدي)
۷ـ د يتيمانو تربيه (۲۳ جدي).
۸ـ د سمت شمالي د نهر رزاق نظامنامه (۲٦ دلو).
۹ـ د وزارت معارف اساسي نظامنامه (۵ دلو).

د ۱۳۰۵ ش کال ټول دولتي واردات ۷۲ مليونه افغاني، مصاف ۵۰ مليونه. سپما ۲۲ مليونه وه.

**۱۹۲۷م ۱۳٤٦ق**

د کابل په خواجه ملا کي د پيله کاري د عمارت تهداب کښيښنول سو (۲۸ حمل ۱۳۰٦ش).

د راديو اداره د کابل په دلکشا کي د وزارت داخله له خوا جوړه سوه (حمل ٦) وروسته د جوزا په مياشت کي کوټي لندني ته نقل سوه.

اعليحضرت امان الله خان د سلطان عبدالعزيز بن سعود په نامه يو مکتوب واستاوه چي په حجاز کي افغاني حاجيانو ته د ديني مناسکو آزادي ورکي او اسلامي مقدس ځايونه محترم وساتي (حمل ۱۳۰٦ش).

د کابل راديو خبر ورکئ چي د دريمي لويي جرگې د انعقاد فرمان د رئيس شوراي دولت په نامه صادر سو چي په ۱۳۰٦ يا ۱۳۰۷ ش کي لو جرگه وسي (ثور ۱۳۰٦ش).

د انيس د هفتگي جريدې تاسيس د غلام محى الدين انيس له خوا په کابل کي (۱۵ ثور ۱۳۰٦ش ۵ مي ۱۹۲۷).

عبدالعلى مستغني د کابل مشهور شاعر خپله منظومه بهار نامه گلزار مستغني د عبدالحي قندهاري په غوښتنه وويله (۲۸ ثور ۱۳۰٦).

اعليحضرت امان الله خان د مزار شريف د تفتيش لپاره په رسمي سفر ولاړ (سه شنبه ٦ ثور تر دوشنبې ۲۳ جوزا ۱۳۰٦ پوري).

عبدالرحمن لودين د قندهار ښاروال د کابل د گمرک مدير سو (جوزا ۱۳۰٦ش).

د طيارې الوزولو د زده کړي لپاره ۱۵ تنه محصلان فرانس ته واستول سوه (٤ جوزا ۱۳۰٦ش).

مهمندو قبيلو د شبقدر پر انگريزي سرحد باندي حمله وکړه او انگريزی طيارو دوی بمباري کړه (۱۲ جوزا ۱۳۰٦ش ٤ ذيحجه ۱۳٤۵ق).

د جرايمو لپاره د شرعی محکمو نظامنامه خپره سوه (۳۰ جوزا ۱۳۰٦ش).

اعليحضرت امان الله خان سمت جنوبي (پختيا) ته ولاړ (اسد ۱۳۰٦ش).

د ترکستان نوم د مزار په ولايت تنديل سو (۸ اسد ۱۳-٦ش).

د کابل په بوستان سراى کي اعدادي مکتب د پادشاه په وينا افتتاح سو (۱۵ سنبله ۱۳۰٦ش).

د کابل او گرديز پر لار د تيره کوتل سړک

جوړ سو (سنبله ۱۳۰٦).

د اعليحضرت امان الله خان د اروپا د سفر د عزمه سره دغه مقرري وسوې:

محمد ولي خان وزير حربيه د پادشاه وکيل او د خارجه وزارت وکيل.

عبدالعزيز خان داخله وزير د شورای دولت وکيل.

محمود خان ياور د کابل د والي وکيل.

کالينن د شوروي دولت رئيس، اعليحضرت امان الله خان ته د شوروی د سفر دعوت ورکړ (ټلگرام ۲٤ اکتوبر ۱۹۲۷م عقرب ۱۳۰٦ش).

د افغانستان او پولينډ د مودت معاهده په انقره کي ترتيب سوه (۳ نومبر ۱۹۲۷م ۱۰ عقرب ۱۳۰٦ش).

اعليحضرت امان الله خان په ۷ قوس ۱۳۰٦ش د کابل له خلکو سره وداع وکړه او د قندهار، بمبئي له لاري اروپا ته رهي سو، دی په ۱۸ قوس له قندهاره چمن ته ولاړ، په ۲۲ قوس په بمبئي، په ۱۰ جدي په قاهره، ۲۰ جدي په روما، ۲۹ دلو په برلين، تر ۲۲ حوت په پاريس کي و، په ۲۳ حوت ۱۳۰٦ش ۱۳ مارچ ۱۹۲۸ لندن ته ورسيد. دا سفر له دسمبر ۲۷م تر جولايي ۱۹۲۸م پوري و.

د افغانستان او ايران د بيطرفي او تامينيه معاهده ۸ فصله په کابل کي امضا سوه (٦ قوس ۱۳۰٦ش ۲۷ نومبر ۱۹۲٦م).

مجموعه صحيه د کابل د مديريت مستقله طبيه لخوا نشر سوه (٦ قوس).

د افغانستان او شوروي د هوايي پست موافقه نامه (کابل_تاشکند) د غلام صديق خان وزير خارجه او ليونيد سټارک شوروي سفير تر منځ په ۱۷ مادو کي امضا سوه (۲۸ نومبر ۱۹۲۷م قوس ۱۳۰٦ش).

**۱۹۲۸م ۱۳۰٦ش ۱۳٤٦ق**

د نسيم سحر هفتگي ادبي او انتقادي جريده د احمد راتب له خوا په کابل کي تاسيس سوه (۷ دلو ۱۳۰٦ش ۲۷ جنوري ۱۹۲۸م).

د افغانستان او سويس د مودت معاهده دري مادې په برن کي غلام نبي خان د افغانستان سفير او موتا د سياسي دفتر مشر امضا کړه (۱۷ فروري ۱۹۲۸م ۲٦ دلو ۱۳۰٦ش).

د کاکا سعيد احمد خان قندهاري لودين وفات په کابل کي (١٤ حوت يکشنبه ۱۳۰٦ش)

د افغانستان او شوروي جماهير تخنيکي هوايي موافقه په کابل کي امضا سوه (۱۷ حوت ۱۳۰٦ش ۷ مارچ ۱۹۲۸م).

اعتماد الدوله سردار عبدالقدوس د مخنی صدراعظم په کابل کي وفات سو (چهار شنبه ۲۳ حوت ۱۳۰٦ش).

له پرنگي سره د مومندو پنځمه غزا (۱۳۰٦ش).

مولوي تاج الدين د ملا محمد طيب زوی د چار يکار قاضي د تحفة الامير في بيان سلوک الملوک و التدبير مؤلف د کوهدامن د قره باغ اوسيدونکي ۹۸ کلن وفات سو (ولادت ئې ۱۲۰۸ش).

تر ۱۳۰٦ ش پوري د دارالامان په ودانیو په ځلورو کالو کي ٤۰ ملوینه افغاني مصرف سوي.

د ۱۳۰٦ ش کال مالي واردات۸۲ ملیونه افغاني، مصارف ٦٤ ملیونه، سپما ۱۸ ملیونه وه.

په دغو کلو کي د افغانستان مالیات:

په سراجي دوره کي:

| | |
|---|---|
| یو جریب آبي مځکه | د کاله ٥ روپې |
| یو اوښ | د کاله ۳ روپې |
| یو غویي | د کاله ۱ روپې |
| یو خر | د کاله ۱۲ پیسې |
| یو پسه | د کاله ۷ پیسې |

په اماني دوره کي:

آبي ۱ درجه مځکه ۱٦ تر ۲۰ افغاني

آبي ۲ درجه مځکه ۹ تر ۱٥ افغاني

آبي ۳ درجه مځکه ٥ تر ۸ افغاني

| | |
|---|---|
| آوښ | ٤ افغاني |
| آس | ۳ افغاني |
| غویي | ۲ افغاني |
| پسه | ٥۰ پوله |

د مواشي نظامنامه ۱۳۰٦ش

| | |
|---|---|
| اوښ | ۳,۷۰ افغاني |
| آس | ۱،۸۰ افغاني |
| غویي | ۰،۹۰ افغاني |
| خر | ۰,۹۰ افغاني |
| پسه | ۰,۲٥ افغاني |

(ریسنز افغانستان)

د افغانستان عواید او مصارف:

عواید:

مالیات ٥۰ ملیونه

گمرک ٤۰ ملیونه

متفرقه ۱۹ ملیونه

مواشي او صکوک ۱۰ ملیونه

گرده ۱۱۹ ملیونه

مصارف:

| | |
|---|---|
| د حرب وزارت | ٤۰ ملیونه |
| دربار | ۲۰ ملیونه |
| تعمیرات | ۱۰ ملیونه |
| داخله | ۱۲ ملیونه |
| تجارت | ٤ ملیونه |
| معارف | ۱٥ ملیونه |
| عدلیه | ۲ ملیونه |
| مالیه | ۳ ملیونه |
| گرده | ۱۱۳ ملیونه |
| پس انداز | ٦ ملیونه |

(افغانستان ریسنز)

**۱۹۲۸م ۱۳۰۷ش ۱۳٤۷ق**

د گنو څخه د قند جوړولو کارخانه په ۱٤،۲۲۷ پونډه د زانگر هوزن له تجارت خانې څخه د جلال آباد لپاره رانیول سوه چي د ورځي ٥ ټن بوره جوړولاي سي (۲۳ اپریل ۱۹۲۸م).

د آلمان د لیدي مان د ماشین سازی له شرکته سره د افغانستان لپاره د وړیو د انډي کولو کارخانه په ۳۰۰۰ پونډه قیمت په برلین کي قرار داد سوه چي په قندهار کي ودرول سي او د ورځي لس ټنه وړۍ انډي کوي (۲٤ اپریل ۱۹۲۸م ثور ۱۳۰۷ش).

د وړینو کالو د کارخانو رانیول او درولو قرار

داد په برلين کي د اونيون ماتکس له شرکته سره په ۳٤،۰۸۰ پونډه قيمت امضا سو، چي د ورځي ۵۰۰ متره بشمي ټوکر اودلاي سي (۲۵ ابريل ۱۹۲۸م).

د المان د هوفمن له شرکته سره د کاغذ جوړولو د کار خانې قرار داد په ۳٦،٦٥۰ پونډه قيمت امضا سو، د ورځي يو لک تختې کاغذ جوړولاي سي (اپريل ۱۹۲۸م).

د نخی کالو د کار خانې قرار داد په برلين کي په ۲۳،۷۲۰ پونډه قيمت امضا سو چي د ورځي ٤۰۰ کيلو سپينسي باسي او زر متره ټوکر ويي (۲۵ اپريل ۱۹۲۸م).

د افغانستان او لهستان (پولينډ) د جمهوريت سره د مودت معاهده غلام جيلاني خان په ترکيه کي افغاني سفير او هلته د لهستان د سفير تر منځ ۵ مادې تصديق سوه (ثور ۱۳۰۷ش ۳۰ اپريل ۱۹۲۸م).

د افغانستان او جنوبي امريکا د ليبريا د مؤدت معاهده ۱۱ مادې په پاريس کي د غلام نبي خان افغاني سفير او بارون ليمن له خوا امضا سوه (ثور ۱۳۰۷ش ۱٦ مي ۱۹۲۷م).

اعليحضرت امان الله خان په ۱۳ ثور ۱۳۰۷ش په ورسا (پولنډ ) کي و.

د افغانستان له خوا شير احمد خان د شورا رئيس د الماني شرکت سره د لاجوردو انحصاري قرار داد نه مادې په برلين کي امضا کړ چي د کاله به ٦۰۰ کيلو اعلی لاجورد هر کيلو په ۲۰ پونډه او زر کيلو متوسط لاجورد هر کيلو په ۱۲ پونډه او ۱۵۰۰ کيلو دريمه درجه لاجورد هر کيلو په ۵ پونډه اخلي (۱۸ مي ۱۹۲۸م، ثور ۱۳۰۷ش).

اعليحضرت امان الله خان په مسکو کي د کالينن له خوا استقبال سو (۳ مي ۱۹۲۸م، ۱٤ ثور ۱۳۰۷ش). په ۳ جوزا په ترکيه کي و، په ۹ جون ۱۹ جوزا ايران ته راغي، او د هرات له لاري په سه شنبې ۵ سرطان ۱۳۰۷ش پسله شپږنيمو مياشتو مسافرته قندهار ته را ورسيدئ (د سفر مصارف او خريداري گرده ۲۰ تر ۳۰ مليونه افغانۍ).

محمد سرور خان د سمت مشرقي اعلی حاکم مقرر سو (جوزا ۱۳۰۷ش).

د افغان او ترکيې د مؤدت معاهده نه مادې دوه پروتوکوله په انقره کي غلام صديق خان د وزارت خارجه وکيل او توفيق رشدي بيگ د ترکيې خارجه وزير لاسليک کړه (۵ جوزا ۱۳۰۷ش ۲۵ مي ۱۹۲۸م).

د افغان او ترکيې عرفاني قرار داد د افغاني محصلانو په باب ٤ مادې امضا سو (۷ جوزا ۱۳۰۷ش ۲۷ مي ۱۹۲۸م).

د افغان او مصر د مودت معاهده څلور مادې او پنځه الحاقيي د افغانستان له خوا علی احمد خان د کابل والي او د مصر له خوا واصف بطرس غالی خارجه وزير امضا کړه (۱۰ جوزا ۱۳۰۷ش، ۳۰ مي ۱۹۲۸م).

د افغانستان ايران د تامينيه تړون ٦ قوس ۱۳۰٦ش منضم پروتوکول څلور مادې په تهران کي د غلام صديق خان د خارجه وزارت کفيل او فتح الله پاکروان د ايران د خارجه وزارت د

کفیل له خوا امضا سو (۲۵ جوزا ۱۳۰۷ش، ۲۵ جون ۱۹۲۸م).

د مجرمينو د بيرته ورکولو پروتوکول د افغانستان او ايران تر منځ په تهران کي د لسو کالو لپاره امضا سو (۲۵ جوزا ۱۳۰۷ش، ۱۵ جون ۱۹۲۸م).

د افغانستان او بلژيک عرفاني قراد داد د افغاني محصلانو د منلو لپاره څلور مادې امضا سو (جوزا ۱۳۰۷ش).

افغانستان د الماني شرکت ارنست هامبورگر سره د وړيو پريولو د کارخاني د راوړلو او چلولو تړون په ۱۷،۹۰۰ پونډه قيمت امضا کړ (جوزا ۱۳۰۷ش).

د افغانستان او فرانس تر منځ د امانيه مکتب د محصالنو د منلو موافقه وسوه چي د فرانس په پوهنتونو کي به منل کيږي (جوزا ۱۳۰۷ش).

په ۱۷ سرطان ۱۳۰۷ش د وزارت دربار له خوا د دريمي لويي جرگې اعلان صادر سو او په ۲٤ سرطان د قندهار نائب الحکومه ته په تيلفون کي وويل سوه چي ٦ تني ښځي نمايندگاني هم کابل ته را وليږی چي د ملکې سره جرگه سي.

د افغانستان او فنلينډ د مودت معاهده (۱۷ ژويه ۱۹۲۸م، ۲٦ سرطان ۱۳۰۷ش).

د نوروز هفتگي جريده په کابل کي نشر سوه (اسد ۱۳۰۷ش).

د افغانستان د طيارې جمعيت جوړ او مرامنامه ئې خپره سوه (۸ سنبله ۱۳۰۷ش).

د فرانسوی دوو شرکتو سره د افغانستان د شمال تر جنوبه د ريل جوړولو قرار داد (سنبله ۱۳۰۷ش).

د استقلال او تجدد د گوند مرامنامه د پادشاه له خوا خپره سوه (۲۰ سنبله ۱۳۰۷ش).

شاغاسي محمد سرور خان (بابا) په کابل کي وفات سو.

په کابل کي تور، سور، زرغون، کلوب جوړ سو (۲۲ سنبله ۱۳۰۷ش).

دريمه لويه جرگه په پغمان کي په چارشنبه ٦ سنبله ۱۳۰۷ش د پادشاه په وينا د زرو تنو وکيلانو په مخ کي افتتاح سوه او دغه مهم تصاويب يې وکړه:

۱ــ شوراي دولت په شوراي ملي تبديل سوه.

۲ــ د مجازاتو عفو يوازی د پادشاه حق دئ.

۳ــ د تفتيش عمومي ديوان تاسيس سو.

٤ــ هر وزارت به د تفتيش يو دائره ولري.

۵ــ د بې وزلانو او ليونيانو لپاره ټاټوبي جوړول.

٦ــ د عسکري مکلفيت دوره درې کاله سوه.

۷ــ د عسکري مکلفيت نقد بدل ممنوع سو.

۸ــ ټول نښانونه لغو سول.

۹ــ ملکي رتبې لغو سوې.

۱۰ــ ټول رسمي القاب لغو سول. فقط د عزيز کلمه به له نومو سره ليکي.

۱۱ــ په نظامنامو کي دی د هر جرم جزا

وتړاکله سي.

۱۲ـ نقدي جريمه دي هم د يوې نظامنامې سره سمه اخيستله سي.

۱۳ـ تجارتي او نوري عصري محکمې دي جوړي سي.

۱٤ـ تدريس او وعظ په شهادت نامه پوري مربوط دی د ديوبند ملايان افغانستان ته نسي را تلاي.

۱۵ د افغانستان پنځلس کلني سالم خلک دی هر کال پنځه افغاني او مامورين دي د يوې مياشتي تنخواه د عسکري وسلو د رانيولو لپاره ورکوي، د دې بسپني لايحه دي شوراي ملي جوړه کړي.

۱٦ـ شوراي ملي دی د رشوت د بندولو لپاره لايحې جوړي کړي.

۱۷ـ که مجرم محکمې ته حاضر نشي د ده په غياب کي دي جزا ورته وتړاکله سي او قانون دي شوراي ملي جوړ کي.

۱۸ـ شهزاده رحمت الله خان وليعهد سو.

۱۹ـ د افغانستان د بيرغ رنګ تور، سور، زرغون وتړاکل سو، چي پر غرو د لمر ختو منظر ولری او دورا دور ئې د غنمو وږي وي، لوړ (الله -محمد) پر ليکلي وي.

۲۰ـ پسله هرو پنځو کلو به لو جرګه جوړيږي.

د ۱۳۰۷ش کال مالي مصارت ٦۹ مليونه وه، د اغتشاش په سبب مالي واردات و نه ټاکل سوه.

د ۱۳۰۷ش د سنبلې په مياشت کي د افغانستان د هوا بازی محصلان په خارج کي دوني وو: ۲۵ تنه په روسيه شوروي کي، ۱۵ تنه په فرانسه کي، ۲۵ تنه په ايتاليا کي.

له ۱۳۰۲ تر ۱۳۰۷ش د سنبلې تر مياشتي پوري افغانستان د خارجي دولتو سره دغه معاهدې کړي وې:

۱ـ د شوروي سره د بيطرفي او عدم تجاوز تړون.

۲ـ د ايران سره د بې طرفي او د تامين تړون.

۳ـ د ايرن سره د سرحدی منازعاتو د مختلطو جرګو تړون.

٤ـ د پيښور او کوټې د افغاني ويزې دفترونه.

۵ـد جنوبي امريکا د ليبريا سره معاهده.

٦ ـ د سويس سره معاهده.

۷ـد پولېند سره معاهده.

۸ـ د چاپان سره معاهده.

۹ـ له ترکيه سره د مودت معاهده.

۱۰ـ د مصر سره معاهده.

۱۱ـ د ايران سره د تامينيه معاهدې پروتوکول.

۱۲ـ د حقوقي مجرمينو د استرداد تړون له ايرانه سره.

۱۳ـ د فنلاند سره معاهده.

۱٤ـ د ترکيه سره قونسلي موافقه.

۱۵ـ په ترکيه، ايران، شوروي روسيه کي د افغانستان وزارت مختاري په لويو سفارتو واوښتي.

١٦ـ د يمن سره د سياسي روابطو مذاکره.

١٧ـ د حجاز سره د سياسي روابطو مذاکره.

١٨ـ د چين سره د سياسي ارتباط مذاکره.

١٩ـ د برتانيا سره د سرحدي اتباعو د مالي او ځاني تلفاتو د بندولو لپاره د يوه ګډ کميسيون موافقه.

د امير حبيب الله خان په وخت کي د معارفو مصرف ٦٠ زره روپی و په ١٣٠٧ش کي ١٥٠ لکو ته ورسيدئ.

له ١٣٠٣ تر ١٣٠٧ش پوري ٣٢٢ مکتبونه نوی جوړ سوه او په دغو څلورو کلو کي ٤٨٢٣ تنه له ابتدايي مکتبو څخه فارغ سوه، له عالي مکتبو څخه ١٥٨ تنه را ووتل، ١٥١ تنه شاګردان خارج ته واستول سول، ١٧ تنه فارغان له خارجه راغلل.

د ابتدائي مکتبو شاګردان تر ١٣٠٣ش پوری ١٩،٠٠٠

تر ١٣٠٦ش پوری ٣٦،٠٠٠

په ١٣٠٧ ش نوی داخل سوه ١٥،٠٠٠

ټوله په ١٣٠٧ش کال ٥١،٠٠٠

ابتدائي معلمان ٦٥٠

د عالي مکتبو محصلان په ١٣٠٧ش ٣٠٠٠

په ١٣٠٧ش عالي مکتبونه ته نوی داخل شوي شاګردان ١٦٠٠

د عالي مکتبو د معلمانو شمير په ١٣٠٧ش ١٠٠.

د وزارت معارف تاليف کړي کتابونه ١٣٣ جلده د وزارت معاف چاپ کړي کتابونه له ١٣٠٣ تر ١٣٠٧ش ٦٩٣،٥٧٥ جلده.

له ١٣٠٣ تر ١٣٠٧ش پوري ګمرکي واردات آضافه سوی دي ٣٢،٠٢٧،٦٥١ افغاني.

تر ١٣٠٧ش پوري دغه تجارتي شرکتونه جوړ سوي وو:

شرکت المان، شرکت تنويرات، شرکت موتر راني، شرکت دوا فروشي، شرکت رفقای افغان، شرکت تشويق افغان، شرکت اتحاد افغان په کابل کي، شرکت قمر په مزار شريف کي، شرکت ضيا په قندهار کي.

په ١٣٠٧ش دغه کار خانې وې:

١ ـ د موټرو د ترميم او پرزو کارخانه.

٢ـ د صابون او عطرو او واسلين کارخانه.

٤ـ د اورلګيتو کار خانه په کابل کي.

٥ـ د يخی جوړولو کار خانه په قندهار کي.

٦ـ د کالکو او غوړو او صابون کارخانه په مزار شريف کي.

٧ـ د سپنسو جوړولو فابريکه په هرات کي.

٨ـ د اوړو ژرنده په اندخوي کي.

په ١٣٠٧ش دغه کارخانې په پلان کي ټاکل سوي وې:

١ ـ د قند کارخانه.

٢ـ د کاغذ جوړولو کارخانه.

٣ـ د نخی ټوکرانو کارخانه.

٤ـ د پشمی ټوکرانو او کشميري کارخانه.

٥ـ د غوټو کارخانه.

٦ـ د ميوې ساتني کارخانه.

۷ـ د پيو او کوچو او پنير کارخانه.

۸ـ د اوبو کښلو او تيل خاک ماشين.

په ۱۳۰۷ش د المان، پولنډ، شوروي سره تجارتي او ترانزيتي تړونونه سوي وو.

په ۱۳۰۷ش د کابل د برېښنا تنوير ۱۸،۰۰۰ څراغو ته ورسيدی.

تر سنبلې ۱۳۰۷ش پوري ۲٦٦ کيلو متره لار پخه سوه.

د مملکت مالي عايدات که په ۱۳۰۳ کي پنځه وه په ۱۳۰۷ش کي اته سوه. د امير حبيب الله تر وخت دوه چنده سوی دي.

له ۱۳۰۲ تر ۱۳۰۷ش پوري ٤۹۱ کانونه کشف سول.

په سمت جنوبي کي د ځنګلو رياست جوړ سو.

د طبابت قانون خپور سو چي بې اجازې ئي څوک نسي کولای.

د افغانستان د ملي شورا د انتخاباتو نوی قانون ۵۱ مادې خپور سو (۷ سنبله ۱۳۰۷ش).

د افغانستان د ولاياتو د جرګو قانون ٤ مادې خپور سو (۱۱ سنبله ۱۳۰۷ش).

له ۱۳۰۳ تر ۱۳۰۷ ش پوري د افغانستان په روغتنو کي ٦۳۳۷ جوړ سوي ناروغان، ۵۳۳،۰٦۳ تنه کتل سوي ناروغان، ۱۱،۲۷۰ کوچنيانو ته د کوي رک وهل. ٦۱۰ مړه.

د پښتون ږغ ۱۵ ورځني مجله په کابل کي نشر سوه ۱۳۰۷ش.

افغانستان په ۱۳۰۷ کال ۳۵،۵۰۰ توپکه، ۱۰٦ توپه، ۸ طيارې، ۵ زره پوشه، ٦ متراليوز،

٦ ټانکه رانيول.

په مزار شريف کي د بې سيم تلګراف مرکز جوړ سو. د خان آباد، ميمنه، خوست لپاره تلګراف دستګاهونه رانيول سوه او د کابل تلګراف او بې سيم لوی دستګاه رانيول سوه (۱۳۰۷ش).

د ۱۳۰۷ ش په سفر کي اعليحضرت امان الله خان په پاريس او برلن کي دغه فابريکې رانيوې:

۱ـ د ډوډيو وريشلو فابريکه.

۲ـ د کشميري اودلو فابريکه.

۳ـ د خړ سان اودلو فابريکه.

٤ـ د کوره جيم اودلو فاريکه.

٦ـ د ميوې ساتني ماشين.

۷ـ د کوچو ماشين.

۸ـ د زراعت ماشين.

۹ـ د فولادي کار ماشين.

۱۰ـ د دوربينو ماشين.

۱۱ـ د طيارو ماشينونه.

۱۲ـ د جراحي آلات.

د افغانستان نوی لوی سفير غلام جيلاني خان خپله اعتماد نامه د ترکيې جمهور رئيس ته وړاندي کړه (۲ ميزان ۱۳۰۷ش).

محمد سرور خان بارکزی د قندهار نايب الحکومه د کابل والي سو، او پر ځای يې عبدالکريم خان بارکزی د قندهار نايب الحکومه سو (۳ ميزان ۱۳۰۷ش).

محمد ولي خان ته د علاج لپاره د اروپا تګ رخصت ورکړ سو (عقرب ۷).

محمود طرزي د استراحت لپاره له کاره سبک دوش سو، او پر ځای یې غلام صدیق خان خارجه وزیر سو (عقرب ۱۳۰۷ش).

احمد علی خان دمخني افغاني د برلن سفیر د کابل رئیس بلدیه سو (۱ عقرب ۱۳۰۷ش).

د شنوارو سنګو خیلو لومړی پلا بغاوت شروع کړ (سه شنبه ۲۱ عقرب ۱۳۰۷ش). محمد ګل خان د سمت مشرقي عسکری قومندان دوی ته اخطار ورکړ چه له بغاوته لاس واخلي (نومبر ۱۹۲۸م).

یاغی قبایلو جلال آباد محاصره کړ (جمعه ۷ قوس ۱۳۰۷ش).

سید محمد عمر پیله کش د میر عبدالرحمن خطاط لمسی، چي یو خطاط او هنری سړی و په هرات کي سل کلن وفات سو.

د ستوري په ماڼي کي اعلیحضرت امان الله خان خپل نوی پروګرام اعلان کړ او د ښځو نقاب یې واخیست (۱۵ میزان ۱۳۰۷ش). په دغه مجلس کي افغاني نجوني د تعلیم لپاره ترکیې ته واستولي سوې، او په قبایلو کي خورا بد اثر خپور سو.

بچه سقاو او سید حسین او د دوی ملګرو په سمت شمال کي ارتجاعي بغاوت وکړ او احمد علی خان هلته رئیس تنظیمیه سو (۱۵ قوس ۱۳۰۷ش، دسمبر ۱۹۲۸م).

اعلیحضرت امان الله خان په یوه اعلان کي ۱۸ فقرې د خلکو خواهشونه ومنل (۲۹ قوس ۱۳۰۷ش ۸ رجب ۱۳٤۷ق)،

والي احمد علی خان د قوس په میاشت ۱۳۰۷ش سمت مشرقي ته رئیس تنظیمیه سو، خو د جدي په میاشت یې هلته پخپله د پادشاهي اعلان وکړ.

د قوس ۱۳۰۷ش په آخر کي د سمت مشرقی او سمت شمالي بغاوتونه وخیم سول، او د اعلیحضرت امان الله خان مور او ملکه او نوره کورنۍ د غلام صدیق خان وزیر خارجه او حسن جان سره په ٤ طیارو کي قندهار ته راغله (جمعه ۲۹ قوس ۱۳۰۷ش).

علی احمد خان د سمت مشرقي رئیس تنظیمیه په اداره کي ناکام سو، په کابل کي د مجلس اعیان افتتاح اعلان سوه (جدي ۱۳۰۷ش).

د بچه سقاو حملې پر قلعهٔ مرادبیګ او باغ بالا جاري وې (۷ جدي ۱۳۰۷ش). پر پغمان هم بچه سقاو حمله وکړه (۸ جدي). طیارو اشرار بمباریي کړل، دا جنګونه تر ۲٤ جدي پوري جاري وو او په همدغه ورځ امان الله خان کابل پرېښو او قندهار ته ولاړ.

غلام نبي خان د افغانستان نوی لوی سفیر ماسکو ته ورسیدئ (۲ جدي ۱۳۰۷ش ۲۳ دسمبر ۱۹۲۸م).

سلطان احمد خان لوی سفیر خپله اعتماد نامه په تهران کي اعلیحضرت رضا شاه پهلوي ته وړاندي کړه (جدی ۱۳۰۷ش).

**۱۹۲۹م ۱۳۰۷ش ۱۳٤۸ق**

جنرال کاظم پاشا د اتو نورو ترکي منصبدارانو سره د هند له لاري قندهار او بیا کابل ته راغلل (شنبه ۱۵ جدی ۱۳۰۷ش).

دوولس انگريزی طيارو انگليسي اتباع له کابله پيښور ته بوتلل (۳ جدی ۱۳۰۷ش). امان الله خان له سلطنته استعفا وکړه او په ۲۴ جدی قندهار ته ولاړ، پر ځاي يې مشر ورور عنايت الله خان پادشاه سو، مگر بچه سقاو ارگ محاصره کئ او په جمعه ۲۸ جدی ۱۳۰۷ش دوې انگريزي طيارې راغلې او عنايت الله خان د خپلې کورنۍ سره په هغو کي پيښور ته ولاړ، پخپله حبيب الله بچه سقاو د خادم دين رسول الله په نامه امير، سيد حسين نايب السلطنه او وزير جنگ، عطا الحق وزير خارجه، عبدالغفور تگابي وزير داخله، شيرجان وزير دربار، ملک محسن د کابل والی، ميرزا مجتبی خان د وزارت ماليه وکيل سو (جمعه ۲۸ جدی ۱۳۰۷ش ۱۸ جنوري ۱۹۲۹ م).

علی احمد خان خپله پادشاهي په جلال آباد کي اعلان کړه (۲۵ جدي ۱۳۰۷ش) مگر په ۱۲ دلو خلکو دی چور کي نو د لغمان او کنړ له لاري مهمندو او بيا پيښور ته ولاړ.

د امان افغان پر ځای هفتگي جريده حبيب الاسلام د غلام محی الدين په سردبيری له کابله خپره سوه (۹ حوت ۱۳۰۷ش ۱۷ رمضان ۱۳۴۸ق).

سپه سالار غازي محمد نادر خان او د ده ورونه د فرانسې د نيس له ښاره د افغانستان د امنيت لپاره راپاڅيدل (۵ دلو ۱۳۰۷ش) او په ۲۱ د دلو بمبئي ته را ورسيدل. سپه سالار غازي د پيښور او کوهاټ له لاري د پختيا سرحد ته داخل سو (۱۹ حوت ۱۳۰۷ش).

په پنجشنبه ٤ دلو ۱۳۰۷ش ۱٤ جنوری ۱۹۲۹م امان الله خان په قندهار کي بيا په فعاليت شرو وکړه او خلکو بيعت ور سره وکئ.

په قندهار کي د اعليحضرت امان الله خان په تاييد خلک را ټول سول، او خرقه شريفه يې راويستله (يکشنبه ٦ حوت ۱۳۰۷ش).

د قندهار علماوو د بچه سقاو امارت نه ومانه، او د ده سره يې د جنگ فتوا صادره کړه (جمعه ۲٦ شعبان ۱۳٤۷ق).

د برتانيا سفير همفريز له کابله په طياره کي پيښور ته ولاړ (۱٤ رمضان ۱۳٤۷ق ۲۵ فروری).

عبدالکريم خان د قندهار نايب الحکومه د هزاره جات حاکم مقرر سو (۱۲ حوت ۱۳۰۷ش).

**۱۹۲۹م ۱۳۰۸ش ۱۳٤۹ق**

د سمت جنوبي (پختيا) د قومونو لويه جرگه د سپه سالار غازی محمد نادر خان حضور ته په جاجيو کي راغله (۱ حمل ۲۱ مارچ ۱۹۲۹م).

په ۷ حمل ۱۳۰۸ش سپه سالار گرديز ته راغی او په ۱٦ حمل ارگون ته ورسيد.

په ۳۰ حمل ۱۳۰۸ش د سمت مشرقي (ننگرهار) د اقوامو جرگه د محمد گل خان مومند سره د سپه سالار حضور ته راغله.

د شوروی دولت رسماً د ايران دولت ته اخطار ورکئ چي د افغانستان په کورنيو کارو کي لاس و نه وهی، او د هرات خوا ته تر خپلو سرحدو تيری و نه کي، که پر افغانستان مسلح تجاوز وسي، شوروی دولت دغه نسي زغملای

(۱۵ اپريل ۱۹۲۹م ۲٦ حمل ۱۳۰۸ش).

اعليحضرت امان الله خان د قندهار د پنځو زرو تنو سره د بچه سقاو د مقابلې لپاره کابل ته حرکت وکړ (سه شنبه ٦ حمل ۱۳۰۸ش). په سه شنبه ۲۰ حمل ۱۳۰۸ ش مقر ته ورسيدی او په ۳۰ حمل يې غزني محاصره کړ خو په ٦ ثور ۱۳۰۸ش امر وسو، چې قندهاري لښکر دي بيرته مخ پر قندهار رهي سي، په ۱۱ ثور مقر ته ورسيدل او د ثور تر آخره پر شا تلل، او په ٤ جوزا ۱۳۰۸ش جولائي ۱۹۲۹م اعليحضرت امان الله خان د مهمندو له رباطه د سپين بولدک تر سرحد ووت، او دا د ده آخره ورځ وه پخپل وطن کي!

د حبيب الله بچه سقاو په حکم والی علی احمد خان او مولوي عبدالواسع قندهاري په کابل کي ووژل سول (د جوزا اواسط ۱۳۰۸ش).

اخوند صاحب آدينه محمد شاعر او عالم د فيض آباد د خرقې شريفي د مدرسې مدرس ۷۰ کلن وفات سو.

غلام نبی خان مزار شريف د بچه سقاو له لښکرو څخه ونيو (۱۸ ثور ۱۳۰۸ش) مگر دی د جوزا تر مياشتي پوري هلته و، په ۹ جوزا تلگرام ورته را ورسيدئ چي امان الله خان له وطنه ووت، نو دی هم په ۱۰ جوزا تر دریای آمو د شوروي خاوری ته د پته کيسر له خوا تير سو.

وزيرو او مسيدو د پرنگي د ساړه راغه پر کمپ حمله وکړه خو طيارو بمباري پر وکړه او اته سوه کورونه ئې ور وران کړل ۳۲ تنه شهيدان سول (۱۹۲۹م).

د اصلاح د اخبار لومړئ شماره د ربيع الاول په اوله ۱۳٤۸ق له جاجي څخه د سپه سالار غازي محمد نادر خان په نامه د ده د ملگرو له خوا چاپ او خپره سوه چي د افغانستان خلک ئې د بچه سقاو د نامشروع حکومت مقابلې ته را بلل (سنبله ۱۳۰۸ش). مدير ئې نصر الله و.

د سپه سالار ملي قوا په ٦ ثور د بچه سقاو د لښکرو سره په څرخ کي وجنگيدل، دغه جنگونه په مختلفو ځايو کي د ۱۳۰۸ش د ميزان تر مياشتي پوري جاري وو، څو چه ملي قوا تر چهار آسيا او چهل ستون پوري را ورسيدل، او په ۱٦ ميزان ۱۳۰۸ش اکتوبر ۱۹۲۹م ئې کابل ونيو او بچه سقاو له ارگه کوهدامن ته وتښتيد او په ۲۳ ميزان ۱۳۰۸ش ۱۵ اکتوبر ۱۹۲۹م اعليحضرت محمد نادر شاه په کابل کي د افغانستان په پادشاهي ومنل سو.

د شوروي دولت د خارجي امورو معين قره خان د خپل دولت له خوا په افغانستان کي د اعليحضرت محمد نادر شاه جلوس په خوښي ومانه (۱۹ اکتوبر ۱۹۲۹م، ۲۱ ميزان ۱۳۰۸ش).

د اتحاد جماهير شوروی سفير کبير ستارگ د کالينن په امضا خپله اعتماد نامه اعليحضرت محمد نادر شاه ته تقديم کړه. (۱۹ دسمبر ۱۹۲۹م، قوس ۱۳۰۸ش).

د ۱۳۰۸ ش کال مالي مصارف تر سنبلې پوري ٤ مليونه وه. د اغتشاش په سبب نور څه

ندي معلوم.

بچه سقاو او د ده ملګري په کابل کي ووژل سوه (۲ نومبر ۱۹۲۹م، ۱۱ عقرب ۱۳۰۸ش).

۱ـ پخپله حبيب الله بچه سقاو.

۲ـ حميد الله ورور يې.

۳ـ سيد حسين وزير جنګ.

٤ـ ملک محسن د کابل والي.

٥ـ شير جان د دربار وزير.

٦ـ محمد صديق فرقه مشر.

۷ـ محمد محفوظ امنيه قوماندان.

۸ـ قلعه بيګي.

سردار محمد هاشم خان صدر اعظم سو (۲۲ عقرب ۱۳۰۸ش). ده خپله کابينه داسي اعلان کړه ۲۳ عقرب:

سردار شاه محمود خان د حرب وزير، سردار فيض محمد خان خارجه وزير، محمد ګل خان داخله وزير، الله نواز خان وزير دربار، حضرت نور المشايخ وزير عدليه، وزير معارف احمد علی خان، محمد اکبر خان وزير تجارت، محمد ايوب خان وزير ماليه، محمد نوروز خان سر منشي، سردار محمد اکبر خان صحيه مستقل مدير.

**۱۹۳۰م ۱۳۰۸ش ۱۳٤۹ق**

سردار محمد عزيز خان د افغانسان لوی سفير په مسکو کي د غلام نبی خان پر ځای مقرر او خپله اعتماد نامه ئې کالينن ته وړاندي کړه (۲٤ فروري ۳۰ حوت).

سردار شاه ولي خان په لندن کي افغاني وزير مختار و.

د افغانستان د کرني وړ مځکي ۱۳۰۸ش:

د هندوکش جنوبي خوا آبي مځکي ۷٦ زره هکتاره.

د هندوکش شمالي آبي مځکي ۲۷۰ زره هکتاره.

د هندوکش شمال للمي مځکي ٤٦۰ زره هکتاره.

ټولي آبي ٤۰۳ زره هکتاره، للمی ٥۳۷ زره هکتاره، ګرده ۹۳۰ زره هکتاره (افغانستان ريسنز).

مير هاشم دمخني وزير ماليه ٦۳ کلن په کابل کي مړ سو (جمادی الاولی).

**۱۹۳۰م ۱۳۰۹ش ۱۳٤۹ق**

محمد ګل خان مومند د شمالي سمت رئيس تنظيميه مقرر سو (حمل ۱۳۰۹ش).

اپريدو او نور پښتنو په ۱۳ اګست ۱۹۳۰م د پېښور پر ښار حمله وکړه او د کجوري غزا وسوه.

اعليحضرت محمد نادر شاه د افغانستان او بريتانيا د ۱۹۲۱-۱۹۲۳ معاهدې تصديق کړې (جوزا، مي).

د اعليحضرت محمد نادر شاه په فرمان په کابل کي لو جرګه جوړه سوه (۱۳۰۹ش) او نوی قانون اساسي ئې ومانه، او هم د شوراي ملي د انتخاباتو لايحه جوړه سوه (۲۸ سنبله ۱۳۰۹ش).

ملا فيض محمد هزاره د محمد خواجه زوی د محمد سعيد لمسې د سراج التواريخ او تحفتة الحبيب او تاريخ حکماء او فيضي ازفيوضات

لیکوال په کابل کي وفات سو (چهار شنبه ١٦ رمضان ١٣٤٩ق ولادت ئې ١٢٨٩ق).

سید احمد ادیب پشاوري د شهاب الدین زوی د فارسي مشهور شاعر او عالم په تهران کي وفات سو (ولادت ئې په خیبر کي ١٢٦٠ق).

د افغانستان سفارت په قاهره (مصر) کي د افغاني وزیر مختار محمد صادق مجددي له خوا افتتاح سو افغاني بیرغ پر ورپیدی (پنجشنبه ٢٢ میزان ١٣٠٩ش).

د جاپان او افغانستان د مودت معاهده د سردار شاه ولیخان افغاني وزیر مختار او د جاپان د سفیر تر منځ په لندن کي امضاء سوه (٢٧ عقرب ١٣٠٩ش، ١٩ نوامبر ١٩٣٠م).

د افغانستان او اتحاد شوروي تر منځ بطرفي او عدم تجاوز معاهده تجدید سوه، د افغانستان له خوا فیض محمد خان خارجه وزیر او د شوروي له خوا لوی سفیر ستارک امضا کړه ٩ مادې (٢٤ جون ١٩٣٠م، عقرب ١٣٠٩ش).

د کابل والي محمد یعقوب خان د شمالي ولایاتو رئیس تنظیمیه مقرر سو (عقرب ١٣٠٩ش) خو په دغه کال مړ سو.

جمعیت العلماء په کابل کي افتتاح او اعضاء ئې د حکومت له خوا مقرر سول او د حي علی الفلاح مجله ئې نشر کړه.

دارالعلوم عربي په کابل کي جوړ سو چي رئیس یې سردار عبدالرسول خان و.

سید هاشم خان افغاني جنرال قونسل په تاشکند کي په یکشنبه ٢٤ عقرب ١٣٠٩ش د شوروي ترکمنستان د عشق آباد په حدودو کي وواژه سو.

ابراهیم بیگ په قطغن کي بغاوت وکئ او سردار شاه محمود خان وزیر حربیه د هغه مقابلې ته ولاړ.

مکتب حربیه په شهر آرا کي د اعلیحضرت محمد نادر شاه په وینا بیا افتتاح سو (یکشنبه ٨ قوس ١٣٠٩ش).

عبدالرحمن تره کي د مقر په اوبند کي یاغی سو، خو په ٢٠ قوس ١٣٠٩ش عسکرو دی د سرحد خوا ته وشاړه.

د شنوارو ٨٠ تنه نمایندگان په کابل کي د جرگې په ډول د اعلیحضرت محمد نادر شاه حضور ته راغلل (د قوس اواخر ١٣٠٩ش).

شیر محمد خان ناشر (خروټی) د میمنې اعلی حاکم مقرر سو (٢ جدي ١٣٠٩ش).

د مامورینو لپاره د رسمي القابو د استعمال امر بیا صادر سو (جدي ١٣٠٩ش).

غلام فاروق خان د سمت مشرقي حاکم اعلی مقرر سو (٥ جدي ١٣٠٩ش).

د هرات انجمن ادبي جوړ سو (جدي ١٣٠٩ش).

محمد گل خان داخله وزیر د قندهار رئیس تنظیمیه سو (سه شنبه ٦ حوت ١٣٠٩ش).

شیر احمد خان پخوانی رئیس شورا په تهران کي افغاني سفیر کبیر سو (حوت ١٣٠٩ش).

مجله اقتصاد د وزارت تجارت له خوا نشر سوه (١٣٠٩ش).

د ١٣٠٩ش کال مالي واردات ٦٤ ملیونه،

مصارف ۱۲٦ ملیونه او کسر ٦۲ میلیونه و.

محمد شریف خسته دل د محمد کریم زوی د کابل شاعر د بیدل پیرو او د دیوان خاوند ٤۲ کلن په کابل کي مړ سو (۱۳۰۹ش).

اتمان خیلو پښتنو د پړانگ غار پنځمه غزا له پرنگي سره وکړه او د مله کنډ پولټکل ایجنټ ټامس گلور یې وواژه او پرنگیانو اگره بمباري کړه. د مومندو غزاوي هم له پرنگي سره جاري وې.

**۱۹۳۱م ۱۳۱۰ش ۱۳۵۰ق**

غلام صدیق خان په برلن کي افغاني وزیر مختار مقرر سو (جوزا ۱۳۱۰ش).

احمد علی خان افغاني مختار وزیر له پاریسه لندن ته تبدیل سو (جوزا ۱۳۱۰ش) او سردار شاه ولیخان په پاریس کي سفیر سو.

کاروان زرد د هرات له لاري افغنستان ته ورسیدی (د جوزا اوائل ۱۳۱۰ش).

د علی آباد روغتون د اعلیحضرت محمد نادر شاه په شخصي مصرف (جوزا ۱۳۱۰ش) شرو سو، او په اسد ۱۳۱۲ش ئې کار ختم سو.

د کابل انجمن ادبي تاسیس سو او د کابل ادبي مجله یې خپره کړه (۱۵ جوزا ۱۳۱۰ش، ۵ جون ۱۹۳۱م، ۱۸ محرم ۱۳۵۰ق).

د دې انجمن مهم غړي دا ؤ:

۱ـ احمد علی خان دراني مدیر
۲ـ میر غلام محمد غبار
۳. محمد کریم نزیهي
٤ـ سرور گویا
۵ـ سرور جویا
٦ـ غلام جیلاني اعظمي
۷ـ غلام جیلاني جلالي
۸ـ قاري عبدالله
۹ـ عبدالعلی مستغني
۱۰ـ امین الله زمریالی
۱۱ـ محمد قدیر تره کي
۱۲ـ احمد الله کریمي

د افغانستان او شوروی اتحاد تر منځ د بیطرفي او عدم تجاوز معاهده په ۹ مادو کي د فیض محمد خان خارجه وزیر او لوي سفیر ستارک په امضا تجدید سوه (۲٤ جون ۱۹۳۱م، سرطان ۱۳۱۰ش).

خواجه هدایت الله د هزارجات رئیس تنظیمیه کابل ته را ستون سو (سرطان ۱۳۱۰ش).

اعلیحضرت محمد نادر شاه شوراي ملي پخپله وینا افتتاح کړه (دو شنبه ۱٤ سرطان ۱۳۱۰ش، جولائي ۱۹۳۱م).

د قطغن نا آرامي خلاصه سوه او وزیر حربیه کابل ته را ستون سو (دو شنبه ٤ اسد ۱۳۱۰ش). ده ته د اعلی لمر نښان په مکافات کي ورکړ سو (جولایي ۱۹۳۱م).

په ستمبر کي ابراهیم بیگ تر آمو واوښت.

د افغانستان نوی اصول اساسي د شورای ملي له خوا د اعلیحضرت محمد نادر شاه په امضا خپور سو (۳۱ اکتوبر ۱۹۳۱م، ۸ عقرب ۱۳۱۰ش).

اعلیحضرت محمد نادر شاه مجلس اعیان (د مشرانو جرگه) پخپله وینا افتتاح کړه

(دوشنبه ٢٤ عقرب ١٣١٠ش).

عبدالجميل خان د مزار شريف نائب الحکومه سو (عقرب ١٣١٠ش).

عبدالرحيم خان د قطغن او بدخشان د نائب الحکومه وکيل مقرر سو (عقرب ١٣١٠ش).

د نادر افغان کتاب د برهان الدين کشککي تاليف طبع سو (کابل عقرب ١٣١٠ش).

عبدالاحد خان د شورا رئيس د فراه او چخانسور رئيس تنظيميه سو (٥ قوس ١٣١٠ش).

بودار د فرانس نوی مختار وزير خپله اعتماد نامه د دلکشا په ماڼۍ کي وړاندي کړه (٢٠ جدي ١٣١٠ش).

د افغانستان حکومت چي د جنگ د تحريم معاهده امضا کړيده، د منچوريا د شخړي په نسبت ئې د جاپان او چين حکومتو ته د جنگ ځنډولو نوټه ورکړه (دلو ١٣١٠ش).

کابل په کذرگاه کي دارالمجانين جوړ سو (دلو ١٣١٠ش).

د ١٣١٠ش کال مالي واردات گرده ٨٤ مليونه افغاني، مصارف ١١٨ مليونه، کسر ٣٣ مليونه و.

په دته خيلو کي د پرنگي پر کيمپ د غازيانو حمله، چي د پرنگي په بمباري کي ٣٠ تنه شهيدان سول (١٩٣١م).

**١٩٣٢م ١٣١١ش ١٣٥١ق**

په کابل کي عمومي مکتبونه او د طب مکتب چي په اغتتاش کي بند سوي وو بيرته جوړ سول (حمل ١٣١١ش)

د افغانستان او عربيه سعوديه لومړۍ معاهده وسوه (٥ مي ١٩٣٢م، ١٧ ثور ١٣١١ش).

افغانستان د دو کالم سرحدي سيمه له چترال څخه واخيسته ١١١ جريبه مځکه (جوزا ١٣١١ش).

د افغانستان د دارالفنون (پوهنتون) لپاره د اعليحضرت محمد نادر شاه په حضور يو مجلس وسو او د دارالمان ماڼي ئې د دارالفنون لپاره وټاکله (جوزا ١٣١١ش).

محمد تقی اسفندياري د ايران لوی سفير خپله اعتماد نامه وړاندي کړه (١٣ سرطان ١٣١١ش).

د عبدالوکيل خان نائب سالار منار په ده مزنگ کي جوړ سو (جوزا ١٣١١ش).

د سرحدي پيښو د فيصله کولو موافقه د شوروي اتحاد له سفير کبير ستارک سره ١٧ مادې په کابل کي امضا سوه (٢٢ سنبله ١٣١١ش).

پنځه ولايته کابل، قندهار، هرات، مزار، قطغن او بدخشان او څلور اعلی حکومتونه فراه، سمت جنوبي، سمت مشرقي، ميمنه اعلان سول (٢٤ اگست ١٩٣٢).

سردار شاه محمود خان د حرب وزير اروپا ته د علاج لپاره ولاړ او شهزاده محمد ظاهر خان د حرب وزارت کفيل سو (عقرب ١٣١١ش).

سردار شاه وليخان سفير له پاريسه کابل ته راغي او د ده سره غلام نبي خان هم راغی

(عقرب ۱۳۱۱ش).

غلام نبي خان څرخي په کابل کي ووژل سو (۸ نومبر ۱۹۳۲م ۱٦ عقرب ۱۳۱۱ش).

په پختیا کي دری خیل ولاړ سول او ژر بیرته د دوی اغتتاش کنبینول سو (۲۱ عقرب ۱۳۱۱ش، اکتوبر ۱۹۳۲م).

په قندهار کي پښتو ادبي انجمن افتتاح سو (پنجشنبه ۹ قوس ۱۳۱۱ش). د پښتو میاشتنۍ مجله یې هم نشر کړه (۲۰ دلو ۱۳۱۱ش).

سردار محمد عزیز خان په مسکو کي افغاني سفیر په برلن کي لوی سفیر سو (قوس ۱۳۱۱ش).

عبدالحسین خان د روما سفیر په مسکو کي لوی سفیر سو (قوس ۱۳۱۱ش).

سردار محمد نعیم خان په روما کي افغاني وزیر مختار سو (قوس ۱۳۱۱ش).

د عراق او افغانستان لومړۍ د مؤدت معاهده (۲۰ ستمبر ۱۹۳۲م، ۲۸ قوس ۱۳۱۱ش).

**۱۹۳۳م ۱۳۱۱ش ۱۳۵۱ق**

د ښکاري درې لار جوړونه ختمه سوه (جدي ۱۳۱۱م).

د دولتي خزانو اصولنامه خپره سوه (۱۷ میزان ۱۳۱۱ش).

محمد گل خان مومند د شمالي ولایاتو رئیس تنظیمیه مقرر سو او پر ځای یې غلام فاروق خان د قندهار نائب الحکومه سو (شنبه ۱۰ جدي ۱۳۱۱ش).

شوکت بیگ د ترکیې لوی سفیر کابل ته راغي (جدي ۱۳۱۱ش).

اعلیحضرت محمد نادر شاه وزارت معارف ته فرمان صادر کئ چي د ۱۳۱۲ش کال له ابتداء څخه په معارفو کي د پښتو ښوونی اقدام وکي (٦ دلو ۱۳۱۱ش).

په بالا حصار کي د مکتب حربیه لپاره د ودانۍ فرمان صادر سو (حوت). تهداب یې په ۱۷ ثور ۱۳۱۲ش گنبیښو سو.

د افغانستان او برازیل د مودت معاهده په انقره کي امضا سوه (۲ حوت ۱۳۱۱، ۲۰فروري ۱۹۳۳م).

په ۱۳۱۱ش کال د تلگراف خط په گرده افغانستان کي ۸۸۹۵ کیلومتره و.

د ۱۳۱۱ ش کال مالی عایدات ۱۳۳ ملیونه افغاني، مصارف ۱۴۰ ملیونه، کسر اوه ملیونه و.

**۱۹۳۳م ۱۳۱۲ش ۱۳۵۲ق**

د شیبر او دره ښکاري لار افتتاح سوه (حمل ۱۳۱۲ش).

د استواني او لیتواني د حکومتو سره د افغانستان د مودت معاهدې په مسکو کي امضا سوې (جوزا ۱۳۱۲ش).

د خلع سلاح په کنفرانس کي د افغانستان نماینده سلطان احمد خان د انقرې افغاني سفیر وټاکل سو (جوزا ۱۳۱۲ش).

سردار محمد عزیز خان په برلن کي افغاني سفیر د سید کمال په تفنگچه وویشتل سو (۱٦ جوزا ۱۳۱۲ش، ٦ جون ۱۹۳۳م). په پنجشنبې ۸ سرطان په کابل کي ښخ سو.

علی محمد خان د معارفو وزیر د افغانستان

له خوا د لندن د اقتصادياتو په کنفرانس کي شامل سو (۲۵ جوزا ۱۳۱۲ش).

په قندهار کي د حاجي ميرويس خان د مزار گنبده د استاد نعيم خان په معماری جوړه سوه (جوزا ۱۳۱۲ش).

د فوائد عامه په نامه نوی وزارت تشکيل او الله نواز خان ئې وزير سو (سرطان ۱۳۱۲ش).

د تجاوز د تعريف قرار داد د افغانستان، ايران، استوانې، ترکيه، رومانيه، شوروی اتحاد، ليتوانيا تر منځ په لندن کي امضا سو (جولائي ۱۹۳۳م، سرطان ۱۳۱۲ش).

د علی آباد د روغتون (رفقی سناتوريم) د جوړولو کار چي په ۱۳۱۰ش شرو سوی و، په اسد ۱۳۱۲ش ختم سو.

حبيب الله خان طرزي په جاپان کي د افغانستان وزير مختار سو (اسد ۱۳۱۲ش).

د ښکاري درې لار افتتاح سوه (۱۹ اسد ۱۳۱۲ش).

علی محمد خان په لندن کي افغاني وزير مختار سو، او پر ځای ئې احمد علی خان وزير معارف سو (سنبله ۱۳۱۲ش).

محمد عظيم منشی زاده د کابل د برتانيا په سفارت کي درې تنه مړه کړل (۱۵ سنبله ۱۳۱۲ش) دی په ۲۱ سنبله اعدام سو.

رفقي سناتوريم د کابل په علی آباد کي افتتاح سو (۱٤ سنبله ۱۳۱۲ش).

خواجه هدايت الله د هزاره جات دمخنی رئيس تنظيميه په کابل کي اعدام سو (۲۲ سنبله ۱۳۱۲ش).

غلام جيلاني خان، شير محمد، محمد مهدي، فقير احمد په کابل کي اعدام سول (۲٤ سنبله ۱۳۱۲ش).

شرکت سهامي افغان په کابل کي جوړ سو، چي د طلا د رانيولو او پلورني امتياز ئې درلود (۲۸ سنبله ۱۳۱۲ش).

د انگريزانو او مومندو جنگونه (ميزان ۱۳۱۲ش)

د کابل د مکتب امانيه نوم استقلال او د اماني مکتب نوم نجات کيښول سو (ميزان ۱۳۱۲ش).

اعليحضرت محمد نادر شاه د دلکشا د ماڼي په چمن کي د عبدالخالق د تفنگځې په گولۍ شهيد سو، او په همدغه ورځ المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه د ده زوی د افغانستان پادشاه سو (۸ نومبر ۱۹۳۳م، چهار شنبه ۱٦ عقرب ۱۳۱۲ش د ماپښين درې بجې).

د ترکيې لوی سفير ممدوح شوکت بيگ په ۱۰ قوس او د المان نوی وزير مختار تسميکي په ۱۲ قوس ۱۳۱۲ش خپلي اعتماد نامې تقديم کړې.

عبدالخالق د اعليحضرت محمد نادر شاه قاتل په کابل کي اعدام سو (۲٦ قوس ۱۳۱۲ش).

سردار محمد هاشم خان ته د پاچا فرمان صادر سو چي دی صدر اعظم دئ او ده خپله کابينه داسي معرفي کړه: سردار شاه محمود خان د حرب وزير، فيض محمد خان خارجه وزير، محمد گل خان داخله وزير، فضل احمد خان

عدليه وزير، احمد علی خان د معارفو وزير، ميرزا محمد خان د تجارت وزير او د ماليې د وزير کفيل، الله نواز خان د عامو ګټو وزير، محمد اکبر خان د طب مستقل مدير، رحيم الله خان د پست او تلګراف او تيلفون مستقل مدير (قوس ۱۳۱۲ش).

دپټرولو او انحصار شرکت په کابل کي تاسيس سو (قوس ۱۳۱۲ش).

محمود طرزي د افغانستان د صحافت او سياست پلار په استانبول کي وفات او ښخ سو (۲۲ نومبر ۱۹۳۳م قوس ۱۳۱۲ش).

**۱۹۳٤م ۱۳۱۲ش ۱۳۵۲ق**

د قره قلي انحصار ملي بانک ته وسپارل سو (مارچ ۱۹۳٤م، حمل ۱۳۱۳ش).

د بلخ د نوی ښار د ودانۍ کار شرو سو (حمل ۱۳۱۳ش).

فريزر تتلر د انګليس نوی وزير مختار خپل اعتماد نامه وړاندي کړه (۲۰ حمل ۱۳۱۳ش).

قاري عبدالله ته د ملک الشعراء لقب ورکړ سو (حمل ۱۳۱۳ش).

د سويس د تقليل سلاح په جرګه کي جنرال محمد عمر خان د حربی ارکانو رئيس د افغانستان له خوا شامل سو (جوزا ۱۳۱۳ش، جون ۱۹۳٤م).

د څارويو (مواشی) د محصول اصولنامه خپره سوه (۱۵ ثور ۱۳۱۳ش).

د ګمرکونو د محصول اصولنامه خپره سوه (ثور ۱۳۱۳ش).

د امريکا د اتازوني دولت، افغانستان په رسميت ومانه (۱۱ اګست ۱۹۳٤م، ۲۹ اسد ۱۳۱۳ش).

د افغانستان او مجارستان د مودت معاهده (۲۵ اګست ۱۹۳٤م، ۱ سنبله ۱۳۱۳ش).

شهزاده احمد شاه وزيرېدئ (۲۳ ستمبر ۱۹۳٤م، ۳۱ سنبله ۱۳۱۳ش).

په کابل کي د المپيک ټولنه جوړه سوه (سنبله ۱۳۱۳ش، اګست ۱۹۳٤م).

افغانستان په مجمع ملل کي داخل سو (۲۵ ستمبر ۱۹۳٤م، ميزان ۱۳۱۳ش).

د افغانستان خارجه وزير فيض محمد خان د افغان، ايران سرحداتو ته نژدې د اعليحضرت رضا شاه پهلوي حضور ته ورغئ (۲ ميزان ۱۳۱۳ش).

د کابل په پوهنتون کي د سائنس پوهنځي افتتاح سوه (۲۹ ميزان ۱۳۱۳ش).

جنرال فخرالدين التای د ترکيه د حکميت مشر د افغان، ايران، سرحدی شخړو د حل لپاره په يکشنبه ۱۸ عقرب ۱۳۱۳ش کابل ته راغئ او په ۱ قوس ۱۳۱۳ش هرات ته ولاړ.

د قندهار په سنګين کي د نهر سراج د کيندلو کار بيا شروع سو (قوس ۱۳۱۳ش).

ريوټر له تهرانه په ۲۳ قوس ۱۳۱۳ش يو خبر خپور کئ چه د زور آباد په سرحد کي د افغانستان خلکو پر ايراني خاوره حمله کړيده. افغاني اخبارو دا خبر ترديد کئ (۲٤ قوس ۱۳۱۳ش).

مولوي محمد بشير هندي مهاجر او په چمرکند کي د المجاهد خپرونکی ووژل سو

(قوس ۱۳۱۳ش، ستمبر ۱۹۳٤م).

سيد کمال د سردار محمد عزيز خان قاتل په برلن کي اعدام سو (۲۲ جدي ۱۳۱۳ش).

جنرال فخرالدين التای خپل سرحدي حکميت تمام کئ او په ۲۸ جدي ۱۳۱۳ش د شوروی له خوا انقرې ته ولاړ.

د هندوستان د عسکري نمايش د ليدلو لپاره عبدالاحد خان فرقه مشر او عبدالغفور خان فرقه مشر ډهلي ته ولاړ (۲۸ جدي ۱۳۱۳ش).

د زور آباد بر شخړو د افغانستان او ايران موافقه امضا سوه (٤ دلو ۱۳۱۳ش).

د لندن افغاني وزير مختار علي محمد خان په سويس کي وزير مختار او په بين المللي مجمع کي نماينده سو (حوت ۱۳۱۳ش).

الله نور خان په المان کي زوير مختار مقرر سو (حوت ۱۳۱۳ش).

محمد اکبر خان په روما کي افغاني وزير مختار سو (حوت ۱۳۱۳ش).

غلام يحيی خان د خارجه وزارت لومړی معين د طب مستقل رئيس سو (حوت ۱۳۱۳ش).

محمد صادق خان مجددي په مصر کي افغاني وزير په حجاز کي هم وزير مختار سو (حوت ۱۳۱۳ش).

افغانستان د جامعه ملل د ښځو د خرڅولو د انسداد په مجاهده کي شامل سو (حوت ۱۳۱۳ش).

کابل او مزار شريف په تيلفون سره ونښلول سوه (حوت ۱۳۱۳ش).

د ۱۳۱۳ش کال مالي واردات ۱۲۰ مليونه، مصارف ۱٦۱ مليونه، کسر ٤۱ مليونه افغاني و.

د افغانستان ملکي تشکيلات په ۱۳۱۳ش کال داسي و

| ولايات | حکومات کلان | محلی حکومتونه | علاقداری |
|---|---|---|---|
| کابل | ٤ | ۲۵ | ٤ |
| قندهار | ۳ | ۱۷ | ۲۱ |
| هرات | ۲ | ۸ | ۱۹ |
| مزار شريف | ۱ | ۱۲ | ۱٤ |
| بدخشان\قطغن | ۱ | ۱۷ | ۱۷ |
| سمت مشرقی | ۱ | ۱۱ | ۱۰ |
| سمت جنوبی | ۰ | ۵ | ۲۵ |
| ميمنه | ۰ | ۵ | ٦ |
| فراه | ۰ | ۲ | ٦ |

په ۱۳۱۳ش کال په افغانستان کي گرده ۳۹ مکتبونه وو، چي ٦۱۷۵ تنه يې شاگردان او ۲۰٦ تنه معلمان وو.

مير احمد شاه رضواني د شکوستان افغاني او بهارستان افغاني او نورو کتابونو مؤلف په پيښور کي وفات سو (۱۹۳٤م، ۱۳۵۳ق) ولادت يې په اکبر پوره کي ۱۲۷۹ق.

سردار عبدالرحمن خان د سردار عبدالوهاب خان زوی چه عالم، فکور او شاعر سړی و، په فراه کي وفات سو ۱۹۳٤م، ۱۳۱۳ش، ۱۳۵۳ق (ولادت يې ۱۲۸۹ق).

**۱۹۳۵م ۱۳۱٤ش ۱۳۵٤ق**

د افغانستان او اتحاد جماهير شوروي تر منځ د مچخو د مبارزې موافقه نامه ۱۲ مادې

فیض محمد خان خارجه وزیر او ستارګ د شوروي سفیر امضا کړه (۱٦ مئي ۱۹۳۵م، ثور ۱۳۱٤ش).

د امریکا لومړی سفیر هورني بروک کابل ته راغی (ثور ۱۳۱٤ش، مئی ۱۹۳۵).

ملا محمد یعقوب فراهي د ملا محمد خان نورزي زوی عالم او مؤلف او شاعر په فراه کي وفات سو (۱۳۱٤ش ولادت یې ۱۲۸٤ق). آثار ئې: تذکره آتش فشان، گنج شهیدان، دیده یعقوب، حواشي پر اقلیدس.

هورني بروک د امیریکا لوی وزیر مختار خپله اعتماد نامه تقدیم کړه (۱۳ ثور ۱۳۱٤ش، مي ۱۹۳۵ق).

د ایران نوی لومړی سفیر علی اکبر بهمن خپله اعتماد نامه تقدیم کره (۱۸ ثور ۱۳۱٤ش، مي ۱۹۳۵م).

کرنل لارنس چي د افغانستان په اغتشاش ۱۳۰۷ش کي لاس درلود په لندن کي مړ سو (۲۸ ثور ۱۳۱٤ش، مئی ۱۹۳۵م).

د کوټي لویه زلزله وسوه چي په جنوبي افغانستان کي هم اثر وکړ (جمعه ۹ جوزا ۱۳۱٤ش، جون ۱۹۳۵م).

د ملي شورا اجلاس وپرانست سو (۸ جون ۱۹۳۵م، جوزا ۱۳۱٤ش).

صحیه او د پست او تلگراف او تیلفون وزارتونه تاسیس سول، غلام یحیی خان وزیر صحیه، او رحیم الله خان د پست او تلگراف او تلفون وزیر مقرر سو (جوزا ۱۳۱٤ش، جون ۱۹۳۵م).

د قندهار نهر سراج د هلمند له روده بیا جوړ او افتتاح سو (دو شنبه ۲٦ جوزا ۱۳۱٤ش، جون ۱۹۳۵م).

عبدالرحیم خان د هرات نائب سالار وزیر فواید عامه سو، او پر ځای ئې غلام فاروق خان د هرات نائب الحکومه مقرر سو (۲۷ جوزا ۱۳۱٤ش).

د قندهار به بابا ولی کي د بریښتان کارخانه افتتاح سوه (سه شنبه ۱۷ سرطان ۱۳۱٤ش، جولائي ۱۹۳۵م).

د حاضري اصولنامه نشر سوه (۱۰ سرطان ۱۳۱٤ش).

د تجارتي تقاوي او کوریري اصولنامې خپرې سوې (۱۰ سرطان ۱۳۱٤ش).

ښاغلی محمد داؤد د قندهار ملکی او عسکری مشر قندهار ته راغی (جمعه ۲۷ سرطان ۱۳۱٤ش، جولایي ۱۹۳۵م).

مفتي جزایري د مصر وزیر مختار په کابل کي خپله اعتماد نامه وړاندي کړه (۱۳۱٤ش).

سلطان احمد خان د افغانستان وزیر مختار په قاهره کي مقرر سو (اسد ۱۳۱٤، اگست ۱۹۳۵م).

محمد صادق خان مجددي په جده کي وزیر مختار سو (اسد ۱۳۱٤ش، اگست ۱۹۳۵م).

محمد انور خان نایب سالار د حرب د وزارت معاون سو (اسد ۱۳۱٤ش، اگست ۱۹۳۵م).

د قندهار ادبي انجمن کابل ته نقل کړ سو (اسد ۱۳۱٤ش، اگست ۱۹۳۵م).

د قندهار د نوی ښار وداني جوړې سوې (سنبله ۱۳۱٤ش، ستمبر ۱۹۳۵م).

انګریزانو ته د مومندو قبیلو ولاړېدل (ستمبر ۱۹۳۵م، میزان ۱۳۱٤ش).

له ګمرک څخه د دیپلوماسی مالونو او بګاژونو د معافي اصولنامه (۱۲ میزان ۱۳۱٤ش).

انګلیسی لښکرو پر مومندو باندي حملې وکړې او د افغانستان اخبارو خپل تشویش وښو، که انګلیسي لښکر ځانونه د ډیورنډ برید ته را رسوي دا به د افغانستان لپاره خطر وي او په سرحدی قبیلو کي به عام غاو پورته سي (میزان ۱۳۱٤ش، ستمبر ۱۹۳۵م).

د ایران خارجه وزیر کاظمی د هند او قندهار له خوا کابل ته د سیاسي مذاکراتو لپاره په دوستانه سفر راغلئ (۱٦ عقرب ۱۳۱٤ش، نومبر ۱۹۳۵م).

د بې وزلو د روزنی اصولنامه، او د عمومی ګټو لپاره د استملاک اصولنامه خپره سوه (۱۸ عقرب ۱۳۱٤ش).

کاغذی نوټونه د مالیې د وزارت له خوا خپاره سوه (قوس ۱۳۱٤ش، دسمبر ۱۹۳۵م).

د جاپان سفارت په کابل کي جوړ سو (نومبر ۱۹۳۵م، قوس ۱۳۱٤ش).

پروفیسور غلام محمد خان مشهور نقاش په کابل کي وفات سو (قوس ۱۳۱٤ش، دسمبر ۱۹۳۵م).

د لوګر د سرخاب ډم جوړ سو، چی دري لکه جریبه مځکه اوبوی (۱۹ قوس ۱۳۱٤ش، دسمبر ۱۹۳۵م).

## ۱۹۳٦م ۱۳۱٤ش ۱۳٥٤ق

جاپان ته د لوړو تحصیلاتو لپاره یوه ډله محصلان واستول سوه (جدي ۱۳۱٤ش، جنوری ۱۹۳٦م).

د جوهری رنګونو د راوړلو اصولنامه خپره سوه (۲٥ جدي ۱۳۱٤ش).

سردار علی شاه خان د قندهار عسکری او ملکي آمر مقرر سو (۲٦ جدي ۱۳۱٤ش، جنوري ۱۹۳٦م).

عبدالصمد خان په روما کي د افغانستان وزیر مختار مقرر سو (۲٤ دلو ۱۳۱٤ش).

په قندهار کي د وړیو د سوداګري لپاره د وطن شرکت تاسیس سو (حوت ۱۳۱٤ش).

د خارجي اتباعو د استخدام اصولنامه خپره سوه (۱۱ حوت ۱۳۱٤ش).

سپه سالار شاه محمود خان د حرب وزیر د علاج لپاره اروپا ته ولاړ، او سردار شاه ولیخان د حرب د وزارت کفیل سو (۸ حوت ۱۳۱٤).

د ۱۳۱٤ش کال مالي واردات ۱۲۱ ملیونه، مصارف ۱۳٤ ملیونه، کسر ۱۳ ملیونه افغاني و.

په ۱۳۱٤ش کال ٥۰ مکتبونه په افغانستان کي و چي ٦۱۸٦ تنه شاګردان او ۲۰۹ تنه معلمان یې لرل.

## ۱۹۳٦م ۱۳۱٥ش ۱۳٥٥ق

د امریکا سره د مؤدت معاهده (۲٦ مارچ ۱۹۳٦م، ٥ حمل ۱۳۱٥ش).

د شوروي اتحاد سره د عدم تعرض او تجارتي تړون (مارچ، ۱۲ حمل ۱۳۱٥).

د شوروي نوی سفیر کویرسکي اگریمان صادر سو (۱۵ حمل ۱۳۱۵ش، اپریل ۱۹۳۶).

د افغاني ۱٦ ورزش کارانو شمول د برلن په اولمپیک ټولنه کي (۱٦ حمل ۱۳۱۵ش، اپریل).

شرکت سهامي ملي په بانک ملي تبدیل سو (۲ حمل، مارچ).

د ملکي او عسکري مامورینو په معاش کي زیاتوب (دو شنبه ۱۷ حمل ۱۳۱۵).

د پل خمري د نساجي شرکت تاسیس سو (۱٦ ثور ۱۳۱۵، مي).

په کابل کي د ښځو سناتوریم افتتاح سو (۲۵ جوزا ۱۳۱۵، جون ۱۹۳٦).

د دواخانو اصولنامه خپره سو (۱۵ ثور ۱۳۱۵ش).

په قندهار کي د وړیو اودلو کارخانه افتتاح سوه (۲۸جوزا ۱۳۱۵ش، جون ۱۹۳٦م).

په افغانستان کي لومړی قران شریف چاپ سو (۱۰ سنبله ۱۳۱۵، ستمبر ۱۹۳٦م)

د کابل پوهنتون د طب د پوهنځي تهداب په علی آباد کي کښېښول سو (۲٤ سنبله ۱۳۱۵ش، ۱۵ ستمبر ۱۹۳٦).

د هلمند د اوبو په باب کي د افغان او ایران گډ کمسیون په چخانسور کي ختم سو (۲۵ سنبله، ستمبر ۱۹۳٦).

په غزنه کي د حکیم سنایي د مزار تعمیر (۱۵ میزان ۱۳۱۵، ۸ اکتوبر ۱۹۳٦).

سردار شاه محمود خان د حرب وزیر په مسکو کي (۳ میزان ۱۳۱۵ش، ستمبر ۱۹۳٦).

سردار محمد هاشم خان صدراعظم د علاج لپاره اروپا ته ولاړ (۱۹ میزان ۱۳۱۵ش، ۱٤ اکتوبر ۱۹۳٦م). د صدر اعظم وکیل سردار شاه ولیخان و.

د پست اصولنامه خپره سوه (۷ یزان ۱۳۱۵ش).

د پښتو د رسمیت او ملی ژبي والي فرمان صادر سو چي مامورین ئې تر درو کالو زده کي (عقرب ۱۵ نومبر ۱۹۳٦م).

د تابعیت اصولنامه خپره سوه (۱٦ عقرب ۱۳۱۵ش).

سید عبدالله د خارجه وزارت عمومي سیاسي مدیر په دریای آمو کي غرق سو (جمعه ۱۹ قوس ۱۳۱۵ش، دسمبر ۱۹۳٦م).

د شورای ملي د دریمي دورې لپاره د وکیلانو د انتخاب په شاهي اعلان سره امر وسو (۱۵ جدي ۱۳۱۵، دسمبر ۱۹۳٦).

په ۱۳۱۵ش کال په افغانستان کي ۹٦ مکتبونه و، چي ۹۲۷۵ تنه شاگردان او ۳۰۹ تنه معلمان ئې لرل.

د ۱۳۱۵ش کال مالي واردات ۱٦۱ ملیونه، مصارف هم ۱٦۱ ملیونه افغاني و.

د کابل د ۱۳۱۵ش ارتزاقي مواد: اوړه ۲٤٦۲ خرواره، غوړي ۳۳۰، نري وریجي ۱٤۵۲، پنډې ورجي ۵۹۵، مالگه ۸۸٤، ماش ۱۵۲، کورت ۱۰۹ خرواره، پسونه ۱٦۵،۱۵۹ وزې ۲۱،۰۲۸، غویي ۱۵٦۷.

میرزا سکندر نقاش د میرزا رضا هروي نقاش شاگرد په هرات کي وفات سو

(۱۳۱۵ش).

د مصر د وزیر مختار عبدالرحمن عزیم اگریمان صادر سو (حوت ۱۳۱۵ش، مارچ ۱۹۳۷م).

**۱۹۳۷م ۱۳۱٦ش ۱۳۵٦ق**

یوولس ترکي منصبداران د عسکري چارو لپاره استخدام سول (٦ حمل ۱۳۱٦ش، ۲۷ مارچ ۱۹۳۷).

سردار احمد علی خان په تهران کي افغاني لوی سفیر او سردار محمد نعیم خان وزیر معارف سو (۱۷ حمل ۱۳۱٦ش، اپریل ۱۹۳۷م).

د نفتو د استخراج لپاره د افغانستان او انلانډ اکسپلوریشن شرکت تړون ۲۳ مادې (ثور ۱۳۱٦ش، اپریل ۱۹۳۷م).

سردار محمد نعیم وزیر معاف د انجمن ادبي رئیس سو (۲۵ جوزا ۱۳۱٦ش، مئی ۱۹۳۷م).

د انگلستان د پادشاه د تاج اغوستلو په جشن کي په پاریس کي د افغانستان مختار وزیر سردار شاه ولیخان او عبدالصمد خان د روما وزیر مختار او سردار اسد الله خان د شاهي فرقې قومندان د افغانستان له خوا اشتراک وکی (۱۲ مئي ۱۹۳۷م، جوزا ۱۳۱٦ش).

د افغانستان، ایران، عراق، ترکیې تر منځ د سعد آباد تړون امضا سو (۱۷ سرطان ۱۳۱٦ش، ۷ جولائي ۱۹۳۷م).

پښتو ټولنه په کابل کي افتتاح سوه او انجمن ادبي ورسره گډ سو (سرطان ۱۳۱٦ش، جون ۱۹۳۷م).

په زرغون ښار او کټه واز کي ځني قبایل ولاړ سول، مگر ژر مطیع سول (سنبله ۱۳۱٦ش اگست ۱۹۳۷م).

د المان د نورنبرگ په جرگه کي عبدالمجید خان د ملي بانک رئیس او محمد احسان هوایي قومندان شرکت وکي (۸ میزان ۱۳۱٦ش، ۱ اکتوبر ۱۹۳۷م).

پر پښتو ژبه باندی د ویناو ټولنه د فیض محمد خان وزیر خارجه په وینا د کابل په سینما کي افتتاح سوه (۱۰ میزان، ۱۳ اکتوبر).

شیر احمد خان د دولت وزیر مقرر سو (۱۷ میزان، ۲۰ اکتوبر).

د شرقي اتفاق شورا په جینوا کي د سعد آباد د تړون د مملکتو په گډون وسوه (۲۱ ستمبر ۱۹۳۷م).

د چکوسلواکیا سره د مؤدت معاهده لاس لیک سوه (۲۰ میزان ۱۳۱٦ش، ۱٤ ستمبر ۱۹۳۷م).

د افغانستان او برازیل د مؤدت معاهده په پاریس کي امضا سوه (۱۸ عقرب ۱۳۱٦ش).

د هند د تجارتي وکالت اداره په کابل کي جوړه سوه (۱۵ عقرب ۱۳۱٦ش، ۸ نومبر ۱۹۳۷م).

عبدالشکور خان پخوانی قاضي القضات په قندهار کي وفات سو (۲۰ عقرب ۱۳۱٦ش، ۱۳ نومبر ۱۹۳۷م).

د ابن سینا د ۹۰۰ کال تلینه په کابل کي وسوه (۲۰ عقرب ۱۳۱٦ش، ۱۳ نومبر

۱۹۳۷م).

د ترنګزو حاجي صاحب په آزاد سرحد کي وفات سو (قوس ۱۳۱٦ش، نومبر ۱۹۳۷م).

د بې سیم تلګراف دستګاه په میمنه کي ودرول سوه (۱ قوس ۱۳۱٦ش، ۲۳ نومبر ۱۹۳۷م).

په کابل کي شرکت ارزاق افتتاح سو (جدي ۱۳۱٦ش، دسمبر ۱۹۳۷م).

په کابل کي د میوې شرکت افتتاح سو (جدي ۱۳۱٦ش، دسمبر ۱۹۳۷م).

د کونسټنټین الکزندر ویچ د شوروي لوي سفیر اګریمان صادر سو (٥ جدي، دسمبر ۱۹۳۷م).

د افغانستان او ترکیې د مؤدت او اقتصاد ترون تر لسو نورو کلو پوري په انقره کي تجدید سو (۱۰ جدي ۱۳۱٦ش).

**۱۹۳۸م ۱۳۱۷ش ۱۳۵۷ق**

د کابل پوهنتون د طب د پوهنځي لومړۍ ډله محصلان راووتل (۱٥ جدي ۱۳۱٦ش، ٥ جنوري ۱۹۳۸م).

د معارفو وزارت د پښتو درسی کتابونه په تالیف شرو وکړه (۲۰ حدي ۱۳۱٦ش، ۱۰ جنوري ۱۹۳۸م).

د کابل په ارګ کي کتابخانه تاسیس سوه (۲ دلو ۱۳۱٦ش، ۲۱ جنوري ۱۹۳۸م).

د چک وردګ د بریښنا کار خانه جوړه سوه (۱۹ دلو ۱۳۱٦ش، فروری ۱۹۳۸م).

محمد ګل خان مومند د پښتو قاموس په کابل کي چاپ کئ (۱۳۱٦ش).

د ۱۳۱٦ش کال دولتي عایدات ۲۲۰ ملیونه او مصارف هم دغوني و.

د لوفتهنزا طیارو هفتګي الوتني د کابل او برلن تر منځ شرو سوې (۱۳۱٦ش).

په ۱۳۱٦ش کال په افغانستان کي ۱٥۰ مکتبونه و، چي شاګردان ئې ۱۷،٥۲٦ تنه او معلمان يې ٥٨٤ تنه وو.

**۱۹۳۸م ۱۳۱۷ش ۱۳۵۷ق**

د قره قلی انحصاري شرکت په کابل کي جوړ سو (۱۰ حمل ۱۳۱۷ش). د بدخشان او پامیر لار جوړول شرو سوه (۱۰ حمل ۱۳۱۷ش).

د ودانیو شرکت (۱ باګ) د افغانستان او چکوسلواکیا په ګډه په کابل کي جوړ سو (۱۱حمل ۱۳۱۷ش، ۲ اپریل ۱۹۳۸).

د شوروي دولت د مزار او میمنې او هرات قونسل خانی او د افغانستان د تاشکند او مرو قونسلګري لغو سوې (۱۲جمل ۱۳۱۷ش، ۱۳ اپریل ۱۹۳۷م).

د جاپان سره د افغانستان تجارتي ترون وسو (۱۸ حمل ۱۳۱۷ش، ۹ اپریل ۱۹۳۸).

د شوروي اخبار دا تور چي د افغاني سفارت یو غړي د روس او جاپان اختلاف تودوي رد سو او افغانستان پر دې خبره د شوروي دولت ته پروټست وکي (۲۸ حمل ۱۳۱۷ش، ۲۸ اپریل ۱۹۳۸).

د قند جوړولو او پټرولو انحصاري شرکت په کابل کي جوړ سو (۳۱ حمل ۱۳۱۷ش، اپریل ۱۹۳۷م).

علامه اقبال د لاهور مشهور شاعر او پوهاند وفات او په لاهور کي ښخ سو، د ده پر وفات په ټول افغانستان کي تاسف وسو (۳ ثور ۱۳۱۷ش، ۲۲ اپریل ۱۹۳۸م).

د لته بند لار د جلال آباد پر خوا جوړه سوه (۸ ثور۱۳۱۷ش، اپریل ۱۹۳۸م).

د خوشحال خان مکمل کلیات په قندهار کي عبدالحی حبیبي چاپ او خپور کئ ۱۱۲۸ مخه (جوزا ۱۳۱۷ش، مئي ۱۹۳۸م). دا کار د قندهار د ملکي او عسکري مشر ښاغلي محمد داؤد په حمایت وسو.

د افغانستان او شوروي تر منځ د مضرو خزندو د دفاع موافقت نامه په کابل کي امضا سوه (۲٦ مئي ۱۹۳۸م، جوزا ۱۳۱۷ش).

د افغانستان هوايي قوا په خریداری سوو طیارو له ایتالیا، برتانیا څخه تقویه سول او د هوا بازی د زده کړي لپاره محصلان برتانیا، شوروي اتحاد، ایتالیا ته واستول سوه او وسلې هم رانیولي سوې (مي ۱۹۳۸م، جوزا ۱۳۱۷ش)،

محمد علی خان قندهاری د افغانستان د شطرنځ قهرمان سو (جوزا ۱۳۱۷، جون ۱۹۳۸م).

په شنوارو کي د محمد افضل عبدل خیل سرکوبي (۵ سرطان ۱۳۱۷، جولایي ۱۹۳۸م).

سعدی شامي او محمد علی چه له هنده د اغتشاش لپاره سلیمانخیلو ته راغلي و هند ته وتښتیدل (۱۰ سرطان ۱۳۱۷ش، جولایي ۱۹۳۸م).

د پښتو مستعجل دارالمعلمین په کابل کي جوړ سو (۱۲ سرطان ۱۳۱۷ش، جولایي ۱۹۳۸م).

د کوچي یاغیانو سرکوبي (سرطان ۱۳۱۷ش، جولایي ۱۹۳۸م).

د افغانستان او ترکیې د مؤدت معاهده تجدید سوه (۲٤ جون، سرطان ۱۳۱۷ش).

د تیلو د استخراج شرکت انلانډ اکسپلوریشن د خپله قرار داده څخه د ځینو سیاسي چارو له سببه انکار وکئ او خپله عذر نامه یې وړاندي کړه (۱٤ اسد ۱۹۱۳ش، ۱٦ اګست ۱۹۳۸م).

د افغانستان او ایران د پست موافقه نامه په کابل کي امضا سوه (۱۰ اسد ۱۹۳۷ش، ۲ اکست ۱۹۳۸م).

عبدالرحیم خان د وزیر په رتبه د صدارت معاون او عبدالحسین خان د فواید عامه وزیر او عبدالمجید خان د تجارت وزیر او میرزا محمد خان د مالیې وزیر سو (۲۳ سنبله ۱۳۱۷ش، ۱٤ ستمبر ۱۹۳۸م).

باقر کاظمي د ایران لوی سفیر خپله اعتماد نامه وړاندی کړه (۲۵ سنبله ۱۹۱۷ش، ۱٦ ستمبر ۱۹۳۸م).

د سیاسي علومو یوه اکادمي په کابل کي د وزارت معارف له خوا جوړه سوه (۱۱ میزان ۱۳۱۷ش).

د افغانستان خارجه وزیر د انګلیس خارجه وزیر ته د فلسطین په باب د زیرمي تلګراف ولیږه (میزان ۱۳۱۷ش، اکتوبر ۱۹۳۸م).

د هند خارجي سکرتر سر اوبري متکاف کابل ته راغئ، پر اقتصادي او سرحدي اقوامو او د فلسطين پر شخړو ئې د افغانستان د خارجه وزير سره خبري وکړې (ميزان ۱۳۱۷ش، اکتوبر ۱۹۳۸م).

غازي مصطفی کمال اتاترک په پنجشنبه ۱۸ عقرب ۱۳۱۷ش، ۱۰ نومبر ۱۹۳۸م په استانبول کي وفات سو او د ده پاتا په افغانستان کي په ډېر افسوس واخيستله سوه او په جنازه کي ئې سردار شاه وليخان اشتراک وکئ.

سردار فيض محمد خان په ترکيه کي افغاني لوی سفير مقرر سو (۲٤ عقرب ۱۳۱۷ش، ۱٤ نومبر ۱۹۳۸م).

علی محمد خان وزير خارجه سو (٥ قوس ۱۳۱۷ش).

سلطان احمد خان په مسکو کي افغاني لوی سفير سو (۸ قوس ۱۳۱۷ش).

محمد قاسم خان د هرات نائب الحکومه سو (۲٥ قوس ۱۳۱۷ش).

**۱۹۳۹م ۱۳۱۷ش ۱۳٥۸ق**

ښاغلی محمد داؤد د سمت مشرقي د تنظيم رئيس سو (۱۰ جدی ۱۳۱۷ش، ۱۷ جنوری ۱۹۳۹م).

په قندهار کي د عبدالقادر خان خټک پښتو ديوان لومړی پلا ښاغلي محمد داؤد په حمايت د عبدالحی حبيبي په تصحيح او اهتمام د مقدمې سره خپور سو.

اته مليونه افغاني د صنعتی پلان لپاره منظوري سوې، چي د پنبې کرلو او د اودلو کار پر مخ بوزي (دلو ۱۳۱۷ش، ۱۱ فروري ۱۹۳۹م).

د هلمند د اوبو د ويشني تړون د ايران له سفيره سره په خارجه وزارت کي ترتيب سو (٦ دلو ۱۳۱۷ش، فروری ۱۹۳۹م). چي وروسته ملي شورا هغه رد کئ.

د سياسي علومو اکاډيمي د حقوقو په فاکولته تبديل سوه (۸ حوت ۱۳۱۷ش، ۲٤ فروری ۱۹۳۹م).

د ۱۳۱۷ ش کال دولتي واردات ۱۷۳ مليونه مصارف ۱٦۳ مليونه سپما لس مليونه وه.

په ۱۳۱۷ ش کال په افغانستان کي ۲۲۸ مکتبونه و، چي ۱۸،۸۷۷ شاگردان او ۸۳۳ معلمان يې لرل.

**۱۹۳۹م ۱۳۱۸ش ۱۳٥۹ق**

د افغانستان لوی سفير سردار شاه ولي خان له پاريسه کابل ته راغئ (٥ حمل ۱۳۱۸ش، ۲٦ مارچ ۱۹۳۹م).

په زميندارو کي محمد افضل خان علی زی ياغي او ونيول سو (۱ حمل ۱۳۱۸ش، ۲۱ مارچ ۱۹۳۹م).

محمد نوروز خان په ايران کي افغاني لوی سفير او احمد علی خان په لندن کي وزير مختار او ذوالفقار خان په جاپان کي وزير مختار مقرر سول (۱۰ حمل ۱۳۱۸ش، ۱ اپريل ۱۹۳۹م).

د تجارت د وزارت نوم په ملي اقتصاد بدل سو (۱٥ حمل ۱۳۱۸ش، ۱٥ اپريل ۱۹۳۹م).

د عراق د پاچا امير غازي د مړيني تعزيت

په کابل کي (۲۰ حمل ۱۳۱۸ش، ۲۰ اپریل ۱۹۳۹م).

سردار احمد شاه خان وزیر دربار د ایران د ولیعهد د واده په مراسمو کي ګډون وکړ (۲۰ حمل ۱۳۱۸ش).

وزیر خارجه علی محمد خان د سعد آباد د تړون په مجلس کي د شمول لپاره تهران ته ولاړ (۱۳ حمل ۱۳۱۸ش).

شیر محمد خان ناشر د قطغن او بدخشان نائب الحکومه په کابل کي وفات سو (۲۸ حمل ۱۳۱۸ش، ۱۸ اپریل ۱۹۳۹م).

د قندوز د تیلو کښلو فابریکه افتتاح سوه چه هره ورځ پنځلس زره کیلو کالکي کاروي (۱۰ ثور ۱۳۱۸ش، ۱ می ۱۹۳۹م).

په کابل کي د عمران شرکت جوړ سو (۱۸ سرطان ۱۳۱۸ش، ۱۱ جولائي ۱۹۳۹م).

د افغانستان او هالینډ د مؤدت معاهده (۲٦ جولائي ۱۹۳۹م، ۲ اسد ۱۳۱۸ش).

د افغانستان او المان د تجارتي مبادلاتو او تادیاتو تړون (۱۰ اسد ۱۳۱۸ش، ۳ اګست ۱۹۳۹م).

ملا پاینده محمد چه د هډې د استاد په نامه مشهور او د ملا نجم الدین مرحوم خلیفه و په کابل کي وفات سو (۲۰ اسد ۱۳۱۸ش، اګست ۱۹۳۹م).

سردار علی شاه خان د قندهار ملکي او عسکري مشر مقرر سو (۹ سنبله ۱۳۱۸ش، ۲ ستمبر ۱۹۳۹م).

په شاهي فرمان په دوهم عمومي جنګ کي د افغانستان کامله بیطرفي اعلان سوه (۱۳ سنبله ۱۳۱۸ش، ٦ ستمبر ۱۹۳۹م).

سردار محمد نعیم خان وزیر معارف د صدارت عظمی معاون مقرر سو (۱۳ سنبله ۱۳۱۸).

غلام فاروق خان د داخله وزارت وکیل سو (۱ میزان ۱۳۱۸ش، ۲۳ ستمبر ۱۹۳۹م).

محمد اسماعیل خان د کابل والي سو (۱ میزان ۱۳۱۸ش).

په ۱۳۱۸ش کال دغه اصولنامې خپرې سوې:

۱ـ تر ډمونو او ولو لاندي کیدونکو مځکو د خرڅولو اصولنامه ۲۲ میزان.

۲ـ د ښاروالیو د محصولاتو اصولنامه ۱۰ قوس.

۳ـ د پاسپورت اصولنامه.

عسکري قوا ښه تجهیز سول (۱۳ اکتوبر، ۱۹ میزان ۱۳۱۸).

د پښتو لومړی مفصلل ګرامر په کابل کي د محمد اعظم ایازي له قلمه پښتو ټولنی چاپ کړ (عقرب ۱۳۱۸ش، نومبر ۱۹۳۹م).

آقاي سهیلي د ایران لوی سفیر په کابل کي مقرر سو (٤ عقرب ۱۳۱۸ش، اکتوبر ۱۹۳۹م).

په کابل کي د سید جمال الدین افغان د سلمي تلیني مراسم اجرا سول (قوس ۱۳۱۸ش، ۹ دسمبر ۱۹۳۹م).

په کابل کي وزارت معادن تاسیس او رحیم الله خان یې وزیر مقرر سو (۱٦ قوس ۱۳۱۸ش، دسمبر ۱۹۳۹م).

د مطبوعاتو مستقل رياست په کابل کې جوړ او صلاح الدين سلجوقي يې په کابينه کې مستقل رئيس سو (٤ جدي ١٣١٨ش، ٢٦ دسمبر ١٩٣٩م).

د عسکري مکلفيت قانون نافذ سو (١٢ جنوري ١٣٤٠م، جدي ١٣١٨ش).

د کابل راديو ٢٠ کيلوواټه منځنۍ څپه افتتاح سوه (١٢ جنوری ١٩٤٩م، جدي ١٣١٨ش).

**١٩٤٠م ١٣١٨ش ١٣٥٩ق**

د ملي شورا د څلورمي دورې د وکيلانو د ټاکنې له پاره اعلان خپور سو (١ دلو ١٣١٨ش).

د پښتو لومړی جيبي قاموس په قندهار کې د لعل محمد کاکړ او عبدالحي حبيبی له خوا چاپ او خپور سو (دلو ١٣١٨ش).

د ١٣١٨ش کال دولتي واردات ١٦٧ مليونه، مصارف ٢٠٠ مليونه، کسر ٣٣ مليونه افغاني و.

په ١٣١٨ش کال په افغانستان کې ٣١٢ مکتبونه او ٥٠ زره شاګردان او ١٥٠٧ تنه معلمان وو.

په دغه کال د افغانستان د قره قل تجارت له امريکا سره شرو سو، چه ګرده صادرات ١،٧١١،٦٠٨ ډالره وه.

محمد عبيد الله خان افغان د هند د پښتنو تاريخ (يادګار سلف) په ډهلي کي چاپ کئ (١٣١٨ش)،

ميرزا محمد جان د ميرزا سعيد احمد زوی د کابل شاعر او محاسب او خطاط په عاشقان و عارفان کي ښخ سو (١٣١٨ ش). ده د امير شير علی خان د وليعهد په تبريک کي هم يوه قصيده ويلې وه (١٢٩٠ق).

**١٩٤٠م ١٣١٩ش ١٣٦٠ق**

ملا محمد يوسف هراتي د قندهار سابقه دار معلم په ګرشک کي وفات سو (حمل ١٣١٩ش، مارچ ١٩٤٠م).

د افغانستان بانک اساس نامه خپره سوه (٥ جوزا).

د تجارت د اطاقو اصولنامه خپره سوه (٥ جوزا).

د ١٣١٩ش کال دولتي واردات ١٤٨ مليونه، مصارف ١٧٢ مليونه کسر ٢٤ مليونه افغاني و.

په ١٣١٩ش کال په افغانستان ٣٢٤ مکتبونه ٦٠ زره شاګردان او ١٩٩٠ تنه معلمان وو.

په دغه کال د قره قلی صادرات ٤،٦٧٤،٣٥٤ ډالرو ته ورسيد.

ميرزا خداداد ثاقب د مزار شريف فارسي شاعر وفات سو (يکشنبه ١٣ ذی الحجه ١٣٥٩ق).

ميرزا محمد اسحاق زرين قلم د غوث الدين زوی د کابل خطاط وفات سو (١٣١٩ش).

د احمد شاه ابدالی پښتو ديوان د عبدالحي حبيبي په ترتيب او اهتمام پښتو ټولنی چاپ کئ (کابل).

**۱۹۴۰م ۱۳۲۰ش ۱۳۶۰ق**

د چک وردک د بریښنا کار خانه چه په ۱۳۱۶ش کال شرو سوې وه بریښنا یي ٤٤ زره واټه کابل ته جاري سوه (حمل ۱۳۲۰ش).

د بورې او قند او نساجي شرکتونه جوړ سول (مئی ۱۹٤۰، جوزا ۱۳۲۰ش).

د افغانستان او شوروي اتحاد تجارتي قرار داد (۲۹ جولایي ۱۹٤۰م، اسد ۱۳۲۰ش).

د افغانستان تاریخ په دوه ټوکه کي زرمخه په فارسي ژبه د احمد علی کهزاد تالیف چاپ او د تاریخ ټولني خپور کي، له قبل التاریخ څخه بیا د اسلام تر راتگه.

**۱۹٤۱م ۱۳۲۰ش ۱۳۶۰ق**

اقتصادي پلان اعلان سو چي په ٥ کالو کي به افغانستان ٥۰ فیصده خپل د لباس اړتیا او ۸۰ فیصده په د بورې اړتیا پوره کوي (جنوري ۱۹٤۱م، جدي ۱۳۲۰ش).

ژوزف هاکن فرانسوی مستشرق چه له ۱۹۲٤م څخه یې په افغانستان کي تاریخي تحقیقات کړي وو، د اسپانیا د شمال غرب په دریاب کي په کښتي کي ډوب سو (۲٤ فروری ۱۹٤۱م، حوت ۱۳۲۰ش).

د پښتو جیبي قاموس (لس زره لغتونه) د محمد اعظم ایازي تالیف پښتو ټولنی چاپ کئ (کابل).

د عسکري مکلفیت نوې اصولنامه خپره سوه (۱٤ میزان ۱۳۲۰ش).

د ۱۳۲۰ش کال دولتي واردات ۱۶۱ ملیونه مصارف ۱۶۶ ملیونه کسر ٥ ملیونه افغاني و.

په ۱۳۲۰ش کال افغانستان ۳۳۱ مکتبونه ٦٤ زره شاگردان ۲۱۹۰ تنه معلمان درلودل.

**۱۹٤۱م ۱۳۲۱ش ۱۳۶۱ق**

افغانستان خپله بیطرفي په دوهم جهاني جنگ کي بیا تایید کړه (۲۸ جولائي ۱۹٤۱م، سرطان ۱۳۲۱ش).

افغانستان د برتانیا او شوروي اتحاد په غوښتنه جرمنیان او ایتالویان له مملکته وایستل (۱۹ اکتوبر ۱۹٤۱م، میزان ۱۳۲۱ش).

حاجي ولی محمد مخلص د سلطان محمد زوی د قندهار تکړه نقاد پښتو شاعر هلته ٦۲ کلن وفات سو (۳ دلو ۱۳۲۱ش، ولادت ئې قندهار ۱۲٥۹ ش).

شیخ محمد رضا هروي خطاط، نقاش، منجم، مورخ او شاعر په کابل کي وفات سو (۱٥ صفر ۱۳۶۱ق).

د پښتانه شعراء لومړی ټوک د عبدالحي حبیبي تالیف د پښتو ټولني له خوا په کابل کي چاپ سو.

په ۱۳۲۰ش کال دغه اصولنامې خپرې سوې:

۱ـ د تجارت اصولنامه ۳۰ جوزا.
۲ـ د تجارت د ثبت اصولنامه ۳۰ جوزا.
۳ـ د تجارتي دفترونو اصولنامه ۸ سرطان.
٤ـ د دلالي اصولنامه ۲۳ سرطان.
٥ـ د افلاس او ډیوالي توب اصولنامه ۱٥ قوس.

د ۱۳۲۱ش کال دولتي واردات ۱۰۳

مليونه مصارف ۱٦۳ مليونه کسر ٦۰ مليونه افغاني و.

په ۱۳۲۱ش کال افغانستان ۳٤۲ مکتبونه ۷۲،۲۰۳ شاگردان او ۲٥٤۸ تنه معلمان لرل.

**۱۹٤۳م ۱۳۲۲ش ۱۳٦۲ق**

قاري عبدالله ملک الشعراء د حافظ قطب الدين زوی په کابل کي ۷٥ کلن مړ او ښخ سو (جمعه ۹ ثور ۱۳۲۲ش، ولادت ئې کابل ۱۲۸۸ش و).

د افغانستان قونسلگری په نيو يارک کي افتتاح سوه (۱٥ مئی ۱۹٤۲م).

د افغانستان لومړی وزير مختار عبدالحسين عزيز خپله اعتماد نامه د امريکا رئيس جمهور ته وړاندی کړه (٥ جون ۱۹٤۲م، جوزا ۱۳۲۲ش).

د ۱۳۲۲ش کال دولتي واردات ۱۱۷ مليونه مصارف ۱۸۰ مليونه کسر ٦۳ مليونه افغاني و.

په ۱۳۲۲ش کال ټول د قره قلی صادرات ۱،۸۰۱،۸۹۳ پوسته په ۸،۰۸۳،٦۹۰ ډالره قيمت وه.

سر اورل ستاين مشهور انگليسي مستشرق او پوهاند په کابل کي مړ او ښخ سو (سه شنبه ۲ عقرب، ۲٦ اکتوبر ۱۹٤۳م).

د سعد آباد ترون تر پنځو کالو وروسته پخپله تجديد سو (۲۸ دسمبر ۱۹٤۳م، قوس ۱۳۲۲ش).

په ۱۳۲۲ ش افغانستان په ۳٥۳ مکتبو کي ۸٤،۱۲٦ تنه شاگردان او ۲٤٥٤ معلمان لرل.

د لوی احمد شاه بابا شرح حال د مير غلام محمد غبار تاليف په کابل کي په فارسي چاپ سو ۳٥۲ مخه.

**۱۹٤٤م ۱۳۲۲ش ۱۳٦٤ش**

د افغانستان او چين د مؤدت معاهده لاسليک سوه (٥ مارچ ۱۹٤٤م، حوت ۱۳۲۲ش).

د هرات لوی مسجد نوی ترميم او تزئين سو.

د پښتو شاعر عبدالعلی اخندزاده خالوزی کاکړ د ملا عبدالخالق زوی د ملا عبدالرحمن لمسی په ۱۹۳۰م د خان قلات قاضي القضات په ۱٦ شوال ۱۳٦٤ق د پښين په خالوزو کي وفات او ښخ سو (ولادت ئې خالوزی ۱۸۷۲م ۱۲۸۹ق).

مير سيد عالم محمد د امير سيد عبدالاحد زوی د بخارا پخوانی پاچا په کابل کي ٦٤ کلن وفات او په شهدای صالحين کي ښخ سو (شنبه ٥ جمادی الاولي ۱۳٦۳ق، ۹ ثور ۱۳۲۳ش). د ده جلوس په بخارکي ۱۳۲۹ق.

مير محمد علی آزاد د قاضي مير محمد حسن زوی د فارسي شاعر او منشي او مؤلف په کابل کي وفات سو (پنجشنبه ۲۰ ذيحجه ۱۳٦۳ق، ۱٥ قوس ۱۳۲۲ش). د ده ولادت په بالا حصارکي رمضان ۱۲۹٥ق.

د سيد جمال الدين افغاني تابوت له استانبوله کابل ته راوړل سو او په پوهنتون کي ښخ سو (يکشنبه ۱۰ جدی ۱۳۲۳ش).

پټه خزانه د پښتو تذکرۀ شعراء د محمد

هوتک تالیف (۱۱٤۲ق) د عبدالحي حبیبي په اهتمام کشف او له کابله چاپ او نشر سوه (۱۳۲۳ش).

د عبدالرؤف بینوا تالیف پښتني میرمني په کابل کي چاپ سو.

د ۱۳۲۳ ش کال دولتي واردات ۲۱۹ ملیونه مصارف ۱٦۷ ملیونه سپما ۵۲ ملیونه افغاني وه.

په ۱۳۲۳ش کال د افغانستان په ۳٤۸ مکتبو کي ۸۷،۵۳۹ تنه شاګردان او ۲۵۲۲ تنه معلمان لرل.

د ۱۳۲۳ش کال ټول د قره قلی صادرات ۱،۹۱۰،۰۱۹ پوسته په ۱۲،۷۱۱،۲٦۵ ډالره وه.

**۱۹۵٤م ۱۳۲٤ش ۱۳٦۵ق**

د ښښتو ادبیاتو تاریخ لومړی ټوک د عبدالحي حبیبي په قلم له کابله چاپ سو.

دوهم ټوک ئې په ۱۳٤۲ش کال په کابل کي چاپ سوی دئ.

حاجي اسماعیل سیاه د اخوند ملا عبدالاحد نوروزي هروي زوی، ظریف او ناقد شاعر (متخلص په ګوزک) د فارسي دیوان خاوند په هرات کي وفات سو (۱۰ عقرب ۱۳۲٤ش، ۲٦ ذي قعده ۱۳٦٤ق). د ده ولادت په کرخ کي ۱۲۷۲ق و.

غلام جیلاني اعظمی د خوشدل خان پوپلزی زوی شاعر او لیکوال به کابل کي مړ سو (سه شنبه ۲٦ قوس ۱۳۲٤ش، محرم ۱۳٦۵ق).

د ادبیاتو فاکولته د معارفو د وزارت له خوا جوړه سوه او لومړی رئیس یې عبدالحي حبیبي وټاکل سو.

د ۱۳۲٤ش کال دولتي واردات ۲۲٦ ملیونه مصارف ۲۲۹ ملیونه او درې ملیونه افغاني کسر دئ.

په ۱۳۲٤ش کال افغانستان په ۳٤٦ مکتبو کي ۹۳،۲۷۹ تنه شاګردان او ۲۵٤٦ معلمان لرل.

په دغه کال ټول د قره قلي صادرات ۳،٤۰٦،۳۷۹ پوسته په ۲۷،۰۲۱،۱۳٤ ډالره وه.

په ټول افغانستان کي ۷٦٦٦ حقوقي او ٦۱۱۳ جزائي دعاوي په محکمو کي فیصله سوي وې.

په ۱۳۲٤ش کال دغه اصولنامې نشر سوې:

۱- د خارجي اتباعو د مسافرت او هستوګني اصولنامه ۱۷ دلو.

۲- د ملکي مامورینو او متقاعدینو اصولنامه ۱٤ قوس.

۳- د ابتدایي او مرافعې او تمیز دعواګانو د معیاد ټاکنه ۲۷ سنبله.

٤- د ملي صنعتي مؤسسو د کار او کارګرانو اصولنامه ۲٤ جدي.

**۱۹٤٦م ۱۳۲۵ش ۱۳٦۷ق**

د افغانستان او شوروي اتحاد سرحدي موافقت نامه د سردار سلطان احمد خان افغاني لوی سفیر او مولوتف وزیر خارجه له خوا په مسکو کي ۵ مادې او یو پروتوکول امضاء سوه (۱۳ جون ۱۹٤٦م، جوزا ۱۳۲۵ش).

سردار محمد هاشم خان صدر اعظم د ناروغي په سبب استعفاء وکړه او پر ځای ئې

سپه سالار شاه محمود خان صدر اعظم سو (۹ مئي ۱۹٤٦م، جوزا ۱۳۲٥ش).

د ايران سره هوايي موافقه وسوه (۲٦ ميزان ۱۳۲٥ش).

په ملل متحد کي د افغانستان لومړی نماينده عبدالحسين خان شامل سو (۱۹ نومبر ۱۹٤٦م، عقرب ۱۳۲٥ش).

د ملل متحد عامي غونډې د افغانستان ګډون په هغه موسسه کي ومانه (۹ نومبر ۱۹٤٦م، جدي ۱۳۲٦ش).

عبدالرحيم خان د عامو ګټو وزير د حکومت د مخالفت په تور ونيول سو (۲۹ جنوري ۱۹٤٦م، جدي ۱۳۲٥ش).

د کابل پوهنتون د طب او حقوقو او ادبياتو د فاکولتو په شمول جوړ سو (۱۳۲٥ش).

په ۱۳۲٥ش کال دغه اصولنامې خپرې سوې:

۱ـ د عايداتو د مالياتو اصولنامه.

۲ـ د حکومت د اداری چارو د عمومي تفتيش اصولنامه ۱۰ ثور.

۳ـ د ملکي مامورينو د محاکمې او د محکمو د تشکيل اصول ۷ جوزا.

په ۱۳۲٥ش کال ټول د افغانستان ساتلی طلاوي د نيو يارک په فدرال بانک کي ۹۳۷،۷٦۷ اونسه طلا په ٤۳٥،۲۳٥،۷٦۳ افغاني قيمت وه او هم ۱۸٦،۹٤٥ مسکوکي طلاوي په ٥،۱۸۰،٦٥۰ ګرامه وزن او ٥۱۲،٥٦٤،۷۳٥ افغاني قيمت موجودي وې.

په ۱۳۲٥ کال ټول د قره قلي صادرات ۱،٥۹۸،۲۸۹ پوسته په ۲۱،۱۹۸،٤۲۲ ډالره وه.

په ۱۳۲٥ش کال افغانستان په ۳۲۹ مکتبو کي ۹۳،۳٤٤ شاګردان او ۲٦۷۷ تنه معلمان درلودل.

د ۱۳۲٥ش کال ګرده دولتي عايدات ۳۳۸ مليونه مصارف ۳٤٤ مليونه او کسر ٦ مليونه افغاني وو.

په ۱۳۲٥ کال د افغانستان ځيني احصائيې:

پوسته خانې ۲۳٥.

محکمې: ۱ تميز، ۱۰ مرافعې، ۱٦۱ ابتدائي، ګرده ۱۷۲.

مالي دواير: ۷ مستوفيه، ۳ سربښته داري، ۱٦٦ کنترولي اداري، ګرده ۱۸٤.

پښتو ملکي کورسونه: ګرده ٤٤٦، معلمان ۲۰۹، زده کونکی ۱۳۳۸۰.

نشر الصوت: يو براډکاسټنګ ناشر الصوت، ۱۳ تر احصائيي لاندي.

شخصي راډيو ګاني ۳٦۲۰.

د نخي کارخانو محصول:۱۰،۷۲٤،٦۹۳ متره ټوکر او ۲۸،۰۲۱ کلچې صابون.

د کابل نقليات: ۳۸۷٥ بايسکله، ۸٦۲ تيز رفتار موټرونه، ۱۳۲۱ لاري، ۷٥۱ ګاډي، ټوله د کراچيو او موټرو سايکل سره ٦۸۲٥.

د کابل حيوانات: ۳،۸۸۰،۷٦۷.

د زراعت دائرې: ولايات ۹، امتحاني قوريه ۲، سيروم سازي ۱، د څارويو روزنه ۱، د کرني ازمويښت ځايونه ٤، ټول ۱۷.

د کابل وداني: کورونه ۹٥۰۰، سرايونه

۱۱۲، دکانونه ۵٤٦۲، حمامونه ۲۷، یخدان ۱۵، د اوبو نلونه ۱۵۲ کیلو متره، مسجدونه ۲۰۰.

معادن: د تالقان مالګه ۱،۱۳۲،۸٦٤ سیره، د اندخوي مالګه ۱،۲۰۹،٦۷۲ سیره، د هرات د غوریان مالګه ۸٤۲،۲۹٤ سیره، د تاشقرغان مالګه ۱۱۳،۲۸۱ سیره، د قندهار مالګه ۱۲۰،۰۰۰ سیره، د غوربند مالګه ٤٤۰۰ سیره، مساوي ټوله ۳،٤۲٦،۵۱۱ سیره، ډبرین سکاره ۱۷،٦۸۸ سیره.

د حکومتو اداري: نائب الحکومګۍ ۷، اعلی حکام ۳، لوی حاکمان ۲۲، لومړي درجه حاکمان ۲۰، دوهمه درجه ۳۳، دریمه درجه ۳۸، څلرمه درجه ٤۱، علاقه داری ۱٤۲، ټوله ۳۰٦.

قضا: په ټول افغانستان کي ۲٤۷۵ حقوقي او ۱۸۷۲ جزایي فیصلې سوی وې.

د کابل نفوس: چي د بورې کوپون یې اخیستي دي ۱۰٦،۱۹۱ تنه.

د خارجي ټوکر واردات: ۹۱،۹٤۸،۰۲۸ متره.

د امریکا اوړه: ۲٦۵،٤۱۲ سیره.
خارجي بوره: ۲۷۰،۸۸٤ سیره.
روغتونونه: ۳۷۱،۱۹۲ تنو رجوع کړیده.

د کابل ښار دکانونه: د ډوډۍ هوټلونه ۳۵، سماوارچي ۱۵۱، کلچه پزی ٤٤، وریجي والا ۵۰، کبابي ۳۵، سابه والا ۳۵، پالوده والا ۵۹، میوه والا ۵۳، بقال ٤۰۸، ډوډي والا ۱۰٤، بنیۀ ګر ۱٦۵، قناد ۱۵۱، عطار ۱۷۵، زرګر ۱۷۷، درملتونونه ۱۰.

**۱۹٤۷م ۱۳۲٦ش ۱۳٦۸ق**

د افغانستان او شوروي د رادیو تلګرافي معاهده ۱٦ مادې په کابل کي امضاء سوه (۱۳ اپریل ۱۹٤۷م، حمل ۱۳۲٦ش).

د افغانستان وفد تاشکند ته ورسیدی چي د شوروي مملکته سره سرحدونه وټاکي (۲٤اپریل ۱۹٤۷م، ثور ۱۳۲٦ش).

څکه چي د هندوستان ویش ومنل سو، نو افغانستان برتانیا او د هند حکومت ته ولیکل، چي د افغانستان له سرحداتو تر ابا سینه پوري خلک پښتانه دي او ښایي چي دوی پخپله دا فیصله وکړي چي آزاد پاتیږي، که له افغانستان یا هند یا پاکستانه سره ګډیږي (۱۳ جون ۱۹٤۷م، جوزا ۱۳۲٦ش).

برتانیا افغانستان ته جواب ورکي چي د ۱۹۲۱م کال په تړون کي سرحدونه منل سوی دي، نو څکه هندوستانیانو ته د قدرت د انتقال په وخت کي باید افغانستان په شمال غربي سرحد کي هیڅ ډول مداخله و نه کړي (۳ جولایي ۱۹٤۷م، سرطان ۱۳۲٦ش).

افغانستان د پښتونستان د خلکو د حقوقو مطالبه بیا برتانیا ته وکړه (۱۰ جولایي ۱۹٤۷، سرطان ۱۳۲٦ش).

سردار شاه محمود خان صدر اعظم لندن ته ولاړ (۲٦ جولایي ۱۹٤۷م، اسد ۱۳۲٦ش).

سردار شاه محمود خان نیو یارک ته ورسیدئ (۳ اګست ۱۹٤۷م، اسد ۱۳۲٦ش).

ایران په سیستان کي د هلمند د اوبو د لږوالي شکوه وکړه (۱۸ ستمبر ۱۹٤۷م، سنبله

۱۳۲٦ش).

افغانستان د پښتنو په طرفداري د پاکستان د شامليدو پر خلاف د ملل متحد غونډه کي راى ورکړه (۳۰ ستمبر ۱۹٤۷م، ميزان ۱۳۲٦ش).

د افغانستان او سويډن د مؤدت معاهده (۲ اکتوبر ۱۹٤۷م، ۲۸ ميزان ۱۳۲٦ش).

نجيب الله خان د افغانستان نماينده د پښتونستان د خلکو د حقوقو مذاکره د پاکستان د مشرانو سره وکړه (نومبر ۱۹٤۷م، عقرب ۱۳۲٦ش).

د صافو او نورستانيانو د جنگ په بندونه کي د عسکرو مداخله (۲۹ نومبر ۱۹٤۷م، قوس ۱۳۲٦ش).

**۱۹٤۸م ۱۳۲٦ش ۱۳٦۹ق**

عبدالحسين عزيز د افغانستان نماينده په کشمير کانفرانس کي وغوښته چي د قبايلي سيمو پر وضعيت باندى د افغانستان سره مشوره وسي (۲۲ جنوري ۱۹٤۸م، دلو ۱۳۲٦ش).

په ۱۳۲٦ش کال دغه اصولنامې خپ[illegible] سوې:

۱ـ د ترافيک اصولنامه ۱۷ سنبله،

۲ـ د ښاروالیو اصولنامه ۱۰ سنبله،

۳ـ د عسکري جزا اصولنامه ۳ ميزان،

٤ـ د عسکرى محاکماتو اصولنامه ۱۳ ميزان.

د ۱۳۲٦ش کال دولتي واردات ۲۸۱ مليونه او مصارف ۲۸۳ مليونه کسر دوه مليونه افغاني و.

په ۱۳۲٦ش کال افغانستان په ۳۳۸ مکتبو کي ۹۸،٦۳۱ شاگردان او ۲۷٤۷ معلمان لرل.

په دغه کال ټول د قرقلي صادرات ۲،٤۱٦،۲۰۸ پوسته په ۱٦،۲۵۰،۹۹۷ ډالره وه.

د کابل صحي اداري: سناتوريم ۲، د کوچنو روغتون ۱، د ښځو روغتون ۱، د بنديانو روغتون ۱، گرزنده روغتون ۲، عمومي روغتونونه ۳.

شفاخانې: قندهار ٥، مزار ٦، هرات ۷، قطغن ۸، مشرقي ٥، ميمنه ۳، فراه ۲، بدخشان ۱، د کابل ښار ۲۱.

**۱۹٤۸م ۱۳۲۷ش ۱۳٦۹ق**

سردار محمد نعيم خان په اتزوني کي د افغانستان لوى سفير مقرر سو (اپريل ۱۹٤۸م، حمل ۱۳۲۷ش).

شاه عبدالله بدخشي د بدخشان د جرم د مير محمد سيد خان زوى چي ليکوال او محقق سړى و په کابل کي په ۲٦ حمل ۱۳۲۷ش وفات سو (ولادت ئې په جرم بدخشان کي ۱۳۳۰ق).

محمد يحيي نادم ميمنه وال د ديوان خاوند شاعر په ميمنه کي ۷۹ کلن وفات سو (سه شنبه ۷ ثور ۱۳۲۷ش).

سر گليس سکوائر په کابل کي د برتانيا سفير سو (۲۳ اپريل ۱۹٤۸، ثور ۱۳۲۷ش).

سردار فيض محمد خان په برتانيا کي د افغانستان لوى سفير سو (٦ مي ۱۹٤۸، ثور ۱۳۲۷ش).

د امريکا وزارت مختاري په کابل کي په

لوی سفارت بدله سوه او لومړی لوي سفير اي پالمير خپله اعتماد نامه وړاندي کړه (۵ جون ۱۹۴۸م، جوزا ۱۳۲۷ش).

افغانستان په راډيو او مطبوعاتو کي د پښتونستان تحريک شروع کړ او پاکستان خان عبدالغفار خان بندي کړ (۱٦ جون ۱۹۴۸م، جوزا ۱۳۲۷ش).

د افغان او شوري اتحاد کډ کمسيون د سرحداتو ټاکنه بشپړه کړه او موافقت نامه ئې امضا سوه (۲۹ ستمبر ۱۹۴۸م، سنبله ۱۳۲۷ش).

د ۱۳۲۷ش کال دولتي واردات ۳۱۱ مليونه مصارف ۳۱۷ مليونه کسر شپږ مليونه افغاني و.

په ۱۳۲۷ش کال په ۳۲۵ مکتبو کي ۹۸،٦٦۰ شاګردان او ۲۷۵۸ معلمان وو.

په دغه کال ګرده قره قلي صادرات ۱،۳٦۵،۸٦٦ پوسته په ۲۲،٦۰۵،۷۲۱ ډالره وه.

په دغه کال د مالګي واردات ماليه وزارت ته ۱،۴۲۲،۳۵۷ او د ډبرينو سکرو ۵٦۱،۱۹۵ افغاني وې.

په دغه کال کي د کابل د سينماګانو عايدات ۱،۴۸۷،۲٦۹ افغاني وې.

په دغه کال افغانستان له خارجه ۱۴۱،۳۵۱ بوری بوره، ۱۹۸،۰۴۴ سيره په ۴۱،۴٦۵،۳۹٦ افغاني رانيولې وه. او داخلي د بغلان بوره له ۳۲،۰۰۰ ټنو لبلبو څخه ۴٦،٦۸۳ بوری ۵۴۷،۲۳۵ سيره سوې وه.

د راډيو اصولنامه خپره سوه (۵ اسد).

د احمد توکلي کتاب روابط سياسي ايران و افغانستان له تهرانه چاپ سو (۱۳۲۷ش).

## ۱۹۴۹م ۱۳۲۸ش ۱۳۷۰ق

خارجه وزارت وويل چي د پاکستاني ګورنر جنرال دا خبره چي قبايلي سيمي د پاکستان نه جلا کيدونکي برخي دي د جناح د ۱۹۴۸م له وينا سره مخالفه ده (۲۴ مارچ ۱۹۴۹م، ٤ حمل ۱۳۲۸ش).

د افغانستان شارژ دافر په کراچي کي د وزيرستان پر بمباری باندي د پاکستان حکومت ته غاو وکي (۲ اپريل ۱۹۴۹م، حمل ۱۳۲۸ش).

لويس ډريفيوس په کابل کي د امريکا لوی سفير سو (۲۰ اپريل ۱۹۴۹م، ثور ۱۳۲۸ش).

افغانستان پر سرحداتو باندی د پاکستان خوا ته د کاډيو تګ راتګ مقيد کړ (٤ جون).

پاکستاني طيارو پر مغلګي بمباري وکړه او ۳۲ تنه افغانان يې مړه کړل او د افغانستان حکومت پر دې واقعه سخت احتجاج وکي (۱۲ جون ۱۳۴۹م، جوزا ۱۲۲۸ش).

الفريډ ګاردنر په کابل کي د برتانيا لوی سفير سو (۲۰ جون ۱۳۴۹م، جوزا ۱۳۲۸ش).

فيض محمد خان د افغانستان لوی سفير په لندن کي وويل چي افغانستان به د پاکستان سره د خپلي شخړي د فيصلې لپاره د برتانيا کومک وغواړي، مګر پاکستان وويل چي په سرحدي صوبه کي دمخه د خلکو رايه اخيستله سويده او دا کار د پاکستان په داخلي چارو کي مداخله ده (جوزا ۱۳۲۸ش).

د شورای ملي اومه دوره چې آزاده شورا وبلله سوه افتتاح سوه (۳۰ جون ۱۳٤۹، سرطان ۱۳۲۸ش).

د پاکستان خارجه وزیر وویل: چې پاکستان به د افغانستان سره د اقتصادي همکاري خبري وکي خو د قبایلي سیمو مسئله به رد کي (۱۱ جولایي ۱۳٤۹م، سرطان ۱۳۲۸ش).

د افغانستان ملي شورا ډیورنډ لین رد کئ او د پښتونستان د خلکو جهاد یې د آزادي لپاره تایید کئ (۲٦ جولایي ۱۳٤۹م، اسد ۱۳۲۸ش).

مولوی سیف الرحمن الکوزی د افغانستان قاضي عسکر ۱۱۰ کلن د پیښور د چارسدې په دوابه او مهتره کلي کي وفات او ښخ سو (شنبه ۷ جمادی الاولي ۱۳٦۹ق، ۱۳۲۸ش).

د سوات والي میانګل عبدالودود خپل زوی عبدالحق جهان زیب خپل جانشین کئ او د ریاست حکمراني ور وسپارله سوه (۱۲ دسمبر ۱۳٤۹، قوس ۱۳۲۸ش).

**۵۰ -۱۹٤۹م ۱۳۲۸ش ۱۳٦۸ق**

د افغانستان او هند د روغي او مؤدت معاهده وسوه (٤ جنوری ۱۹۵۰م، ۱٤ جدي ۱۳۲۸ش).

افغانستان د چین د خلکو حکومت په رسمیت وپیژانده (۱۳ جنوري ۱۹۵۰ جدي ۱۳۲۸ش).

سلطان احمد خان افغاني لوی سفیر خپله اعتماد نامه په مسکو کي د شوروی اتحاد مشر ته وړاندي کړه (۲٦ جنوری ۱۳۵۰م دلو ۱۳۲۸ش).

د افغانستان پادشاه په رسمي میلمستیا مصر ته ولاړ (۸ مارچ ۱۹۵۰م، حوت ۱۳۲۸).

د منهاج سراج جوزجاني د طبقات ناصري کامله نسخه د عبدالحي حبیبي په تعلیق او تحشیه په لاهور او کوټه کي سنګي چاپ سوه. دوهمه طبع ئې له کابله دوه ټوکه او مکمله ۱۹٦۳، ۱۹٦٤م.

د ۱۳۲۸ش کال دولتي واردات ۳۲۹ ملیونه مصارف ۳۳٦ ملیونه او کسر اوه ملیونه افغاني و.

په ۱۳۲۸ش کال په ۳۲۸ مکتبو کي ۹۵،۹۸۲ زده کونکي او ۲۸۳۳ ښوونکي وو.

په دغه کال ګرده د قره قلي صادرات ۱،٦۵٦،٦۱٦ پوسته په ۱۰،٤۳۷،۲۳۷ ډالره وه.

په دغه کال مالیه وزارت ته د مالګي عایدات ۲،۰۲۷،۹۲۰ او د ډبرینو سکرو ۱،۱٦۰،۹۸۷ افغاني او د کابل د سینماګانو عایدات ۱،٦۵۵،۸۸۷ افغاني او د دولتي املاکو عایدات ۱،٦۵٤،۳۸۹ افغاني او د ګمرک محصول ۱۳۵،۹۲۲،۸۸۵ افغاني وې. او افغانستان ته ګرده ۲،۹٦۵،۹۰۷ ګیلنه پټرول راوړل سوي وو.

د افغانستان بانک دارائي:

طلا ۵۱۲،۵۸٤،۹۵۵

نقره ٦٤،۵٦۸،۲۸۵

خارجه اسعار ۱٤۱،۷۸۳،۷۲۱

دولتي نوټ ۱۷۵،۹۳۷،۱۳۵

مسکوک ۱،۳۸٦،۹۷۳

بانکي نوټ ۸۵،۳۹٦،۷۲۵
گرده ۹۸۱،٦۵۷،٦۸٤ افغاني
د افغانستان بودجه:
د مځکي او څاروو مالیه ۱۱٤ ملیونه
د گمرک محصول ۱۵۰ ملیونه
پر عایداتو مالیات ۳۵ ملیونه
د بانکو گټې ۱۵ ملیونه
دولتي انحصارات ۱٦ ملیونه
کانونه او متفرقات ٦۰ ملیونه
گرده عایدات ۳۹۰ ملیونه
مصارف هم دغوني دي.
د افغانستان د بریښنا د پیداینبت اندازه:
د جبل سراج اوبه ۱۰۰۰ کیلوواټه
د چک وردک اوبه ۳۳۰۰ کیلوواټه
د هرات اوبه ۹۰ کیلوواټه
ډیزلي ۱۵۰ کیلوواټه
د پغمان ۵۰ کیلوواټه
د پل خمري ٤۸۰۰ کیلوواټه
د سروبي ۲٤،۰۰۰ کیلوواټه
ټوله تخمیني د بریښنا قوه ۳٤ زره کیلوواټه
د افغانستان صادرات خارج ته:
وچه میوه ٤۰ زره ټونه قیمت ۱۲۵ ملیونه افغاني
لنده میوه ۱۵ زره ټونه قیمت ٤۰ ملیونه افغاني
عقاقیر او لرگي ۱۵ زره ټونه قیمت ٤۰ ملیونه افغاني
پنبه ۱۲ زره ټونه قیمت ۱۲ ملیونه افغاني.
قره قلي او نور پوستونه ۲ ملیونه قیمت ۲۵۰ ملیونه افغاني.
وړي ۸ زره ټونه قیمت ٤۰ ملیونه افغاني.
غالي ٦۰ زره متره مربع قیمت ۷ ملیونه افغاني.
نور مواد، کولمې، کمبلي، پوستین، څرمن ۵ ملیونه افغاني.
اودلي شیان شل ملیونه افغاني.
گرده صادرات: یو لک ټونه او تخمیني قیمت ئې ۵۵۰ ملیونه افغاني.
د افغانستان د مځکي له ۳۰۰،۰۰۰ مربع میل څخه فقط پنځمه برخه آبي یا للمي کرل کیږي چه له هغه څخه ۱۹۱،۰۰۰ټونه غنم، ۱۲۸،۰۰۰ وربشی، ۳٤۷،۰۰۰ جوار، ۲۵،۰۰۰ پنبه، ۳۵،۰۰۰ قندي لبلبو، ۲۵،۰۰۰ ورجي ۱۸۹،۰۰۰ حبوبات، ۱۰۰،۰۰۰ ټونه میوې اخیسته کیږي.
د افغانستان واردات لکه کالي، بوره، چاي، دواوي، دخانیات، ماشینونه، موټرونه، د بریښنا سامان، د وداني لوازم، لوښي، فلزات او نور تر ۳۰ زره ټونه.
څلور ملیونه گیلنه تیل.
ټول ۵۰۰ تر ٦۰۰ ملیونه افغاني دکاني او مصنوعي مالگي پیداینبت ۱۵ زره ټونه په لس ملیونه افغاني، کاني سکاره لس زره ټونه په لس ملیونه افغاني.
د افغانستان بانک سرمایه ۱،۱۸٦ ملیونه.
د کاغذي نوټ خپرونه ۸٤۵.
د نیو یارک په ریزرو بانک کي پشتوانه ۹۳۷،۷٦۷ اونس طلا، د کابل په خزانه کي

۵،۱۸۰،٦۵۰ گرامه.

بې سکې طلا او مسکوکه طلا ۱۸٦،۹٤۵ او ٦٤،۵٦۷,۰۰۰ مسکوکه نقره.

د ريزرو بانک د طلا قهمت:

۵۱۲،۵٦٤،۷۳۵ افغاني (د افغانستان بانک رسمی راپورټ ۱۳۲۸ش).

په ۱۳۲۸ش کال د افغانستان نفوس ۱۲ مليونه تخمين سوی دئ.

په ۱۳۲۸ کال دغه اصولنامې خپرې سوي:

۱ د نکاح او سنتي او واده اصولنامه ۸ حمل.

۲ـ د پاتا مراسم ۲۸ حمل.

۳ـ د صنايعو د تشويق اصولنامه ۳۰ حمل.

**۱۹۵۰م ۱۳۲۹ش ۱۳۷۱ق**

د افغانستان پادشاه په رسمي ميلمستيا ايران ته ولاړ (۲۷ مارچ، ۷ حمل ۱۳۲۹ش).

د افغانستان حکومت وغوښتل چې د پاکستان د لوی سفارت غړی دي د دې ځاي قوانين نه ماتوي (۲٦ مارچ ۱۹۵۰، ٦ حمل ۱۳۲۹ش).

د افغانستان او شوروي د اجناسو د مبادلې موافقت نامه ١٤ مادې امضاء سوه (۱۷ جولايي ۱۹۵۰م، سرطان ۱۳۲۹ش).

د متحدو ملتو د تخنيکي امداد ډله کابل ته راغله چې په انکشافي پلانو کي مشوره ورکي (۲۲ جون ۱۹۵۰م، سرطان ۱۳۲۹ش).

جون ۱۹۵۰ـاپريل ۱۹۵۲م، جوزا ۱۳۲۹-۱۳۳۱ش د قندهار په شمال شرقي ٤۰ کيلومتري دهله کي د ارغنداو پر رود يو ډم جوړ سو. لوړتيا ۵۰ متره، اوږد والي ۵۳۰ متره، پسور ۱۰ متره، ظرفيت يو مليون جريب مکعب. د ډم نس ۲۵،۳۰۰ جريب، د ډم د اوبو اوږد والي ۱۸ کيلو متره، پسور يې اوسط ۲ کيلو متره، مځکه تر اوبو لاندی ٤۸۰،۰۰۰ حريبه، د بريښنا قوه ٦٤۰۰ کيلوواته.

د يونسف سره د سلو زرو ډالرو د امداد قرار داد د کوچنيانو د مړيني د لږولو لپاره (۱۱ جولايي ۱۹۵۰م، سرطان ۱۳۲۹ش).

د افغانستان او اتحاد شوروي د څلورو کالو تجارتي قرار داد (۱۸ جولايي، ۵ سرطان ۱۳۲۹ش).

د افغانستان او شرق اردن د مؤدت معاهده (۲ ستمبر ۱۹۵۰م، ۱۰ سنبله ۱۳۲۹ش).

د افغانستان او لبنان د مؤدت معاهده (٦ ستمبر ۱۹۵۰م، ١٤ سنبله ۱۳۲۹ش).

د افغانستان او سوريه د مؤدت معاهده (۱۲ اکتوبر ۱۹۵۰م، ۱۹ميزان ۱۳۲۹ش).

د سردار شاه محمود خان نوې کابينه داسي اعلان سوه (١٤ اکتوبر، ۵ ميزان ۱۳۲۹ش):

ښاغلی محمد داؤد د حرب وزير، علی محمد خارجه وزير، عبدالحد داخله وزير، محمد نوروز ماليه وزير، مير سيد قاسم عدليه وزير، عبدالمجيد د معارفو وزير، مير محمد حيدر د ملي اقتصاد وزير، غلام فاروق صحيه وزير، محمد اکرم د فوايد عامه وزير، محمد نعيم د کانو وزير.

له افغانستانه يهود اسراييل ته لاړل (اکتوبر ۱۹۵۰، ميزان ۱۳۲۹ش).

افغانستان د پاکستان دا تور رد کي چه په ۳۰ ستمبر د دې ځاي قبايلي يا عسکري خلك تر سرحداتو تير سويدي (۲٤ اکتوبر ۱۹۵۰، عقرب ۱۳۲۹ش).

له اوو منارو څخه چي د هرات په مصلا کي پاته وي يو ونړيده (چهار شنبه ۱۸ دلو ۱۳۲۹ش).

**۱۹۵۱م ۱۳۲۹ش ۱۳۷۲ق**

د امريکا د متحده ايالاتو سره د تخنيکي مرستي قرار داد (۹ فروري ۱۹۵۱م، حوت ۱۳۲۹ش).

جارج ميريل د امريکا لوی سفير کابل ته وټاکل سو (۱۹ مارچ ۱۹۵۱م، ۲۸ حوت ۱۳۲۹ش).

د ۱۳۲۹ ش کال دولتي واردات ۳۹۷ مليونه مصارف هم دغوني و.

په ۱۳۲۹ش کال په ۳۳٤ ښونځو کي ۹۹،۷۸۸ زده کونکي او ۳۰۰۷ ښوونکي وو.

په دغه کال کي گرده ماليات بر عايدات ۲٤۹ مليونه وه. د مځکو ماليه ۲۸،٤۲٦،۱۷۹، د مواشي ماليه ۲۸،٤۷۱،۲۷۲، اصنافي ماليه ٤۲۸،۰۲٦ او گرده ماليه ۵۷،۳۲۵،٤۷۸ افغاني وه.

د افغانستان بانک دارايي ۱۳۲۹ش:
طلا ۵۱۲،۵۰۲،۸۱٤ افغاني
نقره ٦٤،٦۰۳،۲۸۵ افغاني
خارجه اسعار ۳۵٦،۱۳۱،۹۵۲ افغاني.
دولتي نوټ: ۱۷۵،۹۸۰،۹۰۲ افغاني.
مسکوک ۱،۳۲٤،۵۵۲ افغاني.
بانکي نوټ ۷۱،۵۱۷،۸۱۵ افغاني.
گرده ۱،۱۸۲،۰٦۲،۳۲۰ افغاني
د افغانستان بانک مفاد ٤۲،۱۰۷،۲۰٦ افغاني.

د اسعارو قيمتونه ۱۳۲۹ ش.

سل ډالره په رسمي قيمت ۱٦۷۵ افغاني، په آزاد قيمت ۲۰۹۵ افغاني.

سل هندي کلداري قيمت ۳۵۱ افغاني، په آزاد قيمت ٤۳۹ افغاني.

سل پاکستاني کلداري قيمت ۵۰٦ افغاني، په آزاد قيمت ٦۳۳ افغاني.

سل سويسي فرانکه قيمت ۳۸۷ افغاني، په آزاد قيمت ٤۸٤ افغاني.

**۱۹۵۱م ۱۳۳۰ش ۱۳۷۲ق**

سردار شاه محمود خان صدر اعظم امريکا ته په رسمی ميلمستيا ولاړ (۲۵ اپريل ۱۹۵۱م، ثور ۱۳۳۰ش).

د ملل متحده کومک د شمال د نفتو د کشف لپاره (۲۸ مئي ۱۹۵۱م، جوزا ۱۳۳۰ش).

**۱۹۵۲م ۱۳۳۰-۳۱ش**

صوفي عبدالحق بيتاب د عبدالاحد عطار زوی ته چي په ۱۳۰٦ق د کابل په قصاب کوچه کي زيږيدلي و د ملک الشعراء لقب ورکړ سو (۱۸ دلو ۱۳۳۰ش).

سيد صديق گوهري د مزار شريف د سيد عثمان زوی شاعر او خطاط او نقشبندي صوفي ٦۸ کلن په مدينه کي وفات او په جنت البقيع کي ښخ سو (۱۳۳۰ش)

د افغانستان د پنبې توليدات چې پخوا شپږ زره ټنه وو اوس ۱۳ زره ټنو ته ورسيده.

د ۱۳۳۰ش کال واردات او مصارف ۳۸۸ مليونه افغاني وې.

په ۱۳۳۰ش کال په ۳۹۷ نارينه مکتبو او ۱۱ د نجونو مکتبو کې ۹۳،۳۶۷ متعلمان او ۵۳۷۱ متعلمات او ۲۸۷۸ معلمان او ۲۵۰ معلمات وو.

د ۱۳۳۰ کال تر پايه د افغانستان د قره قلی صادرات ۹۲۱،۶۶۳ پوسته.

د پنبې صادرات ۵۰۰ ټنه شوروي اتحاد ته، ۱۵۰۰ ټنه هند ته، ۱۰۰۰ ټنه جرمني ته.

**۱۹۵۲م ۱۳۳۱ش ۱۳۷۳ق**

افغانستان د اتحاد شوروي هغه نوټه رد کړه چې گوندی د ملل متحده د تخنيکي امداد متخصصان د شوروي سرحدو ته نږدې کوم فعاليتونه کوي (۲۳ ستمبر ۱۹۵۲م، ميزان ۱۳۳۱ش).

**۱۹۵۳م ۱۳۳۱ش ۱۳۷۳ق**

امريکا د غنمو رانيولو لپاره يو نيم مليون ډالره پور افغانستان ته ورکي (۸ جنوري ۱۳۵۳م, جدي ۱۳۳۱ش).

د هند سره هوايي موافقه نامه وسوه (٦ب دلو ۱۳۳۱ش).

سلطان احمد خان خارجه وزير مقرر سو او علی محمد خان يوازی د صدارت معاون پاته سو (۱۸ مارچ ۱۳۵۳م, حوت ۱۳۳۱ش).

د ۱۳۳۱ش کال دولتي واردات ٥٢٦ مليونه مصارف ٥٣٥ مليونه افغاني کسر ۹ مليونه افغاني.

په ۱۳۳۱ش کال د نارينه وو ښونځي ٥٢٨ د ښځو ښونځي ۱۷ وو. چې په دغو کي ۹۹،٦۲۲ تنه هلکان او ٦٢٦٣ نجوني وې، معلمان ۳۰٦٤ تنه وو ښځي ښونکي يی ۲۸۷ تني وې.

**۱۹۵۳م ۱۳۳۲ش ۱۳۷٤ق**

سردار شاه محمود خان د ناروغی په سبب له صدارته استعفا وکړه او ښاغلی محمد داؤد ته د کابينې جوړولو فرمان صادر سو (٦ ستمبر ۱۹۵۳م، سنبله ۱۳۳۲ش).

ښاغلی محمد داؤد خپله کابينه داسي اعلان کړه:

علی محمد د صدارت عظمی معاون، محمد عارف د دفاع وزير، سردار محمد نعيم خارجه وزير، عبدالملک د ماليه وزير کفيل، عبدالحکيم د فوايد عامه وزير، عبدالمجيد د معارفو وزير، غلام فاروق صحيه وزير، محمد يوسف د کانو وزير، شمس الدين مجروح د قبايلو مستقل رئيس، مير محمد يوسف د زراعت مستقل رئيس، صلاح الدين سلجوقي د مطبوعاتو مستقل رئيس.

سردار محمد هاشم خان چې له ۱۹۲۹ څخه تر ۱۹٤٦م پوري صدر اعظم و، په کابل کي وفات سو (۲٦ اکتوبر ۱۹۵۳م، ۳ عقرب ۱۳۳۲ش).

د امريکا د صادراتو-وارداتو بانک اتلس نيم مليونه ډالره د هلمند د سيم د انکشاف لپاره پور افغانستان ته ورکئ (نومبر ۱۹۵۳م، قوس

۱۳۳۲ش).
ښاغلی محمد داؤد صدر اعظم پاکستان ته د امريکا عسکري امداد د افغانستان د روغی او د ساتني لپاره خطر ناک وګڼه (۳۰ دسمبر ۱۹۵۳م، جدي ۱۳۳۲ش).
د هلمند پر رود د کجکي لوی ډم جوړ سو (۱۹۵۳م، ۱۳۳۲ش، ۱۳۷۳ق).
ظرفيت ئې۶،۳۰۰،۰۰۰ جريب مکعب.
لوړتيا ۱۰۰ متره.
پنډ والي: لوړ ۱۰ متره، کښته ۲۰ متره.
د ډم نس ۶۰،۰۰۰ جريبه.
د اوبو اوږد والي ۵۸ کيلو متره.
تر اوبو لاندي مځکي ۵۵۰،۰۰۰ ايکړه.
ميرزا مير اقا حسيني هروي خطاط د مير محمد کاظم زوی په هرات کي وفات سو (۲۲ سرطان ۱۳۳۲ش).
د پل خمری کار خانې د ۱۵ زرو دوکو نوی ماشينونه پر کار سوه.
د ګل بهار د اودلو کارخانه چه ۱۸۰۰ دستګاه هونه او ۶۰ زره دوکه لري او د کاله ۵۸۵۰ ټنه سپېنسی وريشي بشپړه سوه (اپريل ۱۹۵۳م، حمل ۱۳۳۲ش).

**۱۹۵۴م ۱۳۳۳ش ۱۳۷۴ق**

افغانستان د آسيا لپاره د متحده ملتو د اقتصادي کمسيون غړی سو (۲۰ اپريل ۱۹۵۴م، ثور ۱۳۳۳ش).
هاشم شايق د محمد يعقوب بخاری زوی د بخارا پخوانی سفير په کابل کي وفات او ښخ سو (چهار شنبه ۱۵ ستمبر ۱۹۵۴، سنبله ۱۳۳۳ش).
ښاغلی محمد نعيم خارجه وزير کراچي ته ولاړ، چي د افغانستان او پاکستان پر روابطو خبري وکي (۱۷ ستمبر ۱۹۵٤م، سنبله ۱۳۳۳ش).
ښاغلی محمد نعيم خارجه وزير په يوي هفتې رسمي ميلمستيا سعوی عرب ته ورسيدي (۲۸ اکتوبر ۱۹۵٤م)
ښاغلي محمد نعيم خارجه وزير اعلان وکي چي د پښتونستان مسئله د سيمی نيولو خبره نده، بلکه غواړو چي د هغه ځاي پښتنو ته موقع ورکړ سي چي خپل خواهشونه ښکاره کړاي سي (۷ نومبر ۱۹۵٤م، عقرب ۱۳۳۳ش).
د افغانستان او يوګوسلاويا د مؤدت معاهده (۳۰ دسمبر ۱۹۵٤م، ۸ جدی ۱۳۳۳ش).

**۱۹۵۵م ۱۳۳۳ش ۱۳۷۵ق**

دمخنی صدر اعظم سردار شاه محمود غازي د پاکستان د صدر اعظم سره وليدل (۱٤ جنوري ۱۹۵۵م، جدي ۱۳۳۳ش).
افغانستان او د چين د خلکو جمهوريت خپل سياسي روابط د لويو سفارتو په ټاکنه ومنل (۱۹ جنوری ۱۹۵۵م، جدي ۱۳۳۳ش).
د مشرانو په جرګه کي د افغانستان د عسکری تقويت تصويب ومنل سو (۲۵ جنوری ۱۹۵۵م، جدي ۱۳۳۳ش).
د افغانستان د دايرة المعارف ټولني يو ټوک د افغانستان په نامه خپور کئ چي عمومي معلومات لری.
له چکوسلوکيا څخه يوه د سمټو کارخانه را

نيول سوه (۱۵ فبروري ۱۹۵۵م، دلو ۱۳۳۳ش).

چاپان د قندوز د چيني جوړولو په کارخانه کي د سرمايې ورکولو موافقه وکړه (۲۵ فروری ۱۹۵۵م، دلو ۱۳۳۳ش).

د ۱۳۳۳ش کال دولتي واردات ۱٤٤۱مليونه او مصارف ۱۱٤۱ مليونه او سپما ۳۲۷ مليونه افغاني وې.

د ۱۳۳۳ش کال پوهنشمير: ۷۷۰ د نرو ښونځي، ۲۱ د نجونو ښونځي. نارينه زده کونکي ۱۰٦،۲۷۰، نجوني زده کونکي ۸٦۷۸، نارينه ښونکي ۳٤۷۵، ښځي ښوونکي ۲٦۸.

**۱۹۵۵م ۱۳۳٤ش ۱۳۷۵ق**

ښاغلي محمد داؤد صدر اعظم پاکستان ته اخطار ورکړ چي په غربي پاکستان کي د پښتونستان د سيمو ګډول ناوړي نتيجې لري ۲۹ مارچ ۱۹۵۵م، ۸ حمل ۱۳۳٤ش).

په کابل کي مظاهره کونکو د پاکستان د سفارت او د سفير د ټاتوبي سره مظاهره وکړه. (۳۰ مارچ ۱۹۵۵م، ۹ حمل ۱۳۳٤ش).

په قندهار کي د پاکستان د قونسل خانې سره مظاهرې وسوې (۳۱ مارچ ۱۹۵۵م، ۱۰ حمل ۱۳۳٤ش).

په پيښور کي پر افغان قونسل خانه باندي حمله وسوه (۱ اپريل ۱۹۵۵، حمل ۱۳۳٤ش).

په جلال آباد کي د پاکستان د قونسل خانې سره مظاهرې وسوې (۱ اپريل ۱۹۵۵م، حمل ۱۳۳٤ش).

انګريز، ترکي، امريکا په کابل کي د پاکستان د سفارت سره پر مظاهرو تشويش ښکاره کړ (٤ اپريل ۱۹۵۵م، حمل ۱۳۳٤ش).

پاکستان د افغانستان د حکومت جواب و نه مانه، او د ديپلوماتانو کورني ئې له کابله وايستې. په جلال آباد کي خپله قونسلګری وتړله (۱٦ اپريل ۱۹۵۵م، حمل ۱۳۳٤ش).

وزير خارجه ښاغلی محمد نعيم د بندونګ کنفرانس ته ولاړ (۱۸ اپريل ۱۹۵۵م، حمل ۱۳۳٤ش).

د افغانستان او اندونيزيا د مؤدت تړون لاس ليک سو (۲٤ اپريل ۱۹۵۵، ثور ۱۳۳٤ش).

جمال عبدالناصر د مصر لوی مشر په رسمي ميلمستيا کابل ته راغی (۲۹ اپريل ۱۹۵۵م، ثور ۱۳۳٤ش).

افغانستان موافقه وکړه که په پيښور کي د افغاني بيرق د سپکاوي تلافي وسي نو به په کابل کي د پاکستان د بيرق د سپکاوي تلافي وسي او د سفارت د تلفاتو عوض به ورکړه سي (۲۹ اپريل ۱۹۵۵م، ثور ۱۳۳٤ش).

افغانستان پاکستان د هغو اموالو د تاوان مسؤول وګاڼه کوم چي د پيښور يا کوټي له لاري راځي (۱٤ مي ۱۹۵۵م ثور ۱۳۳٤ش).

پاکستان خپلي قونسل خانې په افغانستان کي وتړلې او خواهش ئې وکړ چي افغانستان دی هم خپلي قونسل خانې په پاکستان کي بندي کي (اپريل ۱۹۵۵، ثور ۱۳۳٤ش).

په افغانستان کي د عسکرو د تيار سئ امر صادر سو (۱٤ مي ۱۹۵۵م، ثور ۱۳۳٤ش).

افغانستان او پاکستان د سعودی عرب بوګاڼښ (منځګړی) ومنله (۱۳ می ۱۹۵۵م، ثور ۱۳۳٤ش).

د شوروي اتحاد سره د پنځو کالو موافقه وسوه چي دواړه مملکتونه دي خپل اموال دوړ یا ترانزيټ په ډول د يوه بل په مملکت کي وړي راوړي. (۲۱ جون ۱۹۵۵، جوزا ۱۳۳٤ش).

د افغانستان او شوروي د ترانزيت موافقه نامه ۸ مادې په مسکو کي امضا سوه (۸ جون ۱۹۵۵م، سرطان ۱۳۳٤ش).

د سعودی عرب منځګړی د خپل تجويز ناکامي اعلان کړه (۲۸ جون ۱۹۵۵م، سرطان ۱۳۳٤ش).

د چين د خلکو د حکومت لوی سفير تين-کوو-يو خپله اعتماد نامه په کابل کي وړاندی کړه (۵ جولائي ۱۹۵۵م، سرطان ۱۳۳٤ش).

افغانستان د بين المللي بانک غړی سو (۱٤ جولائي ۱۹۵۵م، سرطان ۱۳۳٤ش).

په افغانستان کي د تيارسۍ او اضطرار حالت ختم سو (۲۸ جولائي ۱۹۵۵م، اسد ۱۳۳٤ش).

د افغانستان او شوروي د پستي اتحاد موافقه (۱٤ اګست ۱۹۵۵م، اسد ۱۳۳٤ش).

هندوستان د کوټا طيارې افغانستان ته را واردوي (۱۷ اګست ۱۹۵۵م، اسد ۱۳٤٤ش).

د پاکستان پر لوی سفارت د هغه دولت بيرق بيرته په کابل کي ورپول سو (۱۳ ستمبر ۱۹۵۵م، سنبله ۱۳۳٤ش).

د جلال آباد د پاکستان پر قونسل ګری د هغه دولت بيرق بيرته جګ سو (۱٤ ستمبر ۱۹۵۵، سنبله ۱۳۳٤ش).

د پيښور د افغان پر قونسلګري بيا د افغانستان بيرق ودرول سو (۱۵ ستمبر ۱۹۵۵م، سنبله ۱۳۳٤ش).

افغانستان په پاکستان کي د يوه يونټ جوړولو سره مخالفت وکړ خو پاکستان و نه مانه. (۱۱ اکتوبر ۱۹۵۵م، ميزان ۱۳۳٤ش).

افغانستان خپل لوی سفير له کراچي څخه را وغوښت او سياسي روابط ئې ور سره پرې کړه (۱۷ اکتوبر ۱۹۵۵م، ميزان ۱۳۳٤ش).

پاکستان هم خپل لوی سفير له کابله وغوښت (۱۸ اکتوبر ۱۹۵۵م، ميزان ۱۳۳٤ش).

افغانستان پر پاکستان پروټسټ وکړ چي ولی د افغانستان ترانزيت مالونه ته زيات اړيکي اچوي (۸ نومبر ۱۹۵۵م، عقرب ۱۳۳٤ش).

په کابل کي لويه جرګه جوړه سوه چي پس له پنځو ورځو خبرو يې د پښتونستان د خلکو څخه راي اخيستنه وغوښته چي خپل مقررات پخپله فيصله کي. جرګې وغوښتل چي حکومت بايد د پاکستان سره د قوت تعادل چي د امريکا وسله ئې اخيستې ده وساتي او پښتونستان د پاکستان يو ټوک و نه پيژني (۲۰ نومبر ۱۹۵۵م، عقرب ۱۳۳٤ش).

فاطمه د ښځو د مکتب لومړی معلمه او شاعره په کابل کي وفات سوه (جمعه ۱۱ عقرب ۱۳۳٤ش، ولادت ئې په بالاحصار کي ۱۲۸۸ق).

د دفاع وزير محمد عارف استعفا وکړه (٦ دسمبر ١٩٥٥، قوس ١٣٣٤ش).

د شوروی دولت مارشال ورشيلوف کابل ته راغی (١٨ دسمبر ١٩٥٥، قوس ١٣٣٤ش).

د اتحاد شوروی مشر وزير بلگانين او د کمونسټ پارټي سکرتر خروشچيف په رسمي ميلمستيا کابل ته راغلل (١٥-١٨ دسمبر ١٩٥٥م، قوس ١٣٣٤ش).

اتحاد جماهير شوروی د پښتونستان په باب د افغانستان موقف تاييد کړ (١٦ دسمبر ١٩٥٥م، قوس ١٣٣٤ش).

د افغانستان او اتحاد شوروي درې تړونونه امضا سوه (١٨ دسمبر ١٩٥٥، قوس ١٣٣٤ش).

١ـ د سلو مليونو پور تړون.

٢ـ د ١٩٣١م د بيطرفي او عدم تعرض د تړون تجديد.

٣ـ د خارجي سياست د اصولو توضيح چي د افغانستان بيطرفي قوی کوي.

د امريکا حکومت وغوښتل چي د افغانستان او پاکستان تر منځ د پښتونستان په شخړه کي د منځگړی بوگاښ وکي (٢١ دسمبر ١٩٥٥، قوس ١٣٣٤ش).

**١٩٥٦م ١٣٣٤ش ١٣٧٦ق**

د پاکستان په غوښتنه د افغانستان قونسل له کوټې څخه کابل ته را ستون سو او دغسی هم د پاکستان عسکری اتاشه له کابله وغوښت سو (٨ جنوری ١٩٥٦م، جدی ١٣٣٤ش).

په ١٣٣٤ش کال ټول دولتي واردات ١٣٠١ مليونه افغانی او مصارف همدغونی و.

د ١٣٣٤ش پوهنشمير: ٧٥٠ د نرو ښوونځی، ٢٣ د نجونو ښونځی. ١١١،١٢١ تنه هلکان، ٩٩٦٩ نجوني، ٣٥٨٤ نر ښوونگي، ٣٢٩ ښځي ښوونکي.

**١٩٥٦م ١٣٣٥ش ١٣٧٥ق**

د افغانستان او شوروي اتحاد د هوايي سرويس موافقه لس مادې په کابل کي امضا سوه (٢٤ مارچ ١٩٥٦م، ٤ حمل ١٣٣٥ش).

افغانستان د سيتو دغه ادعا رسماً رد کړه چي ډيورنډ لين د افغانستان او پاکستان سرحد دئ (٢٦ مارچ ١٩٥٦م، ٦ حمل ١٣٣٥ش).

د اتازوني (امريکا) د بين المللي همکاری اداري ٩٩٧ زره ډالره د کولمبيا د پوهنتون دار المعلمين ته ورکړه چه د انگريزی ژبي پروگرامونه د افغانستان په متوسط مکتبو کي تقويه کی او د انگريزی معلمان په وروزی (٣١ مارچ ١٩٥٦م، ١١ حمل ١٣٣٥ش).

د شوروی اتحاد له خوا د کابل ښاروالی ته ١٥ بسونه او د سل بستره شفاخانې اسباب اهداء سو (٣١ مارچ ١٩٥٦م، حمل ١٣٣٥ش).

خليفه قزل اياق نقشبدني پير د شبرغان په قزل آياق کي ٩٦ کلن وفات سو (٢١ حمل ١٣٣٥ش، ٢٩ شعبان ١٣٧٥ق، تولد ئې په کرکي کي ١٢٧٩ق). راتگ ئې له بخارا څخه افغانستان ته ١٣٣٨ق.

د افغانستان عسکري هيئت چکوسلواکيا ته ولاړ (٤-١٨ اپريل ١٩٥٦م، حمل ١٣٣٥ش).

د افغانستان او پاکستان هوائي موافقه

امضا سوه، چي د کراچي له لوری اروپا ته سفر وسي (۷ مئي ۱۹۵٦م، ثور ۱۳۳۵ش).

د افغانستان د ملکی هوا بازي لپاره ۱٤ مليونو پور موافقه له اتازوني سره وسوه (۲۷ جون ۱۹۵٦م، جوزا ۱۳۳۵ش).

د ترکو صدر اعظم عدنان مندرس په رسمی ميلمستيا کابل ته راغئ (۲٦-۳۰ جولايي ۱۹۵٦م، اسد ۱۳۳۵ش).

د ننگرهار د اوبو لگولو پروژه اتحاد جماهير شوروی پر خپله غاړه واخيسته (۲٦ جولايي ۱۹۵٦م، اسد ۱۳۳۵ش).

د افغانستان او پولينډ تجارتي قرار داد (٤ اگست ۱۹۵٦م، اسد ۱۳۳۵ش).

د پاکستان صدراعظم اسکندر ميرزا کابل ته راغئ (۷-۱۱ اگست ۱۹۵٦م، اسد ۱۳۳۵ش).

ښاغلی محمد داؤد صدر اعظم د عسکري وسلو رانيولو موافقه نامه له چيکوسلواکيا او شوروي اتحاد سره اعلان کړه (۲۵ اگست ۱۹۵٦م، سنبله ۱۳۳۵ش).

د پان امريکن سره موافقه وسوه چه له ۱٤ مليونو ډالرو پور څخه په دوه نيم مليونه پيلوټان او د ملکي هوايي ميدانو کار کونکی وروزي، او په ۵ مليونه به د قندهار هوايي ډگر جوړوي (۱۲ ستمبر ۱۹۵٦م، سنبله ۱۳۳۵ش).

د ايران سره هوايي تک راتگ شرو سو (۲٤ ستمبر ۱۹۵٦م، ميزان ۱۳۳۵ش).

له شوروي اتحاد او چکوسلواکيا څخه لومړي جوپه وسله را ورسيده (۲۷ ستمبر ۱۹۵٦م، ميزان ۱۳۳۵ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم شوروي اتحاد ته ولاړ (۱۷-۳۰ ستمبر ۱۹۵٦م، ميزان ۱۳۳۵ش).

يوولس جټ طيارې د شوروي اتحاد له خوا د افغانستان هوايي قواو ته ورسيدې (۲۸ اکتوبر ۱۹۵٦م، عقرب ۱۳۳۵ش).

د افغانستان حکومت د ملل متحد توجه را وگرزوله چي د اسرائيل، برتانيا، فرانس حمله پر کانال سويز باندی د ملل متحد د منشور مخالفت دی (۵ نومبر ۱۹۵٦م، ۱٦ عقرب ۱۳۳۵ش).

د افغانستان او برما د مؤدت تړون (۸ نوبر ۱۹۵٦م، ۱٦ عقرب ۱۳۳۵ش).

جنرال محمد عمر په هند کي د افغانستان لوی سفير سو (۱۰ نومبر ۱۹۵٦م، عقرب ۱۳۳۵ش).

افغانستان د سويز کانال لپاره د ملل متحده په پوليسی قواوو کي خپله برخه وړاندی کول ومنله (۱٦ نومبر ۱۹۵٦م، عقرب ۱۳۳۵ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم په کراچي کي د پاکستان له مشرانو سره پر پښتونستان باندی خبري وکړې (۲ دسمبر ۱۹۵٦م، قوس ۱۳۳۵ش).

## ۱۹۵۷م ۱۳۳۵ش ۱۳۷۷ق

د اتحاد شوروي سره تجارتي پروتوکول امضا سو (۸ جنوری ۱۹۵۷، جدی ۱۳۳۵ش).

چاو-ان-لاي د چين د خلکو د جمهوريت صدراعظم افغانستان ته راغئ (۱۹-۲۳ جنوری ۱۹۵۷م، جدی ۱۳۳۵ش).

م-سي ګیلیټ په کابل کي د برتانیا لوي سفیر سو (۲۷ جنوري ۱۹۵۷م، دلو ۱۳۳۵ش).

په کابل پوهنتون کي د اقتصاد د پوهنځی د جوړلولو سپارښت وسو (۳۰ جنوري ۱۹۵۷، دلو ۱۳۳۵ش).

د افیونو د کنترول د موافقت نامې تائید په ملل متحده کي د افغانستان د نماینده له خوا وسو (٤ فروری ۱۹۵۷م، دلو ۱۳۳۵ش).

راډیو مسکو پښتو پروګرام شرو کئ (۱۰ فروری ۱۹۵۷ دلو ۱۳۳۵ش).

د ۱۳۳۵ ش کال دولتی واردات ګرده ۱۸۲۲ ملیونه افغاني او مصارف هم دغوني و.

د ۱۳۳۵ ش کال پوهنشمیر: ۷٤۸ د نرو مکتبونه، ۲٦ د نجونو مکتبونه، ۱۱٤،۹٦۷ هلکان، ۱۱،۱۲۵ نجوني، ۳۵۹۰ معلمان، ۳۷٤ معلمات.

په ۱۳۳۵ش کال د افغانستان تجارتي صادرات ۲۰۷۹ ملیونه او واردات ۲۳۰۷ ملیونه وه.

**۱۹۵۷م ۱۳۳٦ش ۱۳۷۷ق**

د امریکا د میانه شرق خاص لوی سفیر جیمز ریجارډ کابل ته راغی او یوه مشترکه اعلامیه خپره سوه چي افغانستان د ایزنهاور اقتصادی پروګرام د منځنی شرق لپاره په خوښی منی (۳۱ مارچ ۱۹۵۷م، حمل ۱۳۳٦ش).

ښاغلی محمد داؤد صدر اعظم ترکیې او چکوسلواکیا او پولینډ او استریا او مصر ته ولاړ (۱٤ اپریل تر ۱۹ مئی ۱۹۵۷م، حمل-ثور ۱۳۳٦ش).

ښاغلی محمد نعیم خارجه وزیر ترکیې او پاکستان ته ولاړ (۱٤-۲۹ اپریل ۱۹۵۷م، حمل ۱۳۳٦ش).

له چکوسلواکیا سره د امداد د زیاتوب موافقه وسوه (۲۷ اپریل ۱۹۵۷م، حمل ۱۳۳٦ش).

د پاکستان صدر اعظم سهروردي کابل ته راغی، دواړو مملکتو د سیاسي روابطو د بیا نښلولو موافقه سره وکړه، د ۱۹۵۵ په اکتوبر کي سیاسي روابط سره شلیدلی وو (۸-۱۱ جون ۱۹۵۷م، جوزا ۱۳۳٦ش).

افغانستان د اتومیک انرجي د بین المللی اختیار اصول ومنل (۱۵ جون ۱۹۵۷، جوزا ۱۳۳٦ش).

اتازوني ۵،۷۵۰،۰۰۰ ډالره پور د هلمند د سیمی لپاره او ۲،۸٦۰،۰۰۰ د لاور او د پرسونل روزنی لپاره افغانستان ته ورکي (۳۰ جون ۱۹۵۷م، سرطان ۱۳۳٦ش).

د پاکستان سره هوایي موافقت نامه وسوه (۱ سرطان ۱۳۳٦ش).

عبدالملک وزیر مالیه معزول او بندی سو (۷ جولایي ۱۹۵۷م، اسد ۱۳۳٦ش).

یوه پټه ناکامه د اغتشاش اچولو دسیسه کشف سوه او عاملین یې ونیول سوه (۱۱ جولایي ۱۹۵۷م، اسد ۱۳۳٦ش).

د افغانستان پادشاه د شوروي اتحاد مملکت ته رسمی سفر وکي (۱۷-۳۱ جولایي ۱۹۵۷م، سرطان ۱۳۳٦ش). او په رسمی ګډه اعلامیه کي وویل سوه: چي اتحاد شوروي به د

افغانستان سره د تيلو په تلاښ کي کومک وکي، او هم به د سرحدي شخړو لپاره يو خاص کمسيون وټاکي، او هم به د مشترکو اوبو د استعمال لپاره يوه موافقه سره وکي.

د افغانستان او چين د خلکو د جمهوريت تجارتي قرار داد (۲۸ جولايي ۱۹۵۷م، اسد ۱۳۳٦ش).

په پاريس کي د افغانستان لوی سفير غلام محمد شريف زاده د تجارت وزير سو (۱۰ د اگست ۱۹۵۷م، اسد ۱۳۳٦ش).

ښاغلی محمد نعيم وزير خارجه وويل، چي د وسلې رانيول د موافقت نامې سره سم چي په ۱۹۵٦ کال د شوروي اتحاد سره امضا سوې وه، د ۲۵ مليونو ډالرو وسلې رارسيدلي دي (۳۱ اگست ۱۹۵۷م، سنبله ۱۳۳٦ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم په چين کي خپل سفر شروع کي (۲۲ اکتوبر ۱۹۵۷م، عقرب ۱۳۳٦ش).

د افغانستان او اسپانيا د مؤدت معاهده (۲۸ اکتوبر ۱۹۵۷م، عقرب ۱۳۳٦ش).

اندری گروميکو د جماهير اتحاد شوروي خارجه وزير د افغانستان له استائو سره په مسکو کي د نوی سرحدی موافقت نامې په باب کي خبري وکړې (۲۱ دسمبر ۱۹۵۷، قوس ۱۳۳٦ش).

د سيد قاسم رښتيا تاليف افغان در قرن ۱۹ په کابل کي چاپ سو.

**۱۹۵۸م ۱۳۳٦ش ۱۳۷۸ق**

شوروي اتحاد په افغانستان کي د تيلو سروی ومنله (۸ جنوري ۱۹۵۷م، ۱۸ جدی ۱۳۳٦ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم د اتحاد جماهير شوروي د پيشنهاد تاييد وکي چي د لويو مشرانو کنفرانس دي جوړ سي (۱۱ جنوری ۱۹۵۸م، ۲۱ جدي ۱۳۳٦ش).

د افغانستان او شوروي اتحاد د سرحداتو قرار داد ۵۱ مادې په مسکو کي امضا سو (۱۸ جنوری ۱۹۵۸م، ۲۸ جدي ۱۳۳٦ش).

د افغانستان پادشاه پاکستان ته په رسمي ميلمستيا ولاړ (۱-۵ فروری ۱۹۵۸، دلو ۱۳۳٦ش).

د ترکيې سره هوايي موافقت نامه وسوه (۲۵ دلو ۱۳۳٦ش).

د افغانستان پادشاه د ۲ هفتو په رسمي ميلمستيا هند ته ولاړ (۱۱-۲٦ فبروری ۱۹۵۸م، حوت ۱۳۳٦ش).

د ۱۳۳٦ ش کال دولتي واردات ۲۱۱۳ مليونه افغاني او مصارف همدونی و.

د ۱۳۳٦ کال پوهنشمير: ۸۵۰ د هلکانو مکتبونه، ۱۲۸،۹۸۵ هلکان، ۱۲،۵۷۸ نجوني، ۳۷٦۵ معلمان، ٤۳۱ معلمات.

په ۱۳۳٦ کال د افغانستان صادرات ۲٦٤۸ مليونه او واردات يې ۲٤۱۵ مليونه افغاني وې.

**۱۹۵۸م ۱۳۳۷ش ۱۳۷۸ق**

د عربو د متحده جمهوريت (مصر) سره کلتوری موافقت نامه امضاء سوه (۳۰ مارچ ۱۹۵۸م، حمل ۱۳۳۷ش).

د افغانستان د ملل متحده نماینده په افغانستان کي د افیونو د کرلو او وړلو منع کول اعلان کړل (٦ مى ۱۹۵۸م، ثور ۱۳۳۷ش)

د افغانستان او اتازوني کلتوري موافقت نامه (۲٦ جون ۱۹۵۷م، جوزا ۱۳۳۷ش).

د شوروی اتحاد سره د آمو له اوبو څخه د ګټې اخیستو پروتوکول (۲٦ جون ۱۹۵۸م، جوزا ۱۳۳۷ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم د اتازوني په سفر ولاړ (۳۰ جون ۱۹۵۸م، جوزا ۱۳۳۷ش).

اتازوني موافقه وکړه چي د افغانستان سره له سپین بولدک تر کابله د لویي لاري جوړولو کومک وکي، او هم پاکستان ته ۷،۷۰۸،۰۰۰ ډالره ورکي چه د حمل و نقل لاری د افغانستان خوا ته سمی کړي (۳۰ جون ۱۹۵۸م، جوزا ۱۳۳۷ش).

د مځکي لاري څخه د پاکستان سره د مال راوړلو موافقه (۱۷ جولايي ۱۹۵۸م، سرطان ۱۳۳۷ش).

د اطریش سره هوايي موافقت نامه (۲۰ سرطان ۱۳۳۷).

افغانستان د عراق نوی حکومت په رسمیت وپیژاند (۲٦ جولايي ۱۹۵۸م سرطان ۱۳۳۷ش).

د چکوسلواکیا صدر اعظم کابل ته راغي (۲-۵ ستمبر ۱۰۵۸ سنبله ۱۳۳۷. چکسلواکیا ومنله چي په قندهار کي د تیلفون د مبادلې مرکز جوړ کي (۱۱ ستمبر ۱۹۵۸م، سنبله ۱۳۳۷ش).

د افغانستان د متحده ملتو نماینده دا خبره رد کړه چي ګوندی افغانستان د ایران، ترکیي او پاکستانه سره یو کنفډراسیون جوړوی (۱ اکتوبر ۱۹۵۸م، میزان ۱۳۳۷ش).

د هالینډ سره هوايي موافقت نامه (۲٤ میزان ۱۳۳۷ش).

مارشال وروشیلوف د اتحاد جماهیر شوروي مشر افغانستان ته راغي (۱-۵ اکتوبر ۱۹۵۸م، میزان ۱۳۳۷ش).

د افغانستان تجارتي او د حمل و نقل قرار دادونه د چکوسلواکیا او پولینډ سره نوی سوه (۷ نومبر ۱۹۵۸م، عقرب ۱۳۳۷ش).

د خارجي سرمایه ګذاری قانون نشر سو (۱۸ نومبر ۱۹۵۸م، عقرب ۱۳۳۷ش).

۲ افغانیګي او ۵ افغانیګي سکې چالو سولې (۷ دسمبر ۱۹۵۸م، قوس ۱۳۳۷ش).

**۱۹۵۹م ۱۳۳۷ش ۱۳۷۹ق**

ښاغلی محمد نعیم خارجه وزیر د شوروي اتحاد په سفر ولاړ (۱-٦ جنوري ۱۹۵۹م، جدی ۱۳۳۷ش).

هنری بایروډ په کابل کي د اتازوني لوی سفیر سو (۲۰ جنوري ۱۹۵۹م، جدي ۱۳۳۷ش).

د افغانستان او شوروي اتحاد د راډیو تیلفوني ارتباط موافقت نامه ۱۳ مادې وسوه (٤ فاروري ۱۹۵۹م).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم هندوستان ته ولاړ (۵-۱۳ فبروری ۱۹۵۹م، دلو ۱۳۳۷).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم د بغداد پکټ، د بین المللی تشویش سبب وګاڼه (۹

مارچ ۱۹۵۹م، حوت ۱۳۳۷ش).

**۱۹۵۹م ۱۳۳۸ش ۱۳۷۹ق**

د متحدو ملتو سکرتر جنرال ډاک همرشولډ کابل ته راغئ ۲۲-۲٤ مارچ ۱۹۵۹م، حمل ۱۳۳۸ش).

د اموالو د مبادلې پروتوکول د اتحاد شوروي سره (۲۳ اپريل ۱۹۵۹م، ثور ۱۳۳۸ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم اتحاد جماهير شوروي ته ولاړ (۱۸-۲۲ مئي ۱۹۵۹م، ثور ۱۳۳۸ش).

د شوروي اتحاد سره د قندهار، هرات، کشک د ٦٥۰ کيلومترو لويی لاري د جوړولو موافقت نامه وسوه (۲۸ مئی ۱۹۵۹م جوزا ۱۳۳۸).

د افغانستان او شوروي اتحاد د اقتصادي همکاري د توسعې موافقت نامه او د هرات، قندهار د لاری پخول ۷۵۰ کيلو متره (۲۸ مئي ۱۹۵۹م، جوزا ۱۳۳۸ش).

د افغانستان او شوروي اتحاد موافقت نامه د درو پلو جوړولو لپاره په بهسود، کامه، اسمار کي ټوله اوه مادې (۱۸ جولايي ۱۹۵۹م، سرطان ۱۳۳۸ش).

د افغانستان يوه عسکری ډله ترکيې او د عربو متحد جمهوريت (مصر) ته ولاړه (۱۵ جولايي ۱۹۵۹م، سرطان ۱۳۳۸ش).

د جلال آباد د کانال او بريښنا او اوبولو پروتوکول ٥ مادې له شوروي اتحاد سره (۲۳ اگست ۱۹۵۹م، ۳۱ اسد ۱۳۳۸ش) په دې پروژه کي د درونتې د بند ارتفاع ۲۲ متره او د اوبو بهيدنگ ئې په يوه ثانيه کي ۱۳۰ مکعب متره او د بريښنا اندازه ئې يوولس زره کيلوواټه ده. د کانال اوږدوالی ۷۰ کيلومتره دې، چې گرده ۱۲۹ زره جريبه مځکه اوبوی، او هر جريب په لس زره افغانۍ (۲۰۰ ډالره) تماميږی. ټول مصارف ئې ۳٦٦ مليونه مساوی ۱۸ مليونه ډالره دی او عايدات ئې د کاله ۲۱٤ مليونه افغانۍ تخمين سوی وو.

د ننگرهار د اوبولو د پروژې لپاره اتحاد جماهير شوروي نور امداد ومانه (۲۳ اگست ۱۹۵۹م، سنبله ۱۳۳۸ش).

د ښځو د لڅ مخۍ اعلان وسو او د استقلال په جشن کي په لڅ مخ راووتې (۳۱ اگست ۱۹۵۹م، سنبله ۱۳۳۸ش).

جواهر لال نهرو د هندوستان صدر اعظم افغانستان ته راغی، او د ده په ميلمستيا کي افغاني ښځو په لڅ مخ گډون وکی (۱٤ ستمبر ۱۹۵۹م، سنبله ۱۳۳۸ش).

ښاغلی محمد نعيم خارجه وزير د چين په سفر ولاړ (٥ ستمبر ۱۹۵۹م، سنبله ۱۳۳۸ش).

ښاغلی محمد نعيم خارجه وزير واشنگټون ته ولاړ، او د پاکستان د ايوب خان د نوی حکومت له نماينده سره ئې لومړی ليدنه وکړه (۱۱ اکتوبر ۱۹۵۹م، عقرب ۱۳۳۸ش).

ښاغلی محمد نعيم خارجه وزير يوگوسلاويا ته ولار (۲۰-۲۸ اکتوبر ۱۹۵۹م، عقرب ۱۳۳۸ش).

د افغان او سويت د دوستی ټولنه تاسيس سوه (۲۸ اکتوبر ۱۹۵۹م، عقرب ۱۳۳۸ش).

د افغانستان او ترکیې کلتوري موافقت نامه (۷ نومبر ۱۹۵۹م، عقرب ۱۳۳۸ش).

د آمو دریا ګډه سروې د اتحاد شوروي او افغانستان له خوا شروع سوه چي د پریښنا او اوبولو لپاره ډم پر جوړ کي (۱ دسمبر ۱۹۵۹م قوس ۱۳۳۸ش).

د اتازوني د جمهور مشر ایزنهاور شپږ ساعته په کابل کي تیر کړه او افغانستان ته ئې د اقتصادي مرستي د اوږدولو ډاډ ورکئ (۹ دسمبر ۱۹۵۹م، قوس ۱۳۳۸ش).

په قندهار کي د یوه مرتجعانه حرکت کښېنول د پولسو او عسکرو په وسیله (۲۱ دسمبر ۱۹۵۹م، جدي ۱۳۳۸ش).

الله بخش یوسفي د پښتنو تاریخ (تاریخ آزاد پټهان) دوه ټوکه په اردو وکیښ (کراچي چاپ ۱۹۵۹م).

د ۱۳۳۷ ش کال عایدات او مصارف ۲۱۱۳ ملیونه افغاني وې.

د ۱۳۳۷ش کال پوهنشمیر: ۸۶۳ د هلکانو ښوونځی، ۴۰ د نجونو ښونځی، ۱۴۰،۹۷۸ هلکان، ۱۴،۰۳۶ نجوني ، ۳۸۹۷ نارینه ښوونکی، ۴۶۱ ښځي ښوونکي.

په ۱۳۳۷ کال د افغانستان صادرات ۲۰۸۸ ملیونه او واردات ئې ۳۲۷۴ ملیونه افغانئ وې.

د تول افغانستان د میوې صادرات خارج ته ۱۴۴،۵۰۲،۵۴۰ افغاني وې (انیس ۷ جون ۱۹۵۹).

**۱۹۶۰م ۱۳۳۸ش ۱۳۸۰ق**

د افغانستان او یوګوسلاویا تجارتي او اقتصادي او تخنیکي همکاري قرار داد (۶ جنوری ۱۹۶۰م، جدي ۱۳۳۸ش).

ښاغلي محمد نعیم خارجه وزیر پاکستان ته ولاړ (۱۰ جنوری ۱۹۶۰م، جدي ۱۳۳۸ش).

افغانستان د شوروي اتحاد سره د کابل پر رود د اوبولو او بریښنا د پروژې موافقت وکئ (۱۹ جنوری ۱۹۶۰م، جدي ۱۳۳۸ش).

سپه سالار شاه محمود خان غازي دمخنی صدراعظم اویا کلن وفات سو (د ۳ جدي شپه ۱۳۳۸ش).

د یوګوسلاویا سره هوایي موافقت نامه (۱۶ جدي ۱۳۳۸ش).

د غربي آلمان سره هوایي موافقت نامه وسوه (۲۰ جدي ۱۳۳۸ش).

د اتحاد شوروي صدراعظم خروسچیف کابل ته راغی، د سویټ د کومک پروژې ئې وکتلې، د کلتوري همکاري قرار داد ئې امضا کي، او افغانستان ته ئې د پښتونستان په شخړه کي د تایید وعده ورکړه (۲-۵ مارچ، حوت ۱۳۳۸ش).

د افغانستان او اتحاد شوروي فرهنګي موافقت پاڼه په پښتو ٦ مادو په کابل کي دواړو صدراعظمانو لاس لیک کړه (٤ مارچ ۱۹۶۰م، حوت ۱۳۳۸ش).

پاکستان د پښتونستان په شخړه کي د اتحاد شوروي تایید د پاکستان په داخلي چارو کي

مداخله وبلله (٦ مارچ ١٩٦٠م، ٦ حوت ١٣٣٨ش).

اتحاد شوروي پنځوس زره ټنه غله افغانستان ته اهدا کړه (٦ مارچ ١٩٦٠م، ٦ حوت ١٣٣٨ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم وويل چي پاکستان په افغانستان کي د اصلاحاتو پر خلاف پروپاگنډ کوي خو د افغانستان دولت غواړي چي خلکو ته د حکومت د طرز د ټاکلو او د سياسي گوندو د جوړولو حق ورکي (٧ مارچ ١٩٦٠م، ٦ حوت ١٣٣٨ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم ايران ته ولاړ (١٧ مارچ ١٩٦٠م، ٦ حوت ١٣٣٨ش).

د ١٣٣٨ش کال دولتي واردات او مصارف ٢٤٢٨ مليونه افغاني وې.

د ١٣٣٨ش کال پوهنشمير: ١٠٢٨ د نرو ښوونځي، ٦٥ د نجونو ښونځي، ١٤٨،٢٩٥ هلکان، ١٧،٣٠١ نجوني، ٤١٥٦ ښوونکي، ٥٢١ ښځي ښونکي.

په ١٣٣٨ کال د افغانستان صادرات ٢٧١٦ مليونه او واردات ئې ٣٦٤٩ مليونه افغاني وې.

**١٩٦٠م ١٣٣٩ش ١٣٨٠ق**

د قندهار او هرات او کشک د لويي لاری په جوړولو پيل وسو (٦ اپريل ١٩٦٢٠م، حمل ١٣٣٩ش).

اعليحضرت امان الله خان غازی د سويت زرليند په زوريخ کي ٦٨ کلن وفات سو (دوشنبه ٢٥ اپريل ١٩٦٠م، ٥ ثور ١٣٣٩ش). په شنبې ٧ مئي ١٩٦٠ مازيگر ٤ بجې په جلال آباد کي د خپل پلار امير حبيب الله د څنگه ښخ سو (ولادت ئې د پغمان د درهٔ زرگر د حاجي اسد خان په کور کي ٥ ذی قعده پنجشنبه ١٣٠٩ق).

د يوگوسلاويا خارجه وزير کابل ته راغئ (٢٧ اپريل، ٦ ثور ١٩٣٩ش).

جکن ناته دهامي جي په کابل کي د هند لوی سفير سو (٦ مئی ١٩٦٠م، ٦ ثور ١٣٣٩ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم چه مسکو ته د علاج لپاره تللی و، د اتحاد شوروي د صدراعظم خروسچيف سره ئې وليدل (١٣ می ١٩٦٠م، ٦ ثور ١٣٣٩ش).

د افغانستان خارجه وزير پاکستان او اتازوني ته پروټسټ ورکئ چي ولی د اتازوني (يو-٢) طيارې د افغانستان پر خاورو تجاوز کړی دئ (١٨ مئی ١٩٦٠م، ثور ١٣٣٩ش).

د قزل کلا د بندر د فني معاونت پروتوکول د افغانستان او شوروی اتحاد تر منځ ٥ مادې امضا سو (٢٥ مئی ١٩٦٠م، ٦ جوزا ١٣٣٩ش).

د افغانستان او ايران تر منځ د حمل و نقل موافقت نامه امضا سوه (٢٦ جون ١٩٦٠م، ٦ جوزا ١٣٣٩ش).

د جنگلک د موټر د ترميم کارخانه افتتاح سوه (٢ جولائی ١٩٦٠م، اسد ١٣٣٩ش).

د شوروي اتحاد د تيلو د پلټني ډلی په شمالي افغانستان کي د پټرولو او طبيعي گاز د پانگو د پيدا کولو اعلان وکئ (١٥ جولائی

۱۹٦۰م، اسد ۱۳۳۹ش).

چکوسلواکيا د يو مليونو ډالرو تخنيکي مرسته ومنله (٤ اگست ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

د افغانستان او سويډن سياسي روابط د لوی سفارت په ټکانه لوړ کړل سوه (۸ اگست ۱۹٦۰م سنبله ۱۳۳۹ش).

د شوروي اتحاد سره د دوو کالو د حمل و نقل قرار داد (۱۰ اگست ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

دوو پاکستانيو طيارو د افغانستان پر فضا د قندهار پر سيمه تجاوز وکي (۱۳ اگست ۱۹٦۰م) پاکستان وويل چي دا سهوه ده، نو طيارې او پيلوټان ئې بيرته پاکستان ته ستانه سول (۱۷ ستمبر ۱۹٦۰م، ميزان ۱۳۳۹ش).

د درونټې کانال د اتحاد شوروي په مرسته جوړ او افتتاح سو (۱۸ اگست ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

د چين د خلکو د جمهوريت خارجه وزير چين-يي افغانستان ته راغی (۲۱-۲٦ اگست ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

د افغانستان او چين د مؤدت او د عدم تعرض معاهده امضا سوه (۲٦ اگست ۱۹٦۰م، ٤ سنبله ۱۳۳۹ش).

تجارتي او د اداينی موافقت نامه هم تجديد سوه (۲ ستمبر ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

د اتازوني د انکشافي پانگي څخه يو لک ډالره مرسته د آريانا هوائي شرکت ته ورکړه سوه (۲ ستمبر ۱۹٦۰).

د پولينډ صدراعظم کابل ته راغئ او د تخنيکي همکاري قرار داد وسو (۱۹ ستمبر ۱۹٦۰م، سنبله ۱۳۳۹ش).

کابل راډيو دا خبره رد کړه چي گوندی افغانستان د پاکستان پر سرحداتو باندی خپل عسکر زيات کړی دي (۲٦ ستمبر ۱۹٦۰م، ميزان ۱۳۳۹ش).

د المان د فيډرالي حکومت د اقتصاد وزير لوډونگ ارهارډ کابل ته راغئ (۳ اکتوبر ۱۹٦۰م، ميزان ۱۳۳۹ش).

د افغانستان پاچا د عربو متحد جمهوريت (مصر) ته ولاړ (۲۲-۳۱ اکتوبر ۱۹٦۰م، عقرب ۱۳۳۹ش) او په ۳۱ اکتوبر ۱۹٦۰م، عقرب ۱۳۳۹ يوگوسلاويا ته ورسيدئ.

خارجه وزارت پر پاکستان پروټسټ وکي چه ولي پاکستاني عسکرو پر تومن خيلو باندی حمله کړيده (۳۰ نومبر ۱۹٦۰م، قوس ۱۳۳۹ش).

د ايران صدر اعظم کابل ته راغئ او تجارتي او ترانزيتي قرار داد ور سره امضا سو (۳ دسمبر ۱۹٦۰م، قوس ۱۳۳۹ش).

د باختر آژانس د تاس اژانس قرار داد سره وسو (۱۹ دسمبر ۱۹٦۰م، ٦ قوس ۱۳۳۹ش).

**۱۹٦۱م ۱۳۳۹ش ۱۳۸۱ق**

د افغانستان او هند د تجارت د زياتوالی موافقت نامه امضا سوه (۱۵ فبروري ۱۹٦۱م، دلو ۱۳۳۹ش).

پر باجوړ باندی د پاکستان بمباري (۱ مارچ ۱۹٦۱م، حوت ۱۳۳۹ش).

د جاپان سره د تخنیکي امداد موافقت نامه (۱۵ مارچ ۱۹۶۱م، حوت ۱۳۳۹ش).

د ۱۳۳۹ ش کال پوهنشمیر: ۱۱۱۲ د هلکانو ښوونځي، ۱۲۶ د نجونو ښونځی، ۱۷۰،۹۳۳ هلکان، ۲۲،٦٤۱ نجونی، ٤۳٥٤ ښوونکی، ۷۰۰ ښځي ښوونکی.

په ۱۳۳۹ کال د افغانستان صادرات ۲۲٤٤ ملیونه او واردات یې ۳۹۰٥ ملیونه افغاني وې.

**۱۹٦۱م ۱۳٤۰ش ۱۳۸۱ق**

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم پسله طبي عملیاتو له روم څخه مسکو ته ولاړ، او هلته یې د خروشچیف سره مرکه وکړه، د پراودا روزنامې ولیکل چي د پښتنو له وضعیته سره شوروي اتحاد بې علاقې ندي (٥ اپریل ۱۹٦۱م، حمل ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او فیډرال جرمني کلتوري موافقت نامه امضا سوه (۱۸ اپریل ۱۹٦۱م، حمل ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او چکوسلواکیا کلتوري موافقت نامه امضا سوه (۲٤ اپریل ۱۹٦۱م، حمل ۱۳٤۰ش).

افغانستان د پاکستان هغه تور رد کئ چي گوندی د افغانستان عسکر په سرحدی جنگو کي برخه لری (۱۹ مئې ۱۹٦۱م ثور ۱۳٤۰ش).

د فرانس سره هوایي موافقت نامه (۲٥ ثور ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او بلغاریا تجارتي تړون وسو (۳ جون ۱۹٦۱م، جوزا ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد داؤد صدر اعظم وویل چي پاکستان د وحشیانو په څیر پر پښتنو په هغو طیارو بمباري کوي چي د اتازوني له خوا ورکړې سوي دي او هم یې په ٥ ورځو کي تر ۱۲۰۰ تنو پوري د پښتنو مشران په پیښور کي په جزا محکوم کړی دي. ده دا خبره رد کړه چي افغانستان د پښتنو قبایل ولاړیدو ته لمسوی (٦ جون ۱۹٦۱م، جوزا ۱۳٤۰ش).

د افغانستان پاچا د ملی شورا په افتتاحیه وینا کي د پښتونستان د خلکو لپاره د خود مختاری حقوق وغوښتل او ډاکټر عبدالظاهر د ملی شورا رئیس کړ سو (۸ جون ۱۹٦۱، جوزا ۱۳٤۰ش).

پاکستان پر افغانستان د تیري او لمسون تور ولگاوه او پروټسټ یې ورکئ (۱۵ جون ۱۹٦۱م، جوزا ۱۳٤۰ش).

د افغانستان جټ طیاره د کابل د بدی هوا به سبب په پیښور کي کښېنسته (۱۸ جون ۱۹٦۱م، جوزا ۱۳٤۰ش).

د راډیو کابل په قول د افغانستان د پادشاه او د پاکستان د صدر ایوب خان د ملاقات امکان سته (۲۰ جون ۱۹٦۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

پاکستان اعلان وکئ چي افغاني پونده بیله پاسپورټه او ویزې او بین المللي صحي اجازته پاکستان ته نسی راتلای (۲۲ جون ۱۹٦۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

پاکستان وویل: چي باید د مشرانو تر سره لیدني دمخه د افغانستان او پاکستان تر منځ یوه

دوستانه فضا موجوده سي (۲۳جون ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

د اتازوني سره د پنځوسو زرو ټنو غلې راوړلو قرار داد (۲۳ جون ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم په لندن کي د انگريز د خارجه وزير هوم او د ملکه اليزابت سره وليدل (۲۶ جون ۱۹۶۱).

د باجوړ او کورم پر کلو باندي د پاکستاني عسکرو حملې (جون ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد نعيم وزير خارجه وويل چي د پښتنو خود مختاري غوښتنه هغه يوازيني خبره ده چي د افغانستان او پاکستان روابط يې سره خراب کړي دي، او پر هغه باندی بايد خبري وسي.

دلته د پاکستان د تماميت او سيمي خبره نسته، بلکه د پښتنو په قبيلو کي د پاکستان جارحانه اعمال نه زغملی کيږي (۲۸ جون ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

افغنستان او مکسيکو خپل سياسي روابط د لوی سفارت ټکاني ته لوړ کړل (۲۹ جون ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

افغانستان او نيپال هم خپل سياسي روابط د لوی سفارت ټکاني ته لوړ کړل (۱ جولايي ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد داؤد فيډرال جرمني جمهوريت ته ولاړ (۳-۸ جولايي ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

د اتحاد شوروي د اټومی انرجي هيئت له وزير خارجه ښاغلی محمد نعيم سره و کتل (۸ جولايي ۱۹۶۱م، سرطان ۱۳٤۰ش).

په اتازوني کي افغاني لوي سفير د رئيس جمهور کنيډي د ليدني پر وخت د خپل حکومت عميق تشويش پر دې خبره ښکاره کي چي پاکستان امريکايي وسلې پر پښتنو قبايلو باندی استعمالوي (۲۳ جولايي ۱۹۶۱م، اسد ۱۳٤۰ش).

د بلجيم سره هوائي موافقت نامه (۱۹ اسد ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او چکوسلواکيا ملکي هوائي موافقت نامه (۳۱ جولايي ۱۹۶۱م).

د افغانستان او متحده عربي جمهوريت ملکي هوائي موافقت نامه (۲ اگست ۱۹۶۰م، اسد ۱۳٤۰ش).

پاکستان د افغانستان قونسلکری او تجارتي وکالتونه وتړل، او ټولي د ترانزيټ اساني ئې هم پر افغانستان بندی کړې (۲۳ اگست ۱۹۶۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

افغانستان د پاکستان د ۲۳ اگست د نوټې په جواب کي وويل چي د پاکستان دغه اقدام يو د دښمنی عمل بولي او د سياسي روابطو سره پريکول به ئي نتيجه را وخيژي (۳۰ اگست ۱۹۶۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم د نامنسلکو مملکتو د کنفرانس لپاره بلگراډ ته ولاړ (۳۰ اگست ۱۹۶۱).

پاکستان په يوه سپين کتاب کي پر

افغانستان تور ولګاوه چي د توسیع غوښتني سیاست لري او د پاکستان د قونسلګریو د کارو مانع دئ (۲ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او پاکستان سرحدونه وتړل سوه، او د مالو ترانزیټ هم بند سو (۳ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

افغانستان خپل سیاسي روابط د پاکستانه سره وشلوله (٦ ستمبر ۱۹٦۱م سنبله ۱۳٤۰ش).

افغانستان هغه پیشنهاد رد کي چي برتانیا د پاکستان منافع په افغانستان کي وساتي (۷ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

د یروشلم اسلامي کانګرس خواهش وکئ چي افغانستان او پاکستان خپل اختلافونه سره حل کي (۱۲ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد نعیم خارجه وزیر جماهیر اتحاد شوروي ته ولاړ (۱٦-۲۰ ستمبر ۱۹٦۰م، ۱٦ سنبله ۱۳٤۰ش).

افغانستان د پاکستان هغه ادعا تکزیب کړه، چي د افغانستان اقتصادی محاصره پخپله د افغانستان له لاسه ده چي د پاکستان له لاری د خپلو تجارتي اموالو د تیرولو لپاره نور وسایل نه مني. مګر افغانستان وویل پاکستان غواړي چي د قونسلګریو او تجارتي وکالتو په بندولو سره افغانستان په اقتصادي محاصره اخته کئ (۱۷ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

پاکستان د ایران منځګړیتوب د پښتونستان د شخړی د حل لپاره ومانه (۱۸ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

سعودی عربي حکومت په افغانستان کي د پاکستان د منافعو ساتنه ومنله (۱۹ ستمبر ۱۹٦۱م).

د عربو متحده جمهوریت ومنله چي د افغانستان منافع په پاکستان کي وساتي (۲۱ ستمبر ۱۹٦۱م، سنبله ۱۳٤۰ش).

د افغانستان خارجه وزیر ښاغلی محمد نعیم وویل: چي افغانستان به تر هغه وخته خپل ترانزیتي مالونه د پاکستان له خوا رانوړی ځو چي د افغانستان قونسلګری او تجارتي دفترونه هلته بیا خلاص نسي (۲۷ ستمبر ۱۹٦۱م، میزان ۱۳٤۰ش).

د پاکستان صدر ایوب خان د افغانستان د سیاسی او تجارتي ادارو بیا خلاصول نه ومنل، ځکه چي د ده په قول هغه اداري د تخریبي چارو لپاره استعمال کیدي (۲۹ ستمبر ۱۹٦۱، میزان ۱۳٤۰).

د اتازوني رئیس جمهور کنیډی د افغانستان پاچا او صدر ایوب خان ته پیغامونه راولیږل چي هغه دولت به د افغانستان او پاکستان د سیاسي روابطو د بیا ښبلونی لپاره خپل ښه مساعی ونه سپموی (٤ اکتوبر ۱۹٦۱م، میزان ۱۳٤۰ش).

راډیو کابل هغه خبر رد کي چي ګوندی افغاني عسکرو د باجوړ پر دوو کلو حمله کړیده، بلکه دا بې وویل چي هلته پاکستان بمباري کوی (۹ اکتوبر ۱۹٦۱م، میزان ۱۳٤۰ش).

د شوروي اتحاد عسکري ډله د ۱۱ ورځو میلمستیا لپاره کابل ته راغله (۱۱ اکتوبر

۱۹٦۱م، میزان ۱۳٤۰ش).

د افغانستانه سره د اتحاد شوروي د تخنیکي او اقتصادي همکاري موافقیت نامه (۱٦ اکتوبر ۱۹٦۱م).

افغانستان د امریکا د متحدو ایالاتو د رئیس کنیډي له خوا د ده د شخصی نماینده په ډول د لیونګ سټون مرچنټ ټاکنه ومنله، چي دی به خپل ښه مساعی د افغانستان او پاکستان د شخړی د پریکړی لپاره په کار واچوی (۱۹ اکتوبر ۱۹٦۱م میزان ۱۳٤۰ش).

د سویس سره هوایي موافقت نامه (۲۵ میزان ۱۳٤۰ش).

د شوروي اتحاد د فواید عامه د وزیر معین کابل ته راغی چي هغه پروژې وګوری کومي چي د شوروي اتحاد په کومک جوړیږي (۲٤ اکتوبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

د رئیس جمهور کنیډی خاص نماینده لیونګ سټون مرچنټ افغانستان او پاکستان ته راغی خو د پښتونستان د شخړی حل یې نه وموند، او دا یي ومنل چي خپل ښه مساعی به له دیپلوماسي لاري جاري وساتي (۲-۸ نومبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

د چکوسلواکیا سره تجارتي پروتوکول امضا سو، چي د افغانستان ډیره میوه به رانیسی (۵ نومبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

افغانستان او پاکستان دواړو یو د بل پر سرحداتو د عسکرو ټولولو شکوه وکړه (۱۲ نومبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم وویل چه افغانستان به د خپلي بیطرفي پالیسي ساتي، مګر پاکستان ته یې د لمسون اخطار ورکئ (۱٤ نومبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

یوه ضمیمه ترانزیتي موافقت نامه د شوري اتحاد سره امضاء سوه چي د افغانستان ترانزیتي مالو ته نوری اساني هم په هغه مملکت کي وکړی سي (۱۹ نومبر ۱۹٦۱م، عقرب ۱۳٤۰ش).

### ۱۹٦۲م ۱۳٤۰ش ۱۳۸۲ق

د افغانستان نماینده په ملل متحده کي وویل: چي افغانستان د پښتونستان لپاره د حقیقت پالونکی ډلي راتلو ته تیار دئ، خو افغانستان به هغه وخت دا شخړه ملل متحده ته راوړی که د مذاکرې له لاري حل نسي (۹ جنوري ۱۹٦۲م، جدي ۱۳٤۰ش).

د افغانستان او شوروي اتحاد د مصرف عامه د اجناسو ورکولو موافقت نامه اته مادې امضا سوه (۱۳ جنوري ۱۹٦۲م، جدی ۱۳٤۰ش).

په پاکستان کي د ایران لوی سفیر د پاکستان، ایران، افغانستان فیډریشن پیشنهاد وکئ (۲۰ جنوري ۱۹٦۲م، جدي ۱۳٤۰ش).

محمد انور بسمل د ناظر صفر خان زوی د دري شاعر او صوفي په کابل کي وفات سو (۳ جدي ۱۳٤۰ش).

د شوروي اتحاد سره د هوا شناسي د انکشاف لپاره د څلورو کالو موافقت نامه (۲۳ جنوري ۱۹٦۲، دلو ۱۳٤۰ش).

جان ایم سټیویس په کابل کي د اتازونی

لوي سفير سو (٢٤ جنوري ١٩٦٢م، دلو ١٣٤٠ش).

افغانستان خپل سرحدونه اته هفتې له پاکستانه سره خلاص کړل چي د اتازوني امدادي مالونه راوړل سي (٢٩ جنوري ١٩٦٢م، دلو ١٣٤٠ش).

د ١٣٤٠ ش کال دولتي عايدات او مصارف٢٠١٢ مليونه افغاني وې.

د ١٣٤٠ کال پوهنشمير: ١٢٤٨ د هلکانو مکتبونه، ١٢٨ نجونو مکتبونه، ٢٠٣،٦١٢ هلکان، ٣١،٦٨٩ نجوني، ٤٨٢٨ ښونکی، ٨٧٠ ښځي ښونکي.

په ١٣٤٠ کال د افغانستان صادرات ٤٠٢٥ مليونه او واردات يې ٤٤٥٩ مليونه افغاني وې.

**١٩٦٢م ١٣٤١ش ١٣٨٢ق**

د افغانستان او شوروي اتحاد د کور جوړولو او د کابل ښار پراخولو د همکاري موافقت نامه لس مادې امضا سوه (١١ اپريل ١٩٦٢م، ٢٢ حمل ١٣٤١ش).

ښاغلی محمد داؤد صدراعظم دوهم پنځه کلنی پلان اعلان کئ چي ٣١،٣ بليونه افغاني مصرف لری. له دغو څخه يوه دريمه برخه په کانو او صنايعو او يوه څلورمه به په اوبو لگولو او کرني او يو څلورمه په مواصلاتو او لارو خرڅيږی (١٤ اپريل ١٩٦٢م، حمل ١٩٤١ش).

له ايرانه سره د پنځو کالو د ترانزيټ موافقت نامه امضا سوه (٢٠ اپريل ١٩٦٢، حمل ١٣٤١ش).

د پل خمری د بريښنا فابريکه د شوروي په امداد افتتاح سوه (٦ مئی ١٩٦٢م، ثور ١٣٤١ش).

د افغانستان او شوروی اتحاد د ١٨ مليونو روبلو او ١٦،٢٥ مليونو ډالرو د پور موافقت نامه د سالنگ د لاري جوړولو او د جلال آباد د کانال د نورو چارو لپاره وسوه (١٧ مئي ١٩٦٢م، ٢٧ ثور ١٣٤١ش).

پاکستان د ايران د پادشاه هغه بيشنهاد ومانه چي د افغانستان سره د پاکستان د اختلاف په پريکړه کي منځگړي وکي (١ جولائي ١٩٦٢م، سرطان ١٣٤١ش)

افغانستان د ايران د پادشاه هغه پيشنهاد ومانه چي د پاکستانه سره د افغانستان د اختلاف په پريکړه کي منځگړي وکي (١٢ جولاي ١٩٦٢م، سرطان ١٣٤١ش).

د پولينډ سره د افغانستان هوائي موافقت نامه (٦ سرطان ١٣٤١ش).

په کابل کي د اعليحضرتينو محمد ظاهر شاه او محمد رضا پهلوي او په راولپنډي کي د اعليحضرت محمد رضا پهلوي او جنرال ايوب خان ابتدائي خبري وسوې، چي څنگه د افغان-پاکستان اختلاف سره حل کاندی (٢٧-٣١ جولائي ١٩٦٢م، سرطان ١٣٤١ش).

په کابل او تهران کي يوه مشترکه اعلاميه خپره سوه چي اعليحضرت محمد رضا پهلوي به خپل ښه مساعي جاري وساتي، چي د افغانستان او پاکستان روابط سره ښه سي (١ اگست ١٩٦٢م، اسد ١٣٤١ش).

جنرال ایوب خان د پاکستان رئیس جمهور په کوټه کي وویل چي که د پاکستان-افغانستان-ایران تر منځ یو کانفیډریشن جوړ سي نو به دوی د خارجي فشاره سره مقابله وکړاي سي (٦ اگست ۱۹٦۲م، اسد ۱۳٤۱ش).

د افغانستان پاچا شوروي اتحاد ته په سفر ولاړ (٦-۱٥ اگست ۱۹٦۲م، اسد ۱۳٤۱ش).

د پاکستان جمهور رئیس ایوب خان بیا د درو مملکتو د کانفیډریشن خبره تکرار کړه او دا ئې وویل چي د دغو درو هیوادو مشران دي په تهران کي ژر سره وگوري (۱٥ اگست ۱۹٦۲م، اسد ۱۳٤۱ش).

په تهران کي د افغانستان او پاکستان د خارجه وزیرانو مجوز ملاقات د وخت نلرو په سبب وځنډیدئ (۱۲ ستمبر ۱۹٦۲م، سنبله ۱۳٤۱ش).

ایران غاو وکئ چه پر هلمند باندي ډم جوړولو له ایرانه اوبه گرزولي او کښتونه ئې سوځلی دي (۱۹ اکتوبر ۱۹٦۲م، میزان ۱۳٤۱ش).

افغانستان د جرمنی د فیډرال جمهوریته سره د ۲۰۰ ملیونه مارکو د پور قرار داد امضا کئ چي د بریښنا د فابریکي او د زیم د وچولو او د چښنگ د اوبو او د صنعتي چارو لپاره گټه ځنی واخیستله سي (۲٤ اکتوبر ۱۹٦۲م، سنبله ۱۳٤۱ش).

د پاکستان خارجه وزیر وویل: چي د افغانستان او پاکستان د نمایندگانو مجوزه لیدنه د اعلیحضرت محمد رضا شاه پهلوی سره معطله سوه (۱۲ اکتوبر ۱۹٦۲م، سنبله ۱۳٤۱ش).

د افغانستان یوې تجارتي ډلي د ایران له مامورینو سره د افغانستان د مالونو د وړو راوړو او په خرم شهر او مشهد کي د گدامو او نورو مشکلاتو د هیسته کولو خبری وکړي (۱۰-۳۰ نومبر ۱۹٦۲م، قوس ۱۳٤۱ش).

ښاغلی محمد نعیم وزیر خارجه، پاکستان د شخړو په اوږدولو وغانده (۱٤ دسمبر ۱۹٦۲م، قوس ۱۳٤۱ش).

د خواجه عبدالله انصاري طبقات الصوفیه په ۷۳۸ مخه کي د عبدالحي حبیبي د تعلیقاتو سره په کابل کي چاپ سو (میزان ۱۳٤۱ش).

**۱۹٦۳م ۱۳٤۱ش ۱۳۸۲ق**

جان ستیویس د اتازوني لوي سفیر د افغانستان او پاکستان پر شخړه باندی د رئیس جمهور کینډي سره خبري وکړي (۱۷ جنوري ۱۹٦۳م، جدي ۱۳٤۱ش).

د ننگرهار پوهنتون د طب د پوهنځي په افتتاح سره په جلال آباد کي جوړ سو (٥ فروری ۱۹٦۳م، دلو ۱۳٤۱ش).

اتازوني ټول د مرستی مالونه د ایران له لاري افغانستان ته واستول (۲ فروری ۱۹٦۳م، دلو ۱۳٤۱ش).

د اتحاد جماهیر شوروي د مرستی موافقه نامه د افغانستان سره (۲٥ فروری ۱۹٦۳م، دلو ۱۳٤۱ش).

ښاغلی محمد داؤد صدر اعظم استعفا وکړه (۱۰ مارچ ۱۹٦۳م، ۱۹ حوت ۱۳٤۱ش).